د اطلاعاتو او کلتور وزارت



# گلشن روه

لیکوال: میجر راورتي

د پوهاند رشاد په سریزه



داطلاعاتو او کلتور وزارت
دپښتو دپياوړتياو پر مختيا امريت

په‌دوو وروستيو پېړيو کې دپښتو
دچاپ‌شوو آثارو دبين المللي سيمينار
په‌وياړ

# گلشن روه

د

# هانري جارج راورټي ټولونه

سريزه او فرهنگ

د

## پوهاند عبدالشکور رشاد

د

زلمی هیوادمل په‌اهتمام




دريم چاپ

۱۳۵۶

# د ګلشن روه دريم چاپ

ګلشن روه چې د پښتو ژبې د يو شمير پخوانيو ليکوالو او شاعرانو د منثور او منظو مو آثارو مجموعه ده په دوو ورو ستيو پيړ يو کې د پښتو د چاپ شويو آثارو د سيمينار په مناسبت د دريم ځل د پاره په افغانستان کې چاپ شوه .

دغه کتاب چې د اطلاعاتو او کلتور د وزارت د پښتو د پرمختيا او پياوړ تياد امريت له خوا چاپ شوی دی د پښتو ژبې ځينې ونکه ته د پښتو ژبې يو شمير پخوانی متو ن وړاندی کوی . د غه کتاب په ۱۸۶۰ ع کال کې په هر تفرد کې د لومړی ځل د پاره چاپ شوی ؤ او هم ځل د پاره په ۱۸۶۷ ع کال کې هماغته چاپ شو.

په دې متونو کې چې د انګليسی مؤلف ميجر راورټی له خوا برابر شوی دی د تحقيق او څيړنې زيات موادموندل کيږی .

زموږ د پاره په زړه پوری ده چې پو هاند رشاد چې د متونو په مطالعه کې د پياوړ ی لاس خاوند دی د دغه کتاب په محتو يا تو باندې هر اړخيزی څيړنې کړی دی چې د هغه زيار او کوښښ د کتاب ارزښت ډير زيات کړی دی .

په آفيسټ تو ګه د دغه کتاب د چاپولو يو بل امتياز دادی چې د غه کتاب د هغو طباعتی حرو فو شکلونه خوندی کړی دی چې په ۱۹ پيړ ی کې د پښتو د پاره جوړ شوی دی .

د کتاب دا خصو صيت د هغو کسا نو سره مر سته کوی چې د چاپی حرو فو او د چاپ د پاره د مناسب رسم الخطو نو په باب مطالعات کوی .

موږ دا کتاب د هغو ګڼو رو کتابو نو څخه بولو چې په دوو ورو ستيو پيړ يو کې د پښتو د چاپ شويو آثارو د سيمينار په مناسبت خپاره شوی دی او هيله لرو چې له دغه کتاب څخه زيا ته استفاده وشی.

پوهاند دکتور نوين
داطلاعاتو او کلتور وزير




# د «گلشن روه» او د هغه د مؤلف په باب

د پښتو ژبې د ادبي شهپارو یوه درنه مجموعه «گلشن روه» ده چې دانگریز ختیځ پوه هانري جارج راورټي (۱۸۲۵-۱۹۰۶ع) په زیار، چوڼ (انتخاب) او راټولونه ۱۱۷ کاله پخوا لومړی وار په لندن کې چاپ سوی دی، دا کتاب د خپل اهمیت له امله اوه کاله پس دوهم ځلې بیا چاپ سو، خو دا ځلې یې هم د چاپ ځای تر افغانستان د باندې ؤ.

د خوشالۍ خبره ده چې «گلشن روه» د خپل عمر په ۱۱۸ کال په یوه داسې ملک کې چاپېږي چې یوه رسمي ژبه یې افغاني (پښتو) ده او د «افغانستان» په نامه یې خلک پېژني.

د افغانستان جمهوري دولت غواړي سږ کال په دوو وروستیو ورځو کې د پښتو د چاپ سوي آثارو سیمینار په کابل کې جوړ کړي، دد غه سیمینار په مقدماتي غونډو کې په گلشن روه باندې د مقدمې لیکلو چاره زما په غاړه سوه، ځکه نو دادی زه د گلشن روه او د هغه د مؤلف په باب د خپلو مطالعاتو لنډیز د پښتو ژبې او ادب مینانو ته په ډېر درناوي وړاندې کوم:

«۱»

په هغو ختیځپوهانو ( مستشرقینو ) کې چې پښتو ژبې له پاره یې کار کړی دی ، یو هم د انګلستان اوسېدونکی هانري جارج راورټي ( ۱۲۴۰-۱۳۲۴ هـ ق )دی، چې پخپل ملک کې «د پښتو ژبې نوپلار» بلل سوی دی .

H.G. Raverty د ۱۸۲۵ ع کال دسمبر په یودیرشمه د انګلستان په Falmuth نومي ځای کې زېږېدلی او د ۱۹۰۶ ع کال د اکتوبر په دوهمه د یو اتیا کالو او څلورو میاشتو په عمر په لندن کې مړ سوی دی .

پلاری یې پېټر راورټي د انګلستان په دریابي فوج کې جراح و، جارج راورټي چې په Falmuth او- Penzance کې خپل لومړني تعلیمات پای ته ورسول، د پلار په شان یې دریابي سفرونو ته هڅه پیدا سوه او په پنځلس کلنۍ یې په دریابونو کې په ګرځېدو راګرځېدلو پیل وکه، سپاهي سو، د برژر ضابطي ته ورسید ء او په ایست انډیا کمپنۍ کې د فوجي خدمت له پاره داخل سو .

په ۱۲۵۸ هـ ق ( ۱۸۴۲ ع ) کال چې د پرنګیانو یرغلګري لښکري په افغانستان کې تېپ سولې او د درنې پښتو نخوا د سرتېرو غازیانو فداکاریو د لویې او غبتلې بریتانیا د جهانکشایۍ نشه والوزوله ـ تر دغې زماني لږ وروسته دغه انګرېز هانري راورټي د یوه فوجي ضابط په توګه له خپله ملکه هندوستان ته راغی او په ۱۲۵۹ هـ ق (۱۸۴۳ ع ) یې د اتلسو کلو په عمر د نوموړي

**ایسټ انډیا کمپنۍ، دبمبی په در پیم لمبر پلی (پیاده) فوج کي په خدمت پیل و کړ .**

---

۱ — East India Company د هغه شرکت نوم ؤ، چي په ۱۰۰۸ ھ ق (۱۰۹۹ ع) کال په لندن کي د د برشو لکو رو پو په لوسړی پانګه جوړ سو، په ۱۰۲۳ ھ ق (۱۶۱۳ ع) کال د دغه شرکت په غو ښتنه د انګلستان د پاچا لو سړي جیمز (۱۶۰۳—۱۶۲۵ ع) له خوا یو استازی چی Thomas Roe نو میدی ء دشمالي او منځني هندوستان د پاچا کورګاني جهانګیر (۱۰۱۴—۱۰۳۷ ھ ق) در بارته ولیږه سواود ایسټ انډیا کمپنی له پار ه یې د بحیرهٔ عرب پر غاړه د هندوستان په خلور و بندر و : ګهوګها، کومبایت، سو رت او احمدآباد کي د تجا رتي کو ټیو د خلاصو لو اجازه وا خیستله ، د شا هجهان (۱۰۳۷—۱۰۶۸ ھ ق) په پاچهي کي یې په سنده او بنګال کی هم د تجارتي کو ټیو د خلاصون اجازه لاس ته راوستله ، دا نګر یزانو دغي تجارتي کمپنی به دسلورو پو پر تجارتي سال باندي د رې نیمی رو پی د محصو ل په نامه د ډ هلي پاچاهي خزانی ته ورکولې .

ایسټ انډیا کمپنی د تجار تي کو ټیو په پلمه په ۱۰۴۹ ھ ق (۱۶۳۹ ع) کال د چند ر ګري د راجا په اجازه په مند راج کي د سینټ جا رج کلا جوړه کړه ، په ۱۰۷۹ ھ ق (۱۶۶۸ ع) کال یې د بمبی د جز یرې و د ا نو لو ته ملا و تړ له ، دغه جزیره د پر تګال پاچا د لو ر په جهېز کی خپل زوم دانګلستان پاچادو هم چار لس (۱۶۶۰—۱۶۸۵ ع) ته ور کړې وه ، په د غو و ختو کی ایسټ انډیا کمپنی د کلکتی په سیمه کي د چهو تا نټی او ګو بند پو ر د کلیو سند و نه د ډهلی له پاچا عالمګیر اورنګزیب (۱۰۶۸—۱۱۱۸ ھ ق) څخه لاس ته و ر و ستل او هلته یې دو یلیام فو رټ په نامه دیوې کلا بنسټ کښېښو و.

* په ۱۱۲۸ ھ ق (۱۷۱۵ ع) د ډهلي پاچا فر خ سیر (۱۱۲۵—۱۱۳۱ ھ ق)

په ۱۲۶۴ ھ ق (۱۸۴۸ع) کال چي پرنگیان د ملتان د نیولو په هڅه کي سول، د بمبي فوج ته هم په دغه بریدکي دګډون حکم وسو، او جارج راورټي هم له خپلي قطعې سره دجنرال هویلر سرستي ته راغی، دملتان په نیولوکي یې فعاله برخه واخیستله او د خپل د غه فوجي خدمت په صله کي یې د بهادرۍ یومډال وګاټه.

په ۱۲۶۵ ھ ق (۱۸۴۹ع) کال چي د پرنګیانو فوجونه دجنرال والټر ګلبرټ په مشرۍ د شمالي پنجاب دګجرات په سیمه کي له سکانو سره وجنګېدل او سکانو ته یې ماته ورکړه، جارج راورټي په دغه جنګ کي هم د قدرور خدمتونه وکړل او د ایسټ انډیا کمپنۍ له خوا یو بل مډال ورکړه سو. ۲

---

* ناروغه سو، په کلکته کي د دغه شرکت رئیس یو انګریز طبیب (ډاکتر هملټن) ورولېږه، پاچا د ده په علاج ښه سوا و په صله کي یې د هغوما لومحصول ورمعاف کړ چي ایسټ انډیا کمپنۍ به د کلکتې له بندره څخه دباندي وړل.

ترڅو چي جارج راورټي په نوموړې ایسټ انډیا کمپنۍ کی په ۱۸۴۳ ع کال نوکر کېدیء، انګریزانو د دغه تجارتي شرکت تر پردې لاندي زیاتره هندوستان نیولی او پر افغانستان یې هم په ۱۲۵۵ ھ ق کال (۱۸۳۹ع) بریدکړی ؤ، چې دغه برید د افغانستان په تاریخ کی د پرنګیانو د لومړی برید په نامه یادیږي.

۲- په دغه جنګ کی امیر دوست محمد خان دسکهانو په مرسته ورغی. په اټک کی یې وارول، پنځه زره سپاره یې د سکانو د مرستي له پاره ګجرات ته ولېږل، دآئینه تاریخ نما په ۲/ ۱۰۶ کي کښلي دي چي په دغه جنګ کی دامیر دوست محمد خان یو زوی دانګریزانو له لاسه هم شهید سوی دی (؟)

دگجرات تر سو بي و روسته چي د هر نگيانو پرغاګرفو جړ نه د لارډ کاګ Lord cough په حکم د نو مو ړي جنرال و التو ګلبرټ په مشرۍ د پښتنو د قبلو په نيابت ترا ياسين راپو ري و تل او امير دوست محمد خان (۱۲۵۸-۱۲۸۰ ه ق) يې د پېښو ر خوشي کولو ته اړ يوست، جارج راورټي ديوه نظامي منصبدار په توګه د دغه فوج سل ؤ او د سوات له غاز يانو سره د جنګو نو په صله کي يې د ر يم مډال وګاټه .

دغه مډال ګټو نکی نظامي منصبدارچي وروسته د يوه سترختيځ پوه په ښه راوزي له ۱۲۶۹ څخه تر ۱۲۷۶ ه ق (۱۸۵۲-۱۸۵۹ ع) پوري تقريباً اوه کاله د پنجاب د کمشنر مرستيال و .

جارج راورټي د امير دوست محمد خان د سړيني په کال (۱۲۸۰ ه ق – ۱۸۶۳ ع) د کپتاني څخه د ميجرۍ رتبې ته ترقي وکړله ، خو يو کال پس په ۱۸۶۴ ع کال له نظامي خدمته څخه د ۳۰ کالو په عمر تقاعد سو .

جارج راورټي ديوه ختيځ پوه په توګه :

---

دغه ځيرك نظامي منصبدار په هندوستان کي د خپل يوويشت کلن فوجي مأموريته څخه ډېره ګټه واخيستله ، پښتو ، پارسي ، هندي ، ګجراتي او مرهټي ژبې يې زده کړلې ، د هندوستان او افغانستان د خلکو په ژبو ، انسابو ، تاريخ او رسم رواج کي يې زيات معلومات حاصل کړل او هغه يې د مقالو او کتابو په ښه په دې غرض خپل قوم ته وړاندي کړل چي دوی په هندوستان او پښتونخوا کي د حکومت چلولو له پاره د دغو سيمو په جغرافيه ، د خلکو په ژبو ، نژادونو ، عاداتو او رواجونو پوه سي او له د غه فهمه څخه د دغو سيمو په استيلاء او اداره کي کار واخلي .

جارج راورټي له دغو سيمو څخه د خطي آثارو په ټولولو کي هم ډېر

زيارو يوست، څه خطي کتابونه چي يې په لاس ور غلل لندن ته يې يو وړه او دبرتش موزيم او انډيا آفس لائبريرى علمي پانګه يې په زيا ته کړه ، مثلاً په برتش موزيم کي پر دغو شلو پښتو کتابو باندي دهاني جارج را ورتي ياد داشتونه سته :

پر له پسې نمبر ٣٣٨٧ تاريخ مرصع په ١٢٧٢ ه ق نو رمحمد نوري کندهاري نقل کړيده .

« « ٦٢٧٣ مخزن الاسلام

« « ٣٣٨٩ فوائدالشريعت

« « ٣٣٩٠ رياض المحبت په ١٢٢١ هق کال تأليف سوى دى .

« « ٣٣٩١ عجائب اللغات په ١٢٢٨ هق کال تأليف سوى دى ـ ددغي نسخې ليکد ١٢٧١ هق کال دصفري په پنځلسمه پاى ته رسېدلى دى.

« « ٣٣٩٢ دخوشال خان ديوان

« « ٣٣٩٣ درحمان بابا ديوان دغه نسخه چي دسراج الدين ملتاني په خط ده، د ١٢٧١ هق کال دصفري په اتمه پاى ته رسېدلى ده .

« « ٣٣٩٤ دکاظم خان شيدا ديوان دغه نسخه شاعرد څمکنو مياڼعدي (١٢٢٠ هق س) ته له رو هيل کهنډه راليږلې وه.

« « ٣٣٩٥ دلوى احمدشاه بابا ديوان

« « ٣٣٩٦ دارزاني خويشکي ديوان

« « ٣٣٩٧ دميرزاخان او رمړ ديوان دغه نسخه دسيا محمدنصير الله له پاره دکشمير دملاولى زوى ملا کمال کښلې ده .

« « ۴۹۸ دنجیب دیوان دغه نسخه په ۱۲۰۸ ه ق کال
گل محمد پښتوري د محمدی صاحبزاده له پاره کښلې ده. *

« « ۴۹۹ دسیف الملوك قصه دغه نسخه دسراج الدین ملتانی
په خط ده د ۱۲۷۱ هق کال ددوهمی خورپه شپاړسمه پای ته رسیدده.

دشهزاد بهرام قصه دغه نسخه دسراج الدین ملتاني (قاضی زاده)
په خط ده د ۱۲۷۱ ه ق کال د لومړی خور پــــه وروستیو ر ځو کی پای ته
رسېدلې ده.

« « ۵۰۰ دعذراء او وامق قصه په ۱۲۵۶ هق کال نظم سوېده.

« « ۵۰۱ دحمید مومند دیوان

« « ۵۰۲ دآدم د رخانی قصه دصدر خان ختك نظم

« « ۵۰۳ دیوسف وزلیخا قصه دغه نسخه ملاولي په کشمیر
کي په ۱۲۱۷ هق کال دمولاداد خان (خرزي) بار کزی له پاره کښلې ده .

« « ۵۰۴ گلدسته دعبدالقادر خان ختك نظم-
ددغي نسخي لیك سید عظیم د ۱۲۷۱ هق کال دروژې په پنځه ویشتمه پای ته رسولی دی.

« « ۵۰۵ دگلستان پښتو ترجمه دامیر محمدانصاري تألیف دانسخه
په کلکته کي په ۱۲۲۷ هق کال کښل سوېده.

« « ۵۰۶ علم خانه دانش دافضل خان ختك ترجمه

---

* ددغي نسخه دنقلولو تاریخ دبرتش موزیم په کتلاك او دمیکنزي په
نوی کتلاك کی ۱۱۰۸ هق کښلي دی، مگردا تاریخ سم نه دی .

راورټي پښتو یادداشت کې کښلي دي: دغه نسخه له هغې نسخې څخه نقل سوې ده چې دمترجم د کورنۍ په لاس کې وه. *

میجر جارج راورټي د ژوندو روستي دوه څلویښت کاله د شرقي ژبو او آثارو په څېړنه او پلټنه کې تېر کړل، ځیني شرقي کتابونه یې په انګریزي او ځیني یې په شرقي ژبو ترجمه کړل، د څو شرقي ژبو فرهنګونه، ګرامرونه او درسي کتابونه یې ولیکل، او د ځینو شرقي سیمو اصطلاحات یې راټول کړل. دی ترمرګه پوري په دغو علمي فعالیتو بوخت و، د ده د علمي ژیار نتیجې دا دي:

الف— هغه مقالې چې د بنګال د ایشیاټک سوسایټۍ ۳ په مجله کې خپرې سوې دي:

---

* د «هیواد» دوه ر څپانۍ په یوه ګڼه کې کښلي دي: «د حافظ رحمت خان بړیڅي د کتب خانې خطي کتابونه د میجر جارج راورټي په لاس کښېوتل او لندن ته یې یوړل.»

دا خبره ماته سمه نه ښکاري - یو خو د حافظ رحمت خان شهادت او د کتب خانې جوړیدل په ۱۱۸۸ هق کال پېښ دي او میجر جارج راورټي یو او یا کاله وروسته په ۱۲۵۹ هـ ق کال هندوستان ته راغلی دی- بل د راورټي په دغو شلو کتابو کې د څلورو تألیف او د نهو نقل د حافظ رحمت خان تر شهادت وروسته دی.

۳ — په بنګال کې د ایشیاټیک سوسایټۍ تاداو د ۱۷۸۴ع کال په جنوري (۱۱۹۸ هـ ق) کې Sir william Jones (۱۷۴۶ - ۱۷۹۴ع) ایښی دی او ترمرګه پوري ددغې سوسایټۍ مشر و، ده د پارسي ژبې ګرامر کښلی دی، د افشار نادر د ژوند کتاب یې له پارسي ژبې - د شکنتلا قصه او دوه یدو نو ځینې برخې یې له سنسکریت او سبعهٔ معلقه یې له عربي څخه په انګریزي ژبه اړولي دي .

۱— دپښتنو داصل څېړنه — په۱۸۵۴ع کال
۲—دکافرستان (اوسني‌نورستان) دسیاه‌پوشو حال — په۱۸۵۸ع کال
۳—د تورو کافرو دژبې په‌باب‌څېړنې — په۱۸۶۴ع کال
۴—دبرکاشغراو چترال‌حال — په۱۸۶۴ع کال
۵— دطبقات‌ناصري‌دمؤلف(منهاج‌السراج‌جوزجانی) حال — په۱۸۸۲ع کال
۶— مهران (سنده) رود،او دهغه‌مرستیال رودونه — په۱۸۹۲ع کال
۷ — دریې سوه‌پنځه‌شپېته کاله پخوا تبت — په۱۸۹۵ع کال

## ب—چاپ سوی کتابونه :

### ۱— پښتوگرامر:

دا کتاب د Agrammar of pakhthto, Pushto Language of the Afghans, Part I.
په نامه‌لومړی وارپه ۱۸۵۵ ع (۱۲۷۲ ه ق) کال په کلکته‌کي چاپ سوی‌دی،مقدمه یې‌د ۱۸۵۵ ع کال‌دمارچ‌په‌یوویشتمه (رجب ۱۲۷۱ ه‌ق) په ملتان‌کي کښل‌سوې‌ده،د کتاب‌مخونه ۳۷۳ دي، په‌مقدمه کي‌یې‌دپښتو ژبې پښتو ادب، پښتنوشاعرانو او لیکوالو په‌باب(له‌ځینو تېرو تنوسره)داعتناوړڅېړنه‌سوې‌ده.
دلاس‌ته‌را غلو معلوماتو له مخي د جارج راورټي پښتوگرامر هغه څلورم پښتو گرامر دی چي اروپایانو کښلی‌دی،تر ده پخوا د میجر لیچ ۴ (R. Ieech) گرامر په ۱۸۳۹ ع کال په کلکته کی

۴—دایسټ انډیا کمپنۍ له‌خواشخه یوهیأت‌په۱۸۳۷ ع کال‌له‌امیردوست‌محمدخان سره د خبرو له پاره کابل ته‌راغی.ددې‌هیأت‌یوغړی‌دغه میجرلیچ ؤ، اته میاشتي‌یې‌په کابل کي‌تېري کړلې، پرنګیانوچي(۱۸۳۹ ع) کال‌داپریل په پنځه‌ویشتمه ورځ کندهارونیو،دوې میاشتي وروسته چي‌د پرنګیانولښکری‌مخ‌پر کابل را وخوځېدلې،میجر لیچ یې‌دپولټیکل‌ایجنټ‌په‌توگه په کندهارکی پرېښود.

د پــر وفیسر ډو رن ا لما نی ( ۱۸۰۵-۱۸۸۱ع ) گرامر په ۱۸۴۰ع کال په پیتر زبو رگ (اوسنيلینن‌گراد) کي . او د کپتان و اگهن ( Vaughan ) گرا مر په ۱۸۵۴ع کال په لندن کي چاپ سوی دی، هانري جارج‌ر اورټي پخپل گر امر کي دمېجر لیچ او کپتان و اگهن دگر امر و نو یادو نه هم کړېده .

درا و رټي پښتو گر امر دو همه پلا په ۱۸۶۰ ع په لندن‌کي چاپ سو ی قطعه يې نسبتاً لو یه د ه ، مخو نه يې ۴۰۲ د ي ا و د (Part I) قید يې د کتاب‌پرو ڤایه نسته، دمقدمې‌پر خه‌يې دلو مړي‌چاپ تر مقدمې صحیحه، جامعه او گټو ر ه سوې‌ده،دلو مړي چاپ دمقدمې ځيني‌تېر و تني دلته‌سمي سوي‌دي،لکه :

دعیار دانش پښتو تر جمه چې‌په لو مړي چاپ کي خو شال خان ته منسو به سوې و ه، ه‌په‌دغه‌چاپ کی دخو شال خان دلمسی افضل‌خان ختک‌بللې‌سوې‌ده .

فتح‌خان یو سفزی او میر زاخان او رمړ ( انصاری ) چې‌په‌لو مړي چا پ کـي یو سړی بلل سوی‌ؤ په دغه‌چاپ کي‌سر ه‌بېل کړ ه سوي‌دي .

دفو ائدالشر یعت‌دتألیف‌کال چې‌دلو مړي چاپ‌دمقدمې په ۳۶مخ کی ۱۵۶۰ع (۹۶۸ه ق ) ښود ل سوی ؤ، دد و هم چا پ د مقد مې په ۳۳ مخ کی ۱۷۱۳ع = ۱۱۲۵ه ق ښوو ل سوی دی او داسي‌نو ري ....

در او رټي د پښتوگر امر د دو هم چاپ مقدمه د۱۸۵۹ع کال دنومبر په یوو یشتمه دبمبی په‌ناسک کي کښل سوې ده .

---

ه— وگو رئ: در او رټي دگر امر دلو مړي چاپ ه ۴مخ ـد اتېر و تنه تر ر او رټي‌دمخه‌یو ه بل‌ختیځ پوه کړې ده چي Dorn‌نو مېداو د پیتر زبو رگ‌په پو هنتو ن کی‌د پښتو ژ بي او ادبیاتو استادؤ .

ددغه گرامر د دوهم چاپ په پای کې دلښکري عدالت (نظمي محکمې) ۲۲-۳-۲۳-۴-۲۵-۲۶-۲۷-۲۷ مادې په انگريزي او پښتو ژبو کښلې دي، تر دغو مادو وروسته د رېښتونکلو نه د (نقل داپريدي او ملا) (نقل دزاړه او طبيب) (نقل دهلك ابيسر) ترعنوانو نو لاندې له انگريزي ترجمې سره راغلي دي، دغه ټول زياتوب په شپږو مخونو کې ځای سوی دی.

دغه پښتو گرامر دريمه پلا په ۱۸٦۷ع کال (۱۲۸۴هق) په لندن کې چاپ سوی دی، داچاپ هم څه اضافي او سموني (اصلاحات) لري.

د راورټي د پښتو گرامر يا دونه ترلو سرې چاپ اته کاله وروسته په ۱۲۸۰هق کال دنور محمد نوري کندهاري په پښتو گرامر (تحفة الامير) کې سوې ده ٦.

۲- پښتو انگريزي فرهنگ:

A Dictionary of Pushtu or Pukhtu Language of the Afghans. دا کتاب د

په نامه لومړی وار په (۱۸٦۰ع) (۱۲۷۷هق) کال دلندن په هرتفورډ کې چاپ سوی دی، په دغه فرهنگ کې پنځه ويشت زره پښتو او په پښتو کې دخيل لغتونه په انگريزي ژبه معنا سوي دي - د کتاب ټول مخونه ۱۱٦٦ دي، دوهم وار په ۱۸٦۷ع (۱۲۸۴ه ق) کال په کلکته کې چاپ سوی دی.

دنو ابمحبت خان بړيڅي (۱۱٦۴-۱۲۲۳ ه ق) تر رياض المحبت ۷ د

---

٦- د تحفة الاميرخطی نسخه د پښتو ټولني په کتب خانه کې خوندي ده.

۷- رياض المحبت دگرامر او قاموس يوه مجموعه ده- مولف په ۱۲۲۱ه ق کال (۱۸۰٦ع) ددغه کتاب له ليکني فارغ سوی دی - د«په خارج کی پښتو څېړ ونکی» کتاب په نهم مخ کي چي درياض المحبت د تأليف کال ۱۸۰۸ع ښودل سوی دی، تېر وتنه ده -۱۸۰۸ع دمؤلف دمرگ کال دی.

نواب‌الله یارخان بړیځي (۱۲۳۸ ه ق س) تر عجائب اللغات ۸ او دپروفیسر ډورن‌الماني (۱۸۰۵—۱۸۸۱ ع) تر پښتو انګریزي فرهنګ۹ وروسته‌دراورټي پښتو انګریزي فرهنګ دپښتو ژبې مفصل فرهنګ دی‌او تر اوسه پورې د پښتو لغتونو په باب خیرونکي اومطالعین ګټه‌ځني اخلي.

راورټي دخپل دغه‌فرهنګ په‌مقدمه کې‌دپښتو ژبې‌ډیر لغتونه په اردو کې دخیل شوولي دي.

۳- دپښتو اشعارو منتخبات:

دا کتاب د Selections from the poetry of the Afghans په نامه لومړی ځل په ۱۸۶۲ ع (۱۲۷۹ ه ق) کال او دوهم ځل په ۱۸۶۷ ع کال (۱۲۸۴ ه ق) کال په‌لندن کې‌چاپ سوی دی، په‌دې مجموعه کې‌د ګلشن روه دنظمونو انګریزي ترجمه کښلې‌ده، په‌دغه کتاب کې‌دخوشحال‌خان، رحمان بابا حمید مومندا وځينو نورو پښتنو شاعرانو دژوند انه‌حالات‌هم‌ځیړل‌سوي‌دي، دکتاب ټول مخونه ۳۸۰ دي.

راورټي دګلشن روه په‌مقدمه کې‌په۱۸۵۹ ع کال ددغه کتاب دجوړولو زیری کښلی دی.

---

۸—دنواب محبت‌خان کشرورورنواب‌الله یارخان په ۱۲۲۸ ه ق کال دعجائب اللغات له تألیفه‌فارغ‌سوی دی ـددغه کتاب کومه خطي‌نسخه چي په برتش‌موزیم کی‌په ۹۱ م‌لمبر خوندي ده ۳۲۲ پاڼی لري.

۹—دغه‌فرهنګ‌د Chrestomathy of the pushtuor Afghan Language په پای کي چاپ اوله ۸۷ ۳ مخه‌څخه تر ۶۷۷ مخه پوري‌ځای‌سوی‌دی، ددغه کتاب‌دچاپ کال ۱۸۴۷ ع او دچاپ ځای پیټر زبورګ دی.

۴— دپښتو محاورو رساله :

د اكتاب د The manual of pushtu په نامه لومړی وار په ۱۸۸۰ع (۱۲۹۵ ه ق ) کال‌او دويم وار په ۱۸۹۰ع(۱۳۰۵ ه ق ) کال خپور سوی دی

۵— دايسپ‌حکيم‌قصې :

داکتاب‌د The fables of Aesop in pukhtu په‌انگريزی‌نامه‌په ۱۸۷۱ع (۱۲۸۸ ه ق ) کال‌دلندن په‌گلبرټ‌او رنگټن چاپخانه کې‌چاپ‌سوی دی ، داد يونان خورا زړې‌قصې دي، راورتې پښتو کړي دي.

ځيني کسان Aesop‌او لقمان‌حکيم يو سړی بولي،خيال‌ښاري‌ددلی‌او شهی د کتاب‌دمقدمې‌په ۱۰ مخ کی کښلي دي :

«ديونانيانو ښخوانی زړې‌قصې د Aesop's fables په‌نامه مشهوري دي چې ښتانه يې د لقمان حکيم قصې بولي— Aesop په‌باب د ا خيال دی چي دحضرت‌عيسی(ع)تر زوکړي‌ښخوا په شپږ مه‌سدی کی د Samos نومي ښار اوسيدونکی مرئي ؤ.»

فرانسوی ختيځ پوه سوسيوليبان له‌احتياطه کار اخيستی دی‌او دتمدن عرب په ۱۳۴ مخ کي‌ئې کښلي دي: « د لقمان او Aesop قصې دغو مره سره نژ دې او ورته (مشابه) دي‌چي گمان کيږي‌يو له‌بله به‌يې اخيستی وي‌او يابه يې‌مأخذيووي»—سيدعلی‌بلگرامي(۱۸۵۱—۱۹۱۱ع) په‌حاشيه کې‌ورته کښلي‌دي:

«ايسپ(۶۱۹—۵۶۴ ق م)چي قصی يې‌تر اوسه پوري‌شهرت لري‌مريي ؤ تر آزاديدلو پس‌د«لاپه‌يا»پاچادده ډير قدرو کړ او په‌درنه‌سترگه‌يې‌ورته‌وکتل.»

دایسپ دامثالو مجموعه د ترکي او سیدونکي عیسوي راهب پلانود (۱۲۶۰-۱۳۱۰ع) جوړه کړي ده او د زاړه یونان او لاتین قصې یې د خلکو له خولو راټولې کړې دي د یونان او بیزانس پیژندونکو پوهانو په خیال Aesop یو موهوم افسانوي شخصیت دی، مګر لقمان یو حکیم دی چې په قرآن کې یې یادونه سوې ده او د یوځلو پښتو نکلو یوه مجموعه یې د نوموړي پلانود په ژوند په ۱۲۹۹ع کال په یورپ کې پیدا سوې وه ۱۰.

۶- دطبقات ناصري انګریزي ترجمه :

طبقات ناصري په پارسي ژبه دافغانستان دمشهور مؤرخ منهاج سراج جوزجاني (۵۸۹هق زوکړي) تألیف دی، چي په ۶۵۸ ه ق (۱۲۶۰ع) یې له لیکني فارغ سوی دی۱۱.

هانري جارج راورټي له ۱۸۶۵ع (۱۲۸۲هق) کاله څخه دطبقات ناصري

---

۱۰- وګوري: ادب مجله ۲ کال دویمه ګڼه ۶۲-۶۳مخونه.

۱۱- دطبقات ناصري یو مخورابشپړه او ګټوره نسخه په ۱۳۲۰- او ۱۳۴۳ه ش کلونو کې د لوی استاد پوهاند عبدالحی حبیبی په تصحیح، تحشیه او تعلیق په دوو ټوکو کي چاپ سوې ده، لومړی ټوک یې ۵۷۸-او دوهم ټوک یې ۷۰۵مخونه لري -لومړی ټوک چي دلیتهوګراف په ډول چاپ سوی دی. کاپي لیکونکی یې هم پخپله لوی استاد پوهاند حبیبی دی -په دوهم ټوک کي د لوی استاد له خوا په ۲۲۱ مخونو کی خوراګټور تعلیقات لیکلي سوي دي او ترهغه وروسته په ۶۵ مخو کي دسریو، نمایو او شجرو فهرستونه راغلي دي.

مطالعې او ترجمې ته ملاتړلې وه ، په ۱۸۸۰ع (۱۲۹۸هق) کال یې ددغه کتاب انګریزي ترجمه بشپړه اوچاپ کړله ،دغه ترجمه ګټوري حاشیې او دقدروړ تعلیقات هم لري ،مقدمه یې په څورلسو مخونو کې کښلې ده، متن یې پر دوو ټوکو ویشلی دی،لومړی ټوک یې ۷۶۰–او دوهم ټوک یې ۵۳۶ مخونه رسیږي په ۲۳ مخوکي څلور ضمیمې لري ، د سریوا وځایو د نومونو مفصل فهرست یې ددوهم ټوك په پای کې سته .

۷– دافغانستان په باب یادداشتونه :

---

دا کتاب د Notes on Afghanistan په نامه په ۱۸۸۸ع(۱۳۰٦هق) کال په لندن کې چاپ سوی دی، دافغانستان او بلوچستان په باب د پرجغرافیایي ، نسبي او کلتوري معلومات پکې سته، دا کتاب سرجارج راورتي دانګلستان دصدراعظم مارکو ایس آف سالسبري په غوښتنه لیکلی دی ۱۲.

---

۱۱– ده ۱۸۸ع کال په اواسطو (۱۳۰۳هق) کی دخرطوم دانقلاب او دروسانوله خواڅخه دافغانستان دخاوری (پنجده) دنیولوله امله د انګلستان دصدراعظم ګلاډستون کابینه ړنګه سوله. پرځای یې دانګلستان محافظ کارګوند د Lord Salisbary په مشرتابه نوې کابینه جوړه کړله . په دغه وخت کی سیدجمال الدین افغاني هم دستر بلنې په بلنه له پاریسه څخه لندن ته رسېدلی ؤ او دستر بلنې په کورکی اوسېدی، د سالسبری له خوا څخه راندولف چرچل دبلنې په کورکی ورسره ولیدل او دشرق دسیاست په باب یې دسید نظر یې سالسبري ته یووړلې، مګر سالسبری دسید نظریې ونه منلې او دنوموړی راندولف چرچل په واسطه یې منفي جواب ورولېږه .

ددې کتاب ابتداء ميجرجارج راورتي په ١٨٥١ع کال دپښتو راو څينو نورو پښتني سيمو په هغو جغرافيايي معلوماتو او نقشو کړې وه چې د بمبي دجغرافيايي ټولنيپه غوښتنهيې تهيه کولې .

٨- دهندوستان تخنيکي اصطلاحات :

داکتاب د Hindustani technical terms پــــه نـامه پــــه ١٨٥٩ع (١٢٧٦هق) کال چاپ سوی دی ،په دغه کتاب کي هغه اصطلاحات راټول کړه سوي دي چې په هندوستان کی د انجينيری او تعميراتو له پاره باب وو .

٩- عهدجديد (انجيل) :

د دغــــه کتاب يــوه خطينسخه د Newtestament پــــه نـامــه دبرتشموزيم په کتلاك کي په ٩٧٢٩ لمبر خوندي ده ،پاڼي يې ١٩٣ دي دغه نسخهچي په دوه ټوکه کي کښلې ده دانجيل (عهدجديد) پښتو ترجمهده .

دعهد جديد ٣،د پښتو ترجمې دليکلو نيټه١٨٦٠ع (١٢٧٧هـ ق) کالدی دکتاب په پای کی د ترجمې د بشپړېدلو تاريخ داسي ويلسوی دی :

داتمامتاريخ يېروح‌په داشانوويې :

«چيانجيل راغی له ربه پرمسيح »

د« پهخارج کي پښتو څېړونکي» کتاب په ٦ مخ کي ددغه پښتو انجيل دچاپ کال ١٨٦٣ع ښوول سوی دی . په برتشموزيم کی د پښتوآثارو

---

١٣- Bible (انجيل) پر دوو برخوويشلی دی ، لومړی برخه يې زړه عهد نـامــــه old testament او وروستی بــرخه يې نوی عهدنامه New testament بولي .

دنوي کتلاك په ۲۴مخ کي کښلی د ي : د عهد جدید د غه پښتو تـرجمه دسېجر جارج راو رټي ترنګراني لاندي سوېده ـ پخپله دراو رټي‌ترجمه نه ده . د لته دې خبري‌ته بايد د لوستونکو پام راواړو ل سي‌چي ترسيجرراو رټي او سلګرو دمخه هم دانجیل ترجمې په پښتو ژبه سوي دي ،يوه ترجمه‌يـې دمخزن الاسلام انګريزي‌مترجم Dr. John Leyden (۱۷۸۵-۱۸۲۱ع) کړېده . دغه ترجمه د میجرجا رج راورټي‌ترزېږېد لوا ووه کاله پخوا (په ۱۸۱۸ع ) کلکتې‌ته‌نژدې‌په سیرا مپور نومي‌ځای‌کي د انجیل خپرولو دټولني له خوا دنوموړي جان لايډن په اهتمام چاپ سوې ده‘د میجرجا رج راو رټي او سلګرو دعهدجدید په پښتو ترجمه کي‌دجان‌لايډن دترجمې‌ځيني تېروتنی هم يادي سوي دي .

. ۱ـګلشن‌روه: په‌راتلونکو پاڼو کي‌به‌ددغه کتاب‌په‌باب مفصل‌وږغېږو .

---

## ج‌ـ ناچاپ‌سوي کتابونه:

۱ـ دهرات او خراسان تاریخ :

دغه کتاب دهرات او خراسان په باب دمیجرراو رټي دپنځو سو کالو دمطالعې نتیجه‌ده ، له شپږوخطي کتابو څخه يې ددغه اثر په ليکنه کي‌ګټه اخيستې‌ده ـ يـــوه خطي نسخه‌يې دلندن پــــه India office Library کي خوندي ده .

۲ـ دافغانانو تاریخ او ددوی هیواد .

۳ـ دسینګ او هزاره تاریخ :

په دې‌کتاب‌کي دهغو هزاره وو په باب خبرې نه سو ېدې‌چي په افغانستان او دمنځنۍ‌ایشیاپه نورو برخو کي اوسي .

۴—په افريقاکي داسماعيليه فرقې و ده او پر مخ تګ .

۵— دتاريخ الفي انګريزی ترجمه :

تاريخ الفي تر ۱۰۰۰ ه ق کال و روسته دجلال الدين اکبر ګورګاني (۹۶۳-۱۰۱۴ هق) په امر په در يو تو کو کي کښل سوی دی، مؤلفان يې دادي:

بخشی نظام الدين احمد هروی (۹۵۸-۱۰۰۳ هق) دطبقات اکبری مؤلف

ملاعبدالقادر بدايونی (۹۴۹-۱۰۰۶ هق) دمنتخب التواريخ مؤلف

حکيم همام ګيلانی (۱۰۰۳ ه ق مړ)،

فتح الله شيرازي، ملااحمد مشهدی او آصف خان .

دتاريخ الفي مقدمه ابو الفضل علامی (۹۵۸-۱۰۱۱ هق) کښلې ده .

۶—انګريزی پښتو فرهنګ :

دغه کتاب دميجر جارج راورټي تر ټولو وروستی تأليف دی، دده په مرګ نيمګړی پاته سوی دی . بې ځايه نه ده چي وو ايو که څه هم دجارج راورټي اولادپاته نه سو ،خو دده مؤلفات به دده نوم تر ډېري مودې پوري ژوندی وساتي .





«۲»

دسیجر هانري جارج راورټي (۱۸۲۵-۱۹۰۶ ع) په چاپي آثارو کې یو مشهور کتاب دغه «گلشن روه» دی، چې د دریم چاپ نسخه یې د افغانستان د اطلاعاتو او کلتور د وزارت له خوا د ادی د پښتو ژبې او ادب مینانو ته وړاندې کېږي.

دا کتاب لومړی وار په ۱۸۶۰ ع (۱۲۷۷ هـ ق) کال د هرټ فورډ (Hertpord) په سټیفن اسټین (Stephen Austen) چاپخانه کې او دوهم پلا په ۱۸۶۷ ع (۱۲۸۴ هـ ق) کال په لندن کې چاپ شوی دی .

دگلشن روه د لومړی چاپ په پای کې یوه لنډه مقدمه (Preface) په انگریزي ژبه سته، دغه مقدمه گوتې د ۱۸۵۹ ع کال په وروستي میاشت (۱۲۷۶ هـ ق) په بمبۍ کې کښلې شوې ده، په دغه وخت کې هانري جارج راورټي دایسټ انډیا کمپنۍ د بمبۍ په دریم لمبر پلټن کې د کپتانۍ په رتبه خدمت کاوه، ده تر دې کتاب دمخه دوه نور پښتو آثار (پښتو گرامر او پښتو انگریزي فرهنگ) د پښتو ژبې د زده کړې هواخواهانو ته وړاندې کړي وو .

دجارج راورتي ددغه دريم پښتو کتاب په سر کي يوه لنډه پښتو ديباچه هم ستهچي کېداى سي دانگريزى مقدمه گوتي ترجمه يې وبولو .

گلشن روه دپښتو ژبي دنثراو نظم يوه درنه مجموعه ده چيمؤلف دشپاړسو ادبى ،تاريخي اومذهبي متنونودخوخونسخو ترتهيې اومقابلې وروسته په ډېراهتمام اوتوجه ترتيب کړې ده، جارج راورتي دکتاب پهمقدمه کي کښلي دي :

«پسندول اوجمع کول له کتابو متفرقو څخه مشکل کاردى، پهنظردانصاف په نسبت و مصنفانوته ، مگرکو ښښ مي وکړ د پاره دواضح کولو دنمونې دعبارت او اصطلاح دهريوه له مصنفانو له هربابه يادنثر يادنظم دپاره ددې چي په کار د شاگردانو پهزده کړه کښې دژبې د پښتو هم راشي.

. . . . . . . . .

داوار په نظر دقيق او فکر عميق سره مقابلهشوي دي، له څوزړو نسخو سره چي مشهوري دي او له نوروکتابوسره چي پهلاس مي اتفاقآراغلي وو ، چي که نوم يې اروېده کېږي ، مگر په نظرنه راځى.

«گلشن روه»دپښتو آثارو دوهم گلچين دى چيارو پايانو ترتيب کړى دى ترجارج راورتی ۱۳ کاله دمخهپروفيسر برنهارډ ډورن الماني Bernhard Dorn

( ۱۸۰۵ — ۱۸۸۱ع ) هم یوه مجموعه چـو ړه کړې وه چي د Chrestomathy of the pushtu or Afghan language په نامه په ۱۸۴۷ ع (۱۲۶۳ھ ، ق ) پـه پیتز بورگ (او سني لینن گراد) کي چاپ سوې ده.

«گلشن روه» پر دوو برخو ویشلی دی، لو مړی یې د نثر برخه ده چي په ۱۸۲ مخو کی ځای سوې ده او ور پسې یې دنظم برخه ده چي په ۱۲۲ مخو کی را غلې ده، د نثر او نظم برخه یې دمخو نو په لیکلو عدد کي تسلسل نه لري او دنظم د برخي پر لو مړي مخ (چي یو سلو او وه اتیا یم مخ کیږي) بیا د (یو ه) عدد کښلی او علی الترتیب پسی زیات سوی دی.

. . . . . . . . . . .

الف— د گلشن روه د نثر په برخه کي له دغو شپږو کتابو څخه څو څو پاڼې را اخستل سوي دي:

## ۱ – تاریخ مرصع:

د خو شال خان (۱۰۲۲—۱۱۰۰ھ ق )لمسی، د اشرف خان هجري( ۱۰۴۴— ۱۱۰۶ھ ق) زوی د دو لسمي هجری سدی په لو مړی نیمایي کي د ختکو مشهو ر خان (افضل خان) د دغه کتاب مؤ لف دی، افضل خان په ۱۰۷۵—یا ۱۰۷۶ھ ق کال په اکوړه کي زیږ یدلی دی، د ۱۰۹۲ ھ ق کال د دریمي خو ر (جمادی الاو لی په لو مړی هفته کي چي دده پلار (اشرف خان) په پیښو ر کي د گو رگانی حکو مت د سیاسي او اداري نماینده له خوا بندی کیدی ءپه دغه و خت کي افضل خان خپل

عمر شپاړس او وه‌لس کاله‌شو و لی‌دی *او خو شال‌خان‌چي کو م مثنوي‌د زنتهبو ر په‌بندیخانه کی(د ۱۰۷۵ هق‌له رجب‌څخه‌د ۱۰۷۶ هق کا له‌دسیانی تر پنځمي‌پوري) و یلی‌دی ،په‌هغه‌ا و دستار نامه(د ۱۰۷٦ ه ق )تالیف کي‌هم‌دافضل‌خان یادو نه سو یده. * *

دافضل‌خان پلار (اشر ف‌خان‌هجری) په ۱۱۰٦ ه ق(۱٦۹۴ ع) کال‌دگو ر گاني پاچهی‌دیو ه‌سیاسي بندي‌په‌تو گه‌دجنو بي‌هندو ستان‌په‌بیجاپو ر کي و مړ ، مو ر يې چي‌دملک‌تو ر عبدالعز یز خیل‌دو لت‌زي(و ر کزی)لو ر ده،* * *تر ۱۱۱۵ ه ق پو ري‌ژ و ندی‌و ه.

دافضل‌خان دمړ ینې‌په نیټه کي اختلاف‌سته،د کامگار ددیو ان په‌مقدمه کي ۱۱۵۳ ه ق—په تو ار یخ خو ر شیدجهان‌او تار یخ‌حیات افغاني کي۱۱٦۱ ه ق او د کاظم‌خان شید ا په‌دیو ان کي(په‌دي‌شر ط که دشیداپلار وي) ۱۱۸۳ ه ق یا۱۱۸۹ ه ق دافضل‌خان دمر گ کال شو و ل سوی دی ، په دي حساب نو د افضل‌خان مر گ‌دلو مړی ر و ایت له‌مخې‌په ۷۸ کلني—ددو هم ر و ایت له‌مخې په ۸٦ کلني‌او ددر یم ر و ایت‌له‌مخي په ۱۰۸ یا ۱۱۴ کلني کي پېښ دئ ، شیر محمدخان‌گنداپو ر دتو ار یخ‌خو ر شید جهان په‌۲۴۴مخ او د پټې‌حیات خان‌د حیات افغاني په ۳۲۲ مخ کی پر ختکو باندي دافضل‌خان دسر داری سو د ه

*« و گو ری : دچا پی تار یخ سر صع ۹۳ مخ.

** و گو ری : دستار نامه ۴۸مخ د کابل چاپ .

*** دو لت زي په ملاگو ر یو ، په‌سنګرخیلو کا کړ و ، په‌منځو ر و گدانه‌و کي‌هم سته ـدو ر کز و دو لت زي‌دتیر ا په مستو ر ه کي‌او سي اود و ر کز یو له «سمیل» پښې څخه شمېر ل کېږي .

یوشپیته کاله شو ولې ده او دافضل خان دسر داری پیل یې د پلار په مرگ پوری نښتی څرګند کړی دی – ددوی په دغه و ینا کې تناقض سته، ځکه چې اشرف خان په ۱۱۰۶ ه ق کال او افضل خان (ددغو مأخذونو په قول) په (۱۱۶۱ ه ق) کال مړ دی او د پلار و زوی د مرګ د کلونو ترمنځ فاصله پنځه پنځوس کاله راځي نه یو شپیته کاله – ددغو مأخذونو تیروتنه له دې ځایه پیښه ده چې دوی د اشرف خان مرګ د ده د پلار خوشال خان تر مرګ دمخه بللی دی – زما خپل خیال دادی چې ددغو دوو مأخذونو مؤلفانو (چې غالباً دو هم یې له لومړي څخه دغه روایت نقل کړې دی) د اشرف خان د بند (۱۰۹۲ ه ق) او مرګ (۱۱۰۶ ه ق) نیټې سره ګډې کړي دي–افضل خان ربښتیا هم د پلار تر بندي کیدلو وروسته یو شپیته کاله نور هم ژوندی ؤ او درسمي سرداری پیل یې د ۱۱۰۰ ه ق د صفري له لومړی وړځي څخه سویدی چې تر ۱۱۵۳ ه ق کاله پوري ۵۳ کاله کیږي.

(وګورئ ! دتاریخ مرصع ۸۵ مخ )

دافضل خان قبر د کاکا صاحب د زیارت په شاو خوا کې دی او دوست محمد کامل یې د تاریخ مرصع په مقدمه کې د زیارت له احاطې څخه پنځه و یشت ګامه لیرې ښیي .

له تاریخ مرصع څخه دا نه معلومیږي چې مولف کله ددغه کتاب له کښلو و زګار سوی دی، خو په تاریخ مرصع کې د ۱۱۲۳ – او ۱۱۳۶ ه ق کلونو یادونه دا ښیي چې مؤلف به له تر لږه له ۱۱۲۳ څخه تر ۱۱۳۶ ه ق پوري د دغه کتاب په کښلو بوخت ؤ، په دغه باب دافضل خان خپل الفاظ دادي:

«یوسف، اېریدی او هزار میرو رکزی ..... .... پـه قـول په قرار راوستل ، هزاري هزاري منصب یې دوار وته ور کړه، پادشاه په حضور وبلل، وطن یې پانی پت څخه و رکړ او س چې سن ز رسل در و یشت دی، هغه وطن ددوی داو لاد په تصرف دی .»

(تاریخ مرصع د پیښور چاپ ۵۰۲ مخ )

«دا واقعه په وروځ ددوشنبې دوه ويشتم دشوال سنه زرسل شپږديرش په وقوع راغله.»

(تاريخ مرصع دپيښور چاپ ۸۱ ۳مخ)

دتاريخ مرصع يوه برخه دمخزن افغاني پښتو ترجمه ده چې د حبيب الله زوی نعمت الله هراتي او دساماني او سيدو نکي هيبت خان کاکړ د ۱۰۲۰ ه ق په شاو خوا کې دننگيالي پښتانه خان جهان لو دي (۱۰۳۰ ه ق شهيد) په حکم په پارسي ژبه کښلې ؤ، دپير روښان حالات يې داخوندرويزه دتذکرة الابرو الاشراره څخه نقل کړي دي.

دخوشال خان او دده دشرانو حالات يې دخوشال خان له بياضه اخيستي دي - د کتاب دبشپړ يدلو تروخته پوري نوري پيښې افضل خان پرزياتي کړي دي دځينو پښتنو امراوو لکه: نوموړی خان جهان لودی -د درياخان زوی بهادرخان باکلزی داو دزی (۱۰۱۵—۱۰۵۹ ه ق) دياد سوي بهادرخان ورور دلير خان (۱۰۹۳ ه ق مړ) نظر بهادرخان خويشکی (۱۰۶۲ ه ق مړ) پردل خان بړيڅي (تر ۱۰۵۹ ه ق پوري ژوندی)—دنوموړي بهادرخان زوی دلير همت خان (دنوښار تهانه دار) اودځينو پښتنو بزرگانو، لکه: شيخ آدم بنوڼي (۱۰۵۳ ه ق مړ) —شيخ رحمکار ختک (۱۰۶۳ ه ق مړ) —اخوند خالاک، پير سباک شيخ نسک ختک—ميا جميل بيگ ختک—ميا الله داد—راول فقير— شيخ بها درختک (دشيخ رحمکار پلار) هم ځيرل سوی دي—دصفويانو په مقابل کي د ننگيالي پښتانه ميرويس خان ښالم خيل هوتک (۱۱۱۹—۱۱۲۷ ه ق) دپورته کيدلو او دايرانيانو له غصب او استيلاء څخه دکندهار خلاصون ذکر هم پکي سته .

دغه مطلب پخپله افضل خان د کتاب په مقدمه کي داسي راوړی دی :

«داتواریخ یې دپښتنو پادشاهانوله پارسي نه چې په وخت دجهانګیر پادشاه د خانجهان لودي په حکم چې دفرزند خان په خطاب سرفرازوه ، خواجه نعمت الله هروي کړي وه ترجمه کړاو هرڅې پسله هغه لغایت دخانجهان لودي لوی لوی امر آګان دپښتنو تېرشوي دي او سرګذشت دکابل دصوبې او حقیقت دخپل قبایل او اولیاء الله چې پسله هغه تیغ دولایت په سیدان د هدایت بلند کړی دی، ورسره پیوند اوملحق کړ . » ۱۳

تاریخ مرصع په بشپړ دول تر اوسه پوري فقط یو وار په پښتو رکی په ۱۹۷۳ ع (۱۳۹۳ هق) کال دیونیورستي بك ایجنسۍ له خوا چاپ سوی دی، دپښتو رپیاوړی لیکوال دوست محمد کامل مفصلې حاشیې او جامع تعلیقات پرزیات کړي دي اومتن یې هم د شپږو خطي بشپړو او نیمګړو نسخو له مقابلې وروسته ترتیب کړی دی -۱۰- د چاپي تاریخ مرصع متن په ۶۲۳او دښاغلي دوست محمد کامل اضافي په ۷۶۵ مخوکې ځای سوي دي فهرستونو او غلطنامې یې ۱۱۳ مخه نیولي دي .

له تاریخ مرصع څخه په ګلشن روه کې دراوړلي اقتباس په یو پنځوسو مخوکې (له ۳څخه تر ۵۳مخه پوري )ځای سوی دی . پادري هیوز هــم (په ۱۸۷۲ع =۱۲۸۹ ه ق) کال په کلید افغاني کې دغه برخه راوړې ده ،

---

۱۴- وګوریء : دچاپي تاریخ مرصع ۱۳ مخ .

۱۵- دتاریخ مرصع دغه شپږ خطي نسخې په دغو ځایو کې خوندي دي : دري نسخې دلندن په انډیا آفس او برټش موزیم کې - یوه نسخه دلاهور په پنجاب پبلك لائبریري کی -یوه د هوتي سردان د لفتننټ کرنل نواب سر محمد اکبر خان په کتابخانه کې- یوه دشیدودعبدالسلام خان خټك په کتابخانه کې.

خو دپای خلو رمخه‌یي چي دخوشال خان د خانی دزماني پښتو دي پري ایښي‌دي ۱۶، په گلشن‌روه کي د تاریخ‌مرصع را نقل سوي برخه د چا پی تاریخ مرصع له ۲۳۰مخه پیل سوي‌ده، خو د چاپي تار یخ مرصع ځیني برخي په د غه اقتباس کی نسته ا و د موضوع تسلسل یي شلېدلی دی ۱۷.

## ۲ـ فوائدالشریعت :

مـؤلـف یي اخـوندقاسم پاپین خېل‌دی،۱۸ـ دخارکوف ا و پېترزبورگ د پوهنتونو استاد پروفیسر بـرنها و ر ډ ډورن آلمانـی( ۱۸۰۶-۱۸۸۱ ع )د Chrestomathy of the pustu or Afghan language دمقدمي په‌شپږم‌مخ کی کښلي دي :

«په فوائدالشریعت کي دمؤلف‌نوم نه دي راغلی ،دکتاب د لیکني له سبک او په مقدمه‌کي داخوند درویزه د پیر سید علی ترمذي له متا بنی څخه فکر کوم چي داکتاب به داخوند‌درویزه په قلم کښل سوی وي ... »

۱۶ـ وگوریء: کلیدافغانی له ۲۰۷ مخه څخه تر ۲۴۳ مخه پوري، دلاهور چاپ ۱۸۹۳ع .

۱۷ـ وگوری دگلشن روه ۹۳ مخ .

۱۸ـ پاپین دننگرهارپه شینوارو کي دیوه ځای نوم‌دی ، په دغه ځای کي‌حسن‌خیل شینواري اوسي .پاپین له«گرگری» څخه‌یو کروه اوله‌شیخ میدانه څخه دوه کروه لیري دي( وگوریء : پښتونستان ۲۷۸مخ) داخوند‌درویزه ننگرهاري استادان ملا سنزر اوملا زنگی اود غه رازد شیخ سعدی‌لاهوري نقشبندی (۱۱۰۸هق‌مړ) مشهورخلیفه شیخ فاضل د پاپین له خلکو‌څخه و و میاجان محمدچي اولاده یي‌اوس په چکنور کی اوسي هم‌دپاپین اوسېدونکی‌و .

دنوموړي پروفیسر دې تهنهدی پام سوی چي مؤلف په فوائد الشریعت کی خپل نوم په صراحت سره ښوولی دی ، مثلاً :

په مقدار دخپلی پوهي ، دسرو رله محبته
دافقیر قاسم هم لږخه بیان کړي احوالونه ۱
«قاسم واوره ،په زړه پندکړه ،هره سادمرګ ناري دي ».۲

عبدالحلیم «اثر» دپېښور دپښتو مجلې (۱۹۵۹ع کال په څلورمه ګڼه کی دفوایدالشریعت مؤلف «شیخ قاسم ستي زي خلیل» ( ۹۵٦ - ۱۰۱٦ ه ق ) ښوولی دی او په ۱۹٦۳ع کال یې د «تېرهېرشاعران »په ۲۲مخ کي بیادغه بابو لالي تکرارکړي دي ،دښاغلي «اثر»دې تهنهدی پام سوي چي شیخ قاسم سلیماني خلیل ستي زی په ۱۰۱٦ ه ق کال بنارس ته نژدې په چنارګړه کی مړاوښخ سوی دی او دفوائد الشریعت مؤلف اخوند قاسم خپل اثر په یقیني توګهتر ۱۰۷۲ ه ق کال وروسته کښلی دی، داځکهچي اخوندقاسم دفوائدالشریعت په مقدمه کي دپیربابا ( ۹۹۱ ه ق مړ) ترستاینې وروسته داخونددرویزه (۱۰۲۸ مړهق) او اخوندکریمداد( ۱۰۷۲ ه ق)دعلمی او مذهبي زیارونو یادونه کړېده او دوی دواړه یې دشهیدانو او واصلانو

---

۱ـوګوریء : دفوائدالشریعت دهغيښښپړي خطی نسخې ۳۳۰ مخ چي دپښتو ټولني په کتبخانه کي خوندي ده .

۲ـوګوری : دفوائد الشریعت ۳۲ مخ دلاهورچاپ ۱۸۳۹ع.

(سره سوو) په نامه بللي دي ،۱۲، داخوند قاسم خپله وينا داده:

عجب نور دی پیدا شوی ،د سرو رله خاندانه ۲۲

و آفغان ته راختلی ،د«ترمذ»له پاکه کانه ۲۳

پر آفغانو توره شپه وه، گمراهي پرې غلبه وه ۲۴

«سیدعلی»مثال دنور ؤ ،دغه شپه یې کړه روښانه ۲۵

څه ښه بخت دیوسفزي ؤ ،چې دغوث نظر پروشه

دایې بخت ازلي ؤ، عنایت شوله سبحانه

---

۱۲-داخوند کریمداد د مرگ دوی «تاریخ یې ماده» دخزینة الاصفیا مؤلف مولوی غلام سرور لاهوری په یوه رباعي کي داسي راوړی دي :

چون کریم واکرم واهل کرم

باکرامت گشت در جنت مقیم

«اهل خلوت» سال وصلش هست ونیز

«عالي عرفان کریم ابن الکریم »

۱۰۷۲

۲۲-نور -نمو ،لمر

۲۳-په ځینو نسخو کی د «افغان» پر ځای «افغانان» کښلي دي( وگوری د پښتو ټولنی دخطي فوائدالشریعت نیمگړې نسخه )په ځینو نسخو کی «ترمذ» کلمه «ترمنځ» کښلي ده(وگوریء د پېښور د پښتو اکاډیمی خطي نسخه ) .

۲۴-په زیاترو نسخو کي د «افغانو» پر ځای «افغانانو» کښلي دی .

۲۵-په زیاترو نسخو کی د «سیدعلی»ترمخ احتراماً دشیخ ،قطب اوغوث کلمې زیاتي کړې سوي دي او دنیم بیتي وزن یې وران کړی دی .

شا کراو سي ء افغانانو ، دغوث پیر صاحب له حقه ۲۶
چې د دین کو ر یې ودان کړ ، گمراهي یې کړه ویرانه
دو لیانو سر حلقه ؤ ، په خپل وقت کې یگانه ؤ ۲۷
چې و مو ړته ر سېدلی ، په ر حمت ؤ له رحمانه ۲۸
(افغانانو) هغه نو ر یې و «شهیداخون» ته پر ښښود
خدای دې پاک کړ ده ار وا کا ، ده هجرت که له جهانه

....................

«اخو نان شهیدان» دو اړه
خدای پیدا کړ ل چر اغو نه
پر افغانو ملك صفاشه ۲۹
دین ر و ښان شه پر ملکو نه
دگمر اهو موندېږي و کېښ ۳۰
نیست نابو د شو بد عتو نه

.........................

۲۶–په زیاتر و نسخو کې د «شا کر » پر ځای «شکردار» کښلي دي په ځینو نسخو کې د «شا کر اوسي ء» پر ځای «شکرو بلسي ء» راغلی دی (وگو ری عد پښور د پښتو ا کاډیمي خطي نسخه)
۲۷–په ځینو نسخو کې د «یگانه» تر مخ «در» کله هم زیاته کړ سو یده.
۲۸–په زیاتر و نسخو کې د دغه نیم بیتي په سر کې [بر کت] کله زیاته کړه سو یده .
۲۹–په زیاتر و نسخو کې د «افغانو» پر ځای «افغانانو» کښلی دی.
۳۰–موندېږي– بېخ (و یخ) ، اصل ، تاداو.

دوی و اصل شوه له هجرته
نو ریې پر ښو تر قیامته

...........

پلار و زوی نور و قمر ملک یې رڼان کړ ۳۱
تاریکي یې کړه صفا دین یې روښان کړ

............

په ارواح یې دعا کانی ء ،ور پسې کړې ء خیراتونه ۳۲
خدای د دوی له برکته، گوندي درکړي جنتونه

تر دغه وروسته مؤلف د ځان په باب وایي :

بې عمله دی بې علمه، دامن گیر د شهیدانو ۳۳
په ټولی یې د حضرت کړه ، په حرمت دي د ولیانو

---

۳۱- د پښتو ټولني په نیمگړې نسخه کې د دغه نیم بیتي د قافیې کلمه «رنړان» کښلې ده، خو د پښتو ټولني په بشپړه نسخه کې «رڼا» ده .

۳۲-د پښتو ټولنې په نسخو کې دغه نیم بیتی داسی راغلی دی: «په ارواح یی دعا کانی ء پسی کانی ء خیراتونه»

۳۳-میر خان شاعر چې د اخوند کریمداد کومه مرثیه ویلې ده په هغه کې یې اخوند کریمداد د کوهستان د کفارو له لاسه شهید بللی دی :

ستا په زړه کې یو مقصود ؤ
ځکه ته د کوهستان وسرته ولاړې
غه مقصود دي خدای حاصل کړ
ځکه رنگ د شهیدی په وینو ولاړې *

دعبدالحلیم اثر داخبره چي «شیخ قاسم ستی زی (۱۰۱۶ هـ ق مړ) دفوائد الشریعت مؤلف دی» په دې همماتېږيچي راو ړتي دپښتو ګرامر ددو هم چاپ دمقدمې په ۳۳ مخ کی کښلي دي :

«فوائد الشریعت یو باارزښته اثر دی چي اخوندقاسم یې په ۱۱۲۵ هق کال له لیکنی فارغ سوی دی ، اخوندقاسم داشنغر او پېښو ر دملایانو مشرؤ.» مو ږو ینو چيددې ړو ایت له مخي دشیخ قاسم ستی زي دمرګ او دفوائد الشعریعت

*کریمداد دین ډیوه وه
دسرګوتي په باد سره شوه ځای یې خاورې
داخوند زوی کریمداد دی
چيخبری یې دهندتر ملکه و لاړې

دالپوري حافظ همداخوندکریمداد شهادت ته داسی اشار کړې ده :

یوعالم وې بل شهید شوې
عجیبه درفر یدشوې
د«کانجو» سیاکریمداده »
سانیولې لمن ستاده

په پخپله عبدالحلیم «اثر» هم دروحانی ترون په ۹۳۳ مخ کي اخوند کریمداد دشهید باباپه نامه بولي اووایی شهید باباد سوات په کانجو نومي ځای کی شخ دی .دنو موړي عبدا لحلیم ا ثر دیوه بل کتاب تپر هېرشاعران په دوو لسم مخ کی هم دسوات په چرړې ( اوسنی مدین) کیدکفار وله لاسه داخوند کریمداد دشهیدېدلو ذکرسته.

دتالیف او تکمیل تروخته ۹۰ ۱ کاله واتـن ( فا صله ) سته شیخ قاسم ستـىزي پير دىاوآخـونـد قـاسم پـاپینخـېل دمـلایانو مشرـ دراو رتيږد روایت ملاتړ په تاریخ مرصع کيهم موندلای سو، افضل خانختکد ۱۱۳۶ هق کال په واقعاتو کي اخوندقاسم دپېښو ر دعلماو ومقتداښو ولیّ دیاو له شیخانوسرهيهمدده رابطه یاده کړېده،دافضل خانخېل الفاظدادي :

«(دکابل صوبه دار) په اوه وَیشتم دشعبان سن ز رسلشپږ دپرشسرای ته راغی ،دپره‌شه ..........

سرفراز ۳۳ چي لـه پیرسباکـه په تیښته پښاور ته لاړو ه ،په زاخېلو ناست وه په عالمانوشیخانوځای پـه ځایَ گزیده ، ویل بـه يېچيحـق دملافلانه(افضل خان ختک) لاندي کړی دی ، شریعتدي راسره وکاندي، تاسي مددملگیرِيَ راسره وکانيء،چيخپل حق بیاموسم ،پهداوخت دپښاور دعلماوښه تسلط شوی وه ، په حکامي معاملاتو کښي هم دخیلوه،خبری سره گرزېدي او زه لاپهتو رو کښيوم چياخون قاسم چي په د آوان کښي مقتدادپښاور دعلماوو وه اوشیخانوسره گونه پیوند داخلاص يېدرلهٔ، آمد ورفت يې ورسره کاوه.»

افضل خان ختک چي پخپل یوهجواِبي لیک کـيپـه۱۱۳٦ هـ ق کال نوموړي اخون قاسم ته کوم القاب راوړيدی له هغوالقابو اودخطاب له

---

۳۳ــسرفرازگل دبازگل زوی د ضیاء الدین آزا دگل ( د۱۰۸٦ هـ ق پـه شاوخواکی مړ) لمسی اودشیخ رحمکارکاکاصاحب (۹۸۳-۱۰٦۳ هـ ق ) کړوسی ؤ.

لـه افضل‌خان ختکسرهيې شخړه پېښه وه .

سیاقه ښځه هم داخون قاسم دلوړعلمي شهرت قدرت او مقام اندازه معلومېږي او دراوړتي داخبره زړونو ته اچوي چې اخون قاسم داشنغر او پښو ر دعلماو ومشرو، افضل خان داسي کښلي دي :

«فضلیت و کمالت دستګاه ،قدوة العلماء ،زبدةالفضلا ، حضرت اخوند محمدقاسم جیو .....

هرچه راه طریقت مشایخ و بزرګان است از آن مهربان پوشیده نیست... فقیر را چون آن مهربان راآیه خیر می داند اختیار نیست، هرچه در باب این نحیف توجه خواهند فرمود، عین مصلحت خواهد بود ،اختیار ایشان است... بهرحال فقیر متابع رضای آن مهربان است ....» ۳۵

دفوائدالشریعت دمؤلف په باب بله تېروتنه د اکسفورد پوهنتون د استادا نګرېز ختیځ پوه James Fuller Blumhardt ده چي په

Catalogue of the Marathi, Gujrati, Birgali, Assami Oriya pushtu and sindhi manuscripts in the library of the British museum.

کې يې کړېده ۳۶ ده کښلي دي :

«دفوائدالشریعت په مقدمه کې مؤلف ځان دعبدالله زوی ابوالقاسم ښوولی دی.»

د پروفیسر بلوم هارټ د غه تېروتنه د پښو را کاږ یمی د پښتو مجلی دلوړی ګڼې په ۱۰ مخ کی هم نقل سوې ده. خو ښکره ښي وروسته دمضمون لیکوال ،دفوائدالشریعت مؤلف اخوندقاسم ښوولی دي او دايې هم زیاته

۳۵-وګوریء : دچاپي تاریخ مرصع ۴۷۰-۴۷۱-۴۷۲ مخونه .

۳۶- داکتلاك په ۱۹۰۵ ع کال په لندن کې چاپ سوی دی ـوګوریء ! ددغه کتلاك اووم لمبر کتاب .

کړې شوې ده چې داخو ندد رو بزه پیرو ؤ .

دانګلستان په کتبخانو کې د پښتو آثارو په نوي کتلاګ کې هم د پروفیسر بلوم هارټ د دغه تېر و تنه را برسېره شوې ده، ډاکتر ډي. یو. ډېنیل مېکنزي کښلي دي :

«دفوائد الشریعت په مقدمه کې د ابوالقاسم بن عبدالله یاد و نه شوې ده داد کتاب د مصنف او د هغه د پلار نوم نه دی ، بلکه ابوالقاسم د مسلمانانو د پیغمبر محمد بن عبدالله کنیه ده . » ۳۷

دنو سوري پروفیسر بلوم هارټ تېروتنه دفوائد الشریعت په مقدمه کې ددغه لوسړي بیت له لوستلو پیښه ده :

هم درود (یې) پر حضرت سرور صاحب دی
چې نامه یې بوالقاسم دعبدالله ده ۳۸
چې سرورد انبیا (وو) د مرسلو
چې په نور یې خلقه وا ړه پیدا ده
هم درو ددې وی په آل هم په اصحابو
په همه وو چې تپه د مصطفی ده ۳۹

د فوائدالشریعت کومې خطي نسخې چې ما ته معلومې دي په هغو کې

---

۳۷ ــ وګوری : د دغه کتلاك په د برټش مېوزیم کې د ر پیمه حاشیه ــ دلندن چاپ ۱۹۶۵ ع .

۳۸ ــ په زیاترو نسخو کې تر «نامه» کلمې وروسته احتراماً «پاك» زیات کړ شوی دی .

۳۹ ــ په ځینو نسخو کې تر «همه و و» وروسته «مو سنانو» کلمه زیاته کړ شوې ده دغه راز په ځینو نسخو کې «تپه» کلمه چې د ډېلي او است معنی لري په «تحفه» اړول شوې ده .

دپاپو نو شمېر تو پېرلري .مثلاً : د پېښور د پښتو اکاډیمي په نسخه کي د و اتیا د لندن د انډیاآفس لائبرېرۍ په دریو نسخو کی اتیا ـ دپښتو ټولني په بشپړه نسخه کي نه او یا ـ او دنیمګړي نسخې په فهرست کي پنځه او یاپاپه راغلي دي ، جارج راورټي په ګلشن روه کی دفوائد الشریعت ۱۱-۱۳-۱۴-۳۸-۵۳-۶۱ پاپو نه اخیستي دي ،دراورټي اقتباس سوې برخه دګلشن روه په ۲۳ مخو کي (له ۷۵ مخه څخه تر ۹۷ مخه پوري) ځای سوېده . دفوائد الشریعت یوه برخه پروفیسر برنهارډ دورن آلماني هم په پښتو منتخبا تو کی اخیستی وه ، دا کتاب د راورټي تر ګلشن روه ، د پرشکاله د مخه په پېټرزبورګ کي چاپ سوی دی ، په پښتو منتخباتو کي دفوائد الشریعت اخیستې سوی برخه په خلورنوي مخو کي (له ۹۷ مخه څخه تر ۱۷۳ مخه پوری) ځای سوېده.

دفوائد الشریعت په تألیف کی مؤلف له څو پښتو عربی او پارسی کتابو څخه ګټه اخیستې ده ، *له دې څخه معلومېږي چي اخوند قاسم د

* په دغو مأخذو نو کي دځینو نو سو نه دادي : احیاء العلوم،مشکوۃ المصابیح،جواهر ثمینه ، مطالب المؤمنین ،تفسیر مدارك التنزیل و حقایق التأویل ،صحیح بخاری،تفسیر درر ،تفسیر زاهدی،اعلام الهدی ، شرح الاوراد کنزالعباد ،مسائل المفاتیح ،ارشادالمستعظین،مشارق الانهار ،نصاب الاحتساب الهدایه فی فروع الحنیفه ،شرح الهدایه ،تنبیه الغافلین ابو اللیث سمرقندی، خلاصة السلوك،تفسیر الکشاف الزمخشری ، ذخیرة الملوك، رسالهٔ قدسیه ، قامع البدعت ،مختصر الوقایه الروایه فی مسائل الهدایه ، انیس العاشقین ، انیس الواعظین ،ارشادالمریدین ،تفسیر حسینی،مفتاح الجنان رساله قریشی،*

خپل وخت په سرو جو علمو نو کي د ښې برخي او ژوري مطالعې تښتن ؤ او حق یې در لو دچي دافضل خان ختټک په قول په خپل وخت کي « دپېښو ر دعلماو و مقتدا» او در او رتي په وینا « دپېښو ر او اشنغر دملایانو مشر وي».

مؤلف په فو ائدالشر یعت کي هر ه نوي مسأله یاهر نوي اقتباس د «فائده» تر عنو ان لاندې ر او ړې دی او کله یې د«فائدې» پر ځای په لنډه توگه (ف) کښلې ده .

فوآئدالشر یعت لومړی وار په (۱۲۸۹ ه ق) او دو هم وار په ۱۸۷۵ ع (۱۲۹۲ هق) کال په هندو ستان کي چاپ سوی دی ،ددې کتاب د چاپو نو شمېر تر لسو او ړي .

دفو ائد الشر یعت و روستی څو بابه چې دحضرت پیغمبر (ص) شمائل پکښې څېړ ل سوي دي، داسیر جمال الدین عطاء اللهبن فضل الله الحسینـــی الهروي (۹۲۷ ه ق مړ )له « روضة الاحباب فی سیر النبی و آلال و الاصحاب » څخه اخیستل سوي دي ،۱م، نو موړ ي پر وفیسر برنها رډ دو رن د پښتو

* کیمیای سعادت، تذکر ة الاو لیا، نفحات الانس، شر عة الاسلام، ملفو ظات شیخ معین الدین سنجري ـ مکتو بات شیخ شر ف الدین منیري ،سر اج الهدایه ، روضة الأحبات في سیر النبی و الاو لادوالاصحاب ،مضمر ات ،فتاو ای قاضی خان، فتاو ای سر اجي، فتاو ای عثماني، ابر اهیم شاهی ، خز انة الفتاوی ،کفایه شعبی ، مفیدالمستفیدین، فتاو ای غرائب، تحفة الصلحاء، تحفة المتکلمین، روضة العلماء ، حجة الاسلام، کنز الاخبار ،تفسیر یعقو ب چر خی، تنبیه الفقر اء .

۱م ـ داسیر جمال الدین عطاء الله نیکه اسیر اصیل الدین عبدالله بن عبدالرحمن الحسینی (۸۸۳ ه ق مړ )دسلطان ابو سعید گو رگان (۸۵۵-۸۷۳ ه ق ) په وخت کي هر ات ته راغی ،دگو هر شاد په مدرسه کي یې د رس و رکاوه .

منتخباتو په مقدمه کې د فوائدالشریعت د شمایلو ځینې برخې د روضةالاحباب له یوې خطي نسخې سره چې د پېټرزبورګ په کتبخانه کې خوندي وه پرتله کړي دي ـ خو د روضة الاحباب نوم یې نه دی اخیستی او د جمال‌الدین الحسیني د کتاب په نامه یې معرفي کړی دی۳۲ .

## ۳ـ علم خانه دانش (کلیله ودمنه):

دا کتاب د پارسي عیاردانش پښتو ترجمه ده ، عیاردانش د جلال‌الدین اکبر ګورګاني (۹۶۳-۱۰۱۴ه ق ) مشهور وزیر ابوالفضل بن شیخ مبارک بن شیخ خضر علامي ناګوري (۹۵۸-۱۰۱۱هق) په ۹۹۶ه ق کال کښلی دی۳۳ او د کلیله و دمنه په نام هم یادېږي .

د دغه کتاب اصل «پنجه تانترا» ؤ چې غالباً د پنځمې عیسوي سدۍ په وروستي نیمایي کې په سنسکریت ژبه کښل سوی دی، په پهلوی، عربي، پارسي ۳۴ .

---

۳۲ د دغه جمال‌الدین عطاءالله الحسیني نور مؤلفات دادي: تحفة الاحباء ـ احوال او لادامیر المومنین ـ اربعون حدیث .

د لته دا هم باید و وایو چې د جمال‌الدین الحسیني د مرګ په کال کې اختلاف سته ځینې کتابونه یې ۱۷ ۹ ه ق او په ځینو کې ۹۲۷ ه ق کښلی دی، خو وروستی نیته غوره ده .

۳۳ـ د ابو الفضل علامي نور مؤلفات دادي: اکبر نامه (چې دریم ټوک یې د آئین اکبري په نامه یادېږي) ـ مکاتبات ابو الفضل ـ د آیت‌لکرسي تفسیر ـ د توتی ناسې لنډیز ـ د تاریخ الفي مقدمه ـ د مهابهارت د پارسي ترجمې مقدمه او نور ....

۳۴ـ د کلیله و دمنه کتاب ابو المعالي نصر الله بن محمد بن عبدالحمید غزنوي د ۵۳۸ ـ ۵۴۰ ه ق کلونو ترمنځ پارسي کړی دی ـ بله منظومه پارسي ترجمه یې د محمد شاه صداقت کنجاهي (پنجابي) (۱۱۳۸ ه ق مړ) ده ـ رو د کې ته هم د دغه کتاب یو منظومه ترجمه منسوبه ده. (؟)

اردو ،ترکي ،عبراني ،سرياني ،يوناني ،لاتيني، انگريزي ،فرانسوی، ايتالوی او هسپانوی ژبو کي يې ترجمې ستره ،لوړی سعلومه پښتو ترجمه يې دغه علم خانهٔ دانش ده، دوهمه ترجمه يې دشاه محمدخان کمالزي مندړ ( يوسفزی ) -۳۵- او دريمه يې دعبدالغفور قاسمي ده -۳۶- چې دمشهور هراتي عالم حسین واعظ کاشفي(۹۱۰ هق سړ ) انوار سهيلي يې پښتو کړی دی.

دعلم خانه دانش په نامه دعيار دانش ترجمه دمشهور پښتانه شاعر خوشال خان خټک دلمسي داشرف خان زوی دتاريخ مرصع مؤلف افضل خان کړې ده، دتوجه وړ خبره داده چې پروفيسر برنهارډ دورن آلماني دپښتو منتخباتو په مقدمې کي دغه ترجمه دخوشال خان بللې ده او دی ته يې نه دی پام سوی چې ژباړونکي دعلم خانهء دانش په ديباچه کي ددستارنامې مؤلف خوشال خان دخپل سره سوی نيکه په صفت ښووَلی دی، په دغه باب دافضل خان خټک خپله وينادادہ :

«داکتاب ( عيار دانش ) چې په نظر زما راغی مدت شوی و چې اراده سي دنوي کتاب دوضع په پښتو ژبه په خاطر گرزيده، چې علم اخلاق پکښې بيان کړم ـ پنځه ويشت کاله حکمراني چې په داخپل قوم باندي وشوه ،په دا سن چې عمر عزيز په دري پنځوس کاله راغی ، په داحکمراني کي نيک و بد تجربې دروزگار لکه عادت روزگار غداری له خپلو پرديو وليدشوې ـ په خاطر راو رسيدل ...

۳۵ — وگورئ: يوسفزی افغان ۲۰۱مخ .

۳۶ — دعبدالغفورقاسمي انوارسهيلي په ۱۹۴۳ع (۱۳۶۲هق) کال په پېښور کي چاپ سوی دی .

لەدې تجارب‌و روستي هم سګر بهرەسندشي‌یو کتاب دحکمت یا دګار
پرېږدملکەخان سرحوم سلك خوشحال خان چې‌نیکه زمادی دستارنامه
څني‌یادګار پاته شوې‌ده ،هم‌داراززوړ کتاب چي دستورالعمل دخاص‌وعام
دی او په دې پروژ بوترجمه شوی وه سګر په پښتو ژبه ترجمه سي کړ .
سشکلات یې‌په سهولت‌قرارونیسي اوفایده یې‌پښتنوته عامه‌ورسي .شروع
سي‌په ترجمه وکړه. السعی سني‌والاتمام‌علی‌الله یعنی کوشش‌له مو ږه‌ده
تماسښت‌په خدای دی. » ۳۷.
دنوموړي پروفیسوډورن دخبري دماتولو له‌پاره‌پردغه تصریح‌سرببره
بل دلیل دادی چې ژباړونکی دعلمخانهٔ دانش په خاتمه‌کي دخپل دغه
کتاب بشپړېدلو نېټه ۱۱۲۹ ه ق کال دمحرمي دیرلسمه ورځ ښوولې
ده او دخوشال خان‌سرګ دعلمخانه دانش تربشپړېدلو اته‌ویشت کاله‌اته
میاشتي او پنځلس‌ورځي دمخه پېښ‌دی.افضل‌خان دعلم‌خانه دانش‌په پای
کي‌دتکمیل تاریخي‌ماده داسي راوړې‌ده :

نصیحت‌په غوږو کله‌،څای نیولی‌دکنهو دی
شنوا به پندترې‌اخلي، داکتاب دزمانو دی
که تاریخ یې‌لهٔ‌اغواړیٔ ،راشیٔ،وا وریٔ :
« که ئې‌وګوریٔ یوګنج دپښتنو » دی ۳۸

۱۱۲۹

۳۷— وګوریٔ ددغه کتاب هغه‌خطی نسخه چې‌دلندن‌په‌اندیاآفس‌کی‌خوندي
ده او سیدسحمدعلی په‌۱۱۸۳ ه ق کال کښلی ده .

۳۸— ددغه‌نیم بیتی‌ردیف(دی )په تاریخی ماده کی‌شامل نه‌دی—له دغه
اسله نوسشوشه سعمابلله کیږي.

دعيار دانش دترجمې پيل د۱۱۲۸ هق کال دصفرې ترلومړۍ ورځې وروسته (۱۷۱۵ع) سوی دی، داڅکه چې ژباړونکی (افضل خان) «دعلم خانهٔ دانش» دمقدمې په (٦-الف) مخ کی کښلي دی. زه چې په دې ترجمه پيل کوم دري پنځوس کلن يم او دختکو دخانۍ مي پنځهو يشتم کال دی -۴۹.

سو پوهېږو چې افضل خان په ۱۰۷۵ ه ق کال زېږېدلی او د۱۱۰۴ ه ق کال دصفري په لومړی ورځ په سرای اکوړه کي دختکو خان سوی دی. -۵۰.

دنو موړي پروفيسر ډورن تېروتنه په ۱۸۵۵ ع کال د ها نري جارج راورټي دپښتو گرامر دلومړي چاپ دمقدمې په ۵۴ مخ کی هم تکرار سو بده مگرسو پوهېږو چې دراورټي پام ډېر ژر دغې تېروتنې ته وراوښتی دی او په ۱۸۶۰ع کال يې په دغه کتاب (گلشن روه) کی خپله تېروتنه سمه کړې ده، دراورټي دپښتو گرامردو هم چاپ په اتهو يشتم مخ کی هم دعيار دانش هغه پښتو ترجمه چې دگرامر په لومړي چاپ کی د خوشال خان بللې سوې ده دخوشالخان پرځای دافضل خان ختک بللې سو بده او زياته کړې يې ده چې دغه افضل خان داشرف خان زوی او دنوموړی خوشال خان لمسی دی.

جارج راورټي په گلشن روه کي دعلم خانهٔ دانش د ريېم باب اخيستی دی، دغه اقتباس سوې برخه دکليله و دمنه ترعنوان لاندي په خلورد پرشو مخو کي (له ۸۳ مخه څخه تر ۱۱٦ مخه پوري) ځای سو بده، تر راورټي

۴۹ — وگوری: دعلم خانه دانش هغه خطی نسخی چې د۱۱۸۳ ه ق کال د محرمي په خلورلسمه (۱۷٦۹ ع) يې بياليکنه پای ته رسيدلې ده او س د لندن په انډيا آفس لائبريري کي خوندي ده.

۵۰— وگوری: چاپی تاريخ مرصع ۸۵ ۴مخ .

دیرلس کاله پخوا پروفیسر ډورن آلمانی هم په پښتو منتخباتو کي له دغه کتابه څخه یوه برخه اخیستې وه۱ه.

## ۴ـ د بابوجان کتاب:

په معلوموليکوالو کی جارج راورتي لومړی سړی دی چي د بابوجان داصل و نسب په باب یي د پښتو گرامر مقدمې په دریم مخ کي کښلي دي:

«بابوجان دبلورستان ۲ه له سیاه پوشو کافرو څخه ؤ، مسلمان سواو دخپل علم او لیاقت له امله یې په مسلمانانو کی ښه نوم وگاته، بابوجان په یوسفزیو کی ښخ دی او خلك یې زیارت ته ورځي.»

شمس العلماأمیر احمد شاه رضوانی (۱۲۷۹-۱۳۵۳ هق) په شکرستان افغانی کی دراورتي د غه خبري نقل کړېدي، خودا یې هم کښلي دي:

« بابوجان له نورو کافرو څخه یوه ملا یوسفزیو ته راوستلی ؤ پخپله

---

۱ه— وگورئ: Chres to mathy of the pushtu... له لومړي مخه څخه تردرویشتم مخه پوري.

۲ه— بلورستان دکونړاوالینگار ددرو شمال ته پروت دی— په ۱۳۱۳ ه کال (۱۸۹۵ ع) دامیر عبدالرحمن خان (۱۲۹۷—۱۳۱۹ ه ق) په امر سرمخرخی سپهسالار غلام حیدرخان بریدپروکړ و یې نیو، دهغی سیمی درست خلك مسلمانان سول—تر دغه وروسته دبلورستان نوم چي کله به د کافرستان په نامه هم یادېده واوښت او نورستان سو (وگورئ: تاریخ مختصر افغانستان ۲/۱۲۸ مخ).

بابو جان د لغمان ؤ. » ، ۵۳

په ورکه خزانه کي دراورتي دغي خبري ته چي بابو جان په اول کي سیاه پوش کافر و دشک په سترگه کتل سوي دي، ددغه کتاب د لومړي ټوك په ۳۱۳ مخ کی کښلي دي :

«نه شي ويل کېداى چي دامعلومات راورتي له کومه راوړي دي ،ليکن تر کومه چي د بابو جان او بلورستان دسرو کافرو تعلق دى ،نو که بابو جان په رښتيا د بلورستان سور کافر ؤ نو د اخبره دعقل او قياس نه لري ده چي د بلورستان يو سړى چي پښتو دهغه مورنۍ ژبه نه وي دوسره ژردى پکښي کمال ته ورسي او بيا شاعري دي پکښي هم وکړي او بيا په هغه زمانه کي.

البته دا کېداى شي چي د بابو جان پلار نيکه به په اسلام تر مشرف کېدو نه پس چېرته د پښتنو علاقې ته راغلي وي او بابو جان هلته پيداشوى وي. بابو جان که مسلمان شوى وي نو کم از کم په داسي عصر کښي به وي چي د کفر او اسلام تر منځ دبه او بد فرق به يې کولاى شو، دبه او بدو دافرق کم از کم انسان دد ېرشو کلونو په عمر کي کولاى شي. د ېرشو کالو يو سړى چي په يوه غيره ژبي کی شاعري کوي هغه فرق د بابو جان په شاعري کی نه محسوسېږي.»

ښاغلي هميش خليل خو په پښتو ژبه کي د بابو جان بشپړي او صحيحې افادى او بيا د پښتو دشاعرى تر عهدى په ښه توگه سره وتلو دې ته ارايستلى دى چي د راورتي خبره و نه مني او ياد سمون کوم ضعيف تاويل يې ولټوي .

---

۵۳ — وگورىء: شکرستان افغاني ۳۳ مخ دلاهور چاپ ۱۹۰۵ ع کال — پښتانه شعراء ۱/۱۹۲ مخ — ورکه خزانه ۱/۱۳۳ مخ.

مگرزه‌و ایم‌چي‌دبابو جان‌په‌عربی، پارسی‌اوهندکو ژبو پو ره‌او صحیح پو هېدل‌هم دراو رتي‌خبره‌ماتوي‌اوددې‌ادعاشو اهددبابو جان‌په‌کتاب‌کي ډېردي ۵۴.

بابو جان دفکرو ذکراو سلوك و عرفان‌له مخې‌دپیر بابا( سیدعلي‌غو اص ترمذي) (۹۰۸-۹۹۱هق) دمسلك او مشرب‌پیرودی ده و یلي دي:

چي خبرشوې دشهاله پټه رازه
تل‌وصال، خلوت‌نشین، مشغول‌له رازه
هرسالك چي‌په‌داهسی حال‌آگاه‌شي
دېل فکرېر یې مات شي‌له پروازه
چي‌ته هسي‌گنجه‌ورغله رانه غله
هیڅ خبري‌چاییانه مو ند له آوازه ۵۵
په داهسي‌دریاب‌غه‌غواص‌غوټه‌کړه ۵۶
چي غراب ،کښتیه نغري له جهازه

---

۵۴— و گو رئ: «په‌گلشن روه کي‌دبابو جان‌منتخبات نشر نه‌دی.» دپو هاند رشادتالیف(۳۵۳ ش کال)۲۷—۱۳مخو نه.

۵۵— دغه مطلب سعدی شیرازی په‌گلستان کی‌داسی و یلی دی:

«آنرا که‌خبر شدخبر ش باز نیامد»

۵۶— دغو اص‌لقب دسیدعلی(پیر بابا)له‌پاره دده‌نو رو پیر وا نوهم‌استعمال کړی دی، مثلاً اخو ندکر یمداد و یلي‌دي:

داگفتار دشیخ‌علی غو ندی‌غو اص‌دتابایده دی
دی غو اص صاحب ددردی ،سر باز ل‌هنر دده‌دی
(مخزن الاسلام۵۸۱مخ دپیښو رچاپ)

کامل پردی سهانی ددغي لاري ٥٧

ترقدم يې شوه کوتاه لاره درازه

دپير بابادتکړه او مخلص خليفه اخونددرويزه يادهغه دزوی اخوندکريمداد دمړينې له امله دبابوجان خواشيني هم داناېتوي چې ده دغې سلسلې ته ټينګ ارادت درلود، په دغه باب دبابو جان وينا داده:

چي اخوندجدايي بېل که بابوجانه!

پسی ورانه شوه زما دزړګي خونه

په دېر غم دی داخوندزه هسي سير کړم

دجمله هوس له ذوقه سړ وه مي

د،غه حال بيان په خوله راوايه نه شي

چي سی يادشي داخون خواړه ورسونه

*****

دبابوجان دژوندانه دزمانې په باب لوی استادپوهانو عبدالحی حبيبی دپښتانه شعراء په ۱/۹ ۱مخ کی دوسره کښلي دي چي بابوجان تر ۱۰۵۰ ه ق وروسته ژوندی ؤ.

همېش خليل دوړکي خزانې په ۱/۱٦ ۱مخ کي بابوجان دمېرزاخان اوړسړ (۱۰۴۰ ه ق سړ) اودولت لوانې (تر ۱۰٦۸ هق پوري ژوندی) دزمانې شاعر بللی دی.

---

٥٧ — سهانی ـ سانبو، کښتی و ان، سلاح (عربی).

دبابو جان داشعار و په مجموعه کي داورنگزیب عالمگیر(۱۰۶۸-۱۱۱۸ ھ ق) ستاینه دابیي چي بابو جان تر ۱۰۶۸ ھ ق کال و روسته هم څه موده ژوندی ؤ. ۵۸

ولادیمیر واسیلویچ کوشیف په روسیه کی دپښتو مخطوطاتو دلنډیز په اوم مخ کي د بابو جان د ژوندزمانه له ۱۰۵۰ ھ ق کا له څخه تر ۱۱۱۲ ھ ق (۱۶۴۰-۱۷۰۰ ع) پوري ښوولې ده،خو دکوم مآخذحواله یې نه ده راوړې .

دبابو جان دنظمونو مجموعه په پښېږ ډول سره تراوسه پوري نه ده چاپ سوې،خطي نسخې یې ډېرې دي، دلندن په انډیاآفس لائبریری کي یې یوه نسخه ستهچي دلوی احمد شاه بابا دپاچهۍ په څو رلسم کال (۱۱۷۳ ھ ق ) کښل سوېده ،دراسپور درضالائبریری نسخه دانډیاآفس لائبریری تر نسخې یو کال وروسته (په ۱۱۷۵ ھ ق) لیکلې ده .

---

۵۸ــ داورنګزیب دمدحیه قصیدې څو بیته دادي:

مصلحت سي د خاطر نهؤ یارانو !
چي ثنا صفت به کړم دپادشاهانو
خو په وړاندی زمانه کي پادشاهان وو
نه صفت دهغو وکړ شاعرانو
لږ صفت داورنګ شاه که بابو جان وې
دده خوی هم دعا دلو پیشینیانو
که دعا دده په باب څوک که لایق دی
پاک رسول فخر کاوه په عادلانو

دبابو جان سر یانی قصیده په ۱۸۴۷ ع کال د پر و فیسر ډ و رن پــه پښتو منتخبا تو کی (له ۳۴۷ مخه څخه تر ۳۸۶ مخه) پوری چاپ سوې ده.ر او ر تي چي په گلشن رو ه کي دبابو جان له کتابه څخه کو مه بر خه اخيستې ده هغه په پنځه لسو مخو کي (له ۱۷ ۱ مخه څخه تر ۳۲ ۱ مخه پو ري) ځای سو يده،او دمبحثو نو دبېلتو ن له پا ر ه يې هيڅ ر از نخښه يا فاصله يا کوم و يش نسته. مبحثونه يې عنو انو نه هم نه لري ، په لو مړي نظر لو ستونکي داگمان کوي چي دا به تر پا يه پو ري يو ه قصه يا مضمو ن وي، خو چي ښه و ر ته ځير سي او خو پا ني يې و لو لي پو هېږي چي دلته گو ښې گو ښې قصې او بېلې بېلې مو ضو ع گانې ځيړلی سو يدي ،لکه :

دحضر ت مو سی امسا .

د کسری (نو شير و ان) عدل .

دحضر ت سليمان پيغمبر گو ته .

دسلطان سکندر هينداره .

دحاتم طا يي سخا .

بد يار .

او داسي نو ر ......

که څه هم ددغو ټولو قصواو نظمو غرض تحذير او انتباه ده او د ديني تبليغ بڼه لري، مگر بې و بشه دهغو پله پسې ر او ړل دصحافت له اصو لو څخه ټېری دی ا و دايـر اد (اعتر اض) گو ته پر ايښوو ل کېدای سي .

خو د ميجر جار ج را و ر تي بله تر ټو لو ډ ېر ه مهمه ټېر و تنه د گلشن ر و ه په تر تيب کی داده چي دبابو جان دتبليغی او تحذيري قصو منتخبات يې په نثر کي

راوړي دي او هغوته يې دنظم په سترګه نه دي کتلي ٥٩ .

دراورتې دغه تېرو تنه د برتش موزيم د پښتو مخطوطاتو په ٣٣ لمبر کې هم تکرار سو بده او دجې. ايف. بلوم هارټ د کتلاك په دروېشتم مخ کې کښلي دي:
«دبابو جان دنثرمنتخبات دګلشن روه له ٧١ ، مخه څخه تر ٢٣١ مخه پورې مونده لای سي» .

زه په ګلشن روه کې دبابو جان د منتخباتو په باب دجارج راورتي دغه نظر يه «چې دانثردی» نه منم او په کلکه يې ردوم . ما ته دعروضي پلټنو له مخي ثابته سوې ، چې دبابو جان کتاب يو منظوم اثر دی او په نثر کې دهغه منتخبات راوړل يو ه ادبي تېروتنه ده ٦٠ .

## ۵ ـ مخزن الاسلام :

دمخزن الاسلام زیاتره برخي دا خوند درو یزه ننګرهاري ( ٩٤٠ ـ ١٠٢٨ ه ق) تالیفات او ترجمې دي چې دده زوی اخوند کریمداد ( ١٠٧٢ ه ق مړ ) دکتاب په ټول راټولې کړي او دم ١٠٢٠ ه ق کال دمحرم په پووېشتمه ( ١٦١٥ ع ) ورڅخه فارغ سوی دی ـ په دغه مجموعه کې داخوند کریمداد ملحقات او داخوند درویزه دوه رو رملااصغر یوه غزله هم سته ـ په ١١١٢ ه ق کال د مخزن الاسلام دوه همه پېلا ترتیب د نوموړی اخوند کریمداد لمسي د میانو رمحمد زوی مصطفی محمد کړی دی ، په دغه دوهمه پېلا ترتیب سوې نسخه کې دا خوند درو یزه دلمسيو عبدالحلیم (بن عبدالله بن اخوند درو یزه ) او

٥٩ ـ وګوری : دګلشن روه په فهرست کې دنثر برخه ، شلورم عنوان .

٦٠ ـ دزيارت تفصيل له پاره وګوری : «په ګلشن روه کې دبابو جان منتخبات نثر نه دی» له ٧٩ مخه څخه تر ٦٢ . مخه پورې.

عبدالسلام (بن پاینده محمد بن اخوند درویزه) او نور موړي مصطفی محمد اضافې هم سته.

اخوند درویزه د گدا (بي) زوی دسعدی (ښادي) لمسی د درغان کړوسی د احمد کوسی دمتي کودی او دجیون پردی دی، جیون په لغمان کی میشت ؤ درغان دشینوارو پاپین ته کډه سو، زوی يې سعدی (ښادي) له یوسفز یوسره سره د سوات او بونیر سیمو ته ولاړ او په ملیزو کی يې له مندوزیو سره واړول، دسعدی (ښادی) زوی گدایی له مندوزو څخه کډه سو اسماعیل خېلوته ولاړ، اسماعیل خېل دملیز یو یوسفزو په چغرزی ښځه کی گډ یري او په بونیر کي اوسېدل۔ اخوند درویزه د ۹۴۰ هـ ق (۱۵۳۳ ع) په کال شاوخوا کي هلته و زېږېدی، دبونېرله پاپینیو ملایانو: ملامصر احمد، ملازنگی او ملاسنزر څخه يې څه کتابونه ولوستل، هندوستان ته هم دزده کړي له پاره تللی دی، وطن ته تر راستونیدلو پس دسیدعلی غواص ترمذي (۹۰۸-۹۹۱ هـ ق) چي پښتانه يې پیربابا بولی سریدسو او پس له ډېری مودې يې له پیربابا څخه د خلافت او ارشاد اذن ومــوندیء . اخونددرویزه د پیرروښان (۹۳۱-۹۸۰ هـ ق) او دروښانیانو لــه کلکوســخالفینو څخه ؤ، او مخزن الاسلام يې دد غه مخالفت په اغېزه له روښاني تحریک سره دمقابلې له پاره کښلی دی، ده د مخزن په شروع کي راوړي دي :

« اماسبب تألیف این کتاب : معلوم باد که فی زمانناد رافغانان یوسفزی زندیقي پیدا شده بود .....

درآن ایام شهرتی تام یافته نام او بایزید بود لقب خود را پیرروشان کرده و فقیر لقب او را پیرتاریک کرد ...

بزبان افغانی شعرسی گفت.... فقیر برخلاف او شعر های افغانی آغاز کرد ...

دا خونددرویزه دسرگڼېنه مولوی غلام سرورلاهوري (۱۲۴۴-۱۳۰۷ هـ ق)

په خز ينةالاصفيا(د ۱۲۸۰ هق تأليف)او گنجينه سرو رى( د ۱۲۸۳ ه ق تأ ليف )
كي۱۳۸۰ هق ر او ړې‌ده، په نو ر و كتابو كي‌لكه‌تذ كر ه‌علماء هند،دباوه ها ر تې د برتش
مو زيم كټلاك،د پښتواد ب‌تا ر يخ ، ر وحاني‌تړ و ن‌اونورو كي هم۱۳۸۰ ه ق‌داخوند —
در و يز ه‌دمر گ كال‌ښو و ل‌سوى‌دى‌خو ما ته‌دغه‌تيا كنه سمه‌نه‌بر ښيي‌او داسي‌دليلونه
راسره سته،چي‌د هغو له‌مخي‌داخوند در و يز ه سر گ‌بايدتر ۱۰۲۸ ه ق كال‌و ر و سته
نه‌وي پېښ.داخونددر ويزه‌ز يارت‌پېښو ر ته‌نژ دې‌دهز ار خاني‌په‌لو يه‌هديره كي‌دى.
دمخز ن‌الاسلام په همه‌بر خه كي‌چي اخو نددر و يز ه كښلي ده د دغـو قصيدو
او ر سالو ترجمې سو ندلاى سو :
لو مړى بيان . قصيدۀ امالي :
يو ه‌لاميه‌عر بي‌قصيده ده ، ۳۷بيته‌يې‌دي . * مطلع اوحسن‌مطلع يې‌دادي :

يقول‌العبدفى بدء الامالي
لتو حيد به‌نظم كا للالي
مليك‌مالك‌مو لى الموالى
له وصف التكبر و التعالي

د غه قصيده اخو نددر و يز ه په پښتو نظم كړې ده، پيل يې دادى :

په نامه‌دحق آغاز كړ م ، او س له دې علم كلامه
دى‌رحمان‌رحيم‌ښښتن دى ، په ده چا ر مى شي‌تما مه

پر د غه قصيده باندي اخونددرو يزه پارسي شر حه‌هم كښلې د ه ،دغه

---

(*) داما لي دقصيدې‌څو نسخې چي‌ز ماسر ه سته په هغو كي د دغې‌قصيدې
بيتو نه ۳۷دي—خو په كشف‌الظنو ن كي يې‌دقصيدۀ يقو ل‌العبدتر عنو ان‌لاندي
دبيتو شمير ۶۶ ښو و ل‌سوى‌دى.

شرحه دپیلي رسالې په توګه خوپلاچاپ سوې ده، مايې د(۱۲۷۸ه ق - ۱۳۲۵ه ق - او ۱۳۵۶ه ق) چاپي نسخې لیدلي دي او د دغو د روسرو نسخو په مقدمه ګوتې کي دقصیدهٔ امالي نظم امام محمدنجم الدين عمرا لنسفی (۴۶۱-۵۳۷ه ق) ته منسوب ښوول سوی دی، خو د مطلع په شرحه کی بیا دمصنف نوم په لوسړی او دویمه نسخه کی «محمداولي»او په دریمه نسخه کي« محمدولي» کښلی دی، مګر ددغي پارسي شرحي کومه خطي نسخه چي زما په کتب خانه کي خوندي ده، دغه مقدمه ګوتې نه لري او د حسن مطلع په شرحه کي دمصنف نوم «محمداويسی» راغلی دی - دمخزن الاسلام په هغو نسخو کي چي په ۱۳۰۱ه ق کال په ډهلی او پسه ۱۳۸۹ه ق (۱۹۶۹ع) په پېښور کي چاپ سوي دي دقصیدهٔ امالي ناظم«امام محمداويسی» او زماد کتب خانې په دويمه خطي نسخه کی*« امام محمد اوسی» ښوول سوی دی ۶۱.
خو رشتیا خبره داده چي قصیدهٔ امالي امام سراج الدين ابو محمد عبدالله علي بن عثمان الاوشي الفرغانوي (۵۷۵ه ق مړ) په ۵۶۹ه ق کال نظم کړې ده، کیدای سی چي« ابو محمداوشی» دنقل کوونکو له بې پروایيو څخه په« محمداويسي» اوښتي وي ۶۲.

دویم بیان-قصیدهٔ برده :

په عربي ژبه یوه میمیه قصیده ده ۱۶۳ بیته لري ، په بسیط بحر کي ویل سوېده ، پیل يې داسي سوی دی :

---

۶۱— وګوری! دډهلی چاپ ومخزن او د پېښور چاپ دو هم او اتم مخونه.

۶۲— دامالی بله پښتو ترجمه دخمکنو میاعمر صاحب رحمة الله علیه (۱۱۹۰ه ق مړ) کړیده، دغه شرحه«المعالی فی شرح الامالي»نو میږي .

اسن تذكر جيران بذى سلم
مزجت دمعاجرى من مقلة بدم

دقصيدې ناظم شرف الدين ابو عبدالله محمد بن سعيد البوصيري (٦٩٥ هق مړ) دى ٦٣-
دقصيدې اصلي نوم «الكواكب الدريه في مدح خير البريه» دى خو په خلكو كى
په قصيدهٔ برده سره ډېر شهرت لري .

دغه قصيده اخوند درويزه پښتو كړې دمقدمې پيل يې داسې دى :

په نامه دحق به وايم ،چې دحق له بركته
په قيامت سي بخره وشي درسول له شفاعته ٦٤
گوندي ستاد «ذي سلم» ياران يا دېږي
ځكه او ښكې دى له وينو
گډو ډي دباران په دوداو رېږي

درېيم بيان ـ العقايدالنسفيه:

په علم الكلام كې يوه مشهوره او معتبره عربي رساله ده چې شيخ الاسلام
امام نجم الملة والدين ابو حفص عمر بن محمد بن اسماعيل بن محمد بن لقمان النسفي
(٤٦١ يا ٥٣٧-٤٧١ هـ ق) كښلې ده * دا رساله پر دروسقالو ويشلې ده په

٦٣— «بوصير» دمصر په صعيد كې ديوه كلي نوم دى .
٦٤— ز سادمعلوسا تو له مخې په پښتو ژبه كې دقصيده بردې ترجمې پنځوته
رسېږې ـ خلورنوري ترجمه دعبدالقادرختك ، ملاشيرمحمد هوتك ـ ميا شرف الكوزى ـ
محب الدين ، او نورمحمد دي .

* دعقايدالنسفيه كتاب ځينې كسان لكه زرقاني او نور دابوالفضل برهان
الملة والدين محمد بن محمد النسفي بولي — دغه نسفي د ٦٠٠ هـ ق په شاوخوا *

پا ی کی خا تمه گو ټي هم لري، په لو مړی مقاله کی دخدای (ج) په دو همه مقا له کې د نبوت او امامت په دریمه مقاله کې د آخرت په باب خبرې شوي ده مؤلف تر مقدمې و روسته په اصل مطلب داسی شروع کړېده :

«قال اهل الحق حقایق الاشیاء ثابتة و العلم بها متحقق خلافاً للسوفسطائیه واسباب العلم ثلثة الحواس السلیمه و الخبر الصادق و العقل ........ »

پر دغې رسالې باندې په ۷۶۸ ه ق کال علامه سعدالدين عمر التفتازاني ( ۷۹۱ ه ق مړ ) يوه ګټوره شرحه کښلې ده ، دغه کتاب د «شرح عقايد» په نامه دافغانستان، پاکستان او هندوستان په مدرسو کې تدريس کيږي او داهل سنتو دعلم الکلام په نصاب کې شامل دی .

اخوند درويزه العقائد النسفيه پښتو کړی دی، ځای ځای يې دعلامه تفتازاني له شرحې څخه هم دتوضيح له پاره ګټه اخيستې ده ،دا خونددرويزه دپښتو ترجمه داسی شروع سوېده :

دهر څيز اصل ثا بت دی ، ځکه نوم باندي رغېږي

هم په عقل را کښېوزي ، هم دا علم ورسېږي

داشيا اصل ثا بت دی ، او هام نه دي ته اګاه سه

---

* کی زوکړی او په ۶۸۶ يا ۶۷۹ ه ق کال مړ دی — د کشف الظنون په ۱۱۶۸ مخ کې د برهان الملة و الدين نسفي د علم کلام کتاب «عمدة العقايد» نوم مل سوی دی مګر دمتن پيل يې له شرح عقايد نسفي سره چې نجم الملة و الدين نسفي ته يې نسبت سوی دی تو پير نه لري، په فوائد البهيه في تراجم الحنفيه کی هم دغې ګډوډۍ ته اشاره سوېده.

نه او هام لري سو دو نه ، نه يي ز يان و بل رسيري ٦٥
(چي) ،دوی و ابي‌دا اوهام دي ، له صانعي‌منكر بيري ٦٦
په حجت‌داهل شرعي ، دوی په او ركي دا خل بو يه ٦٧
سكه‌دااو ر دي‌هم‌اوهام‌شي ، چي‌په‌دوی به‌نه لگيري
اهل‌حقودي و يلي ، چي‌ببشك‌صانع‌قديم دی
دعاقل حجت دغه دی ، بي استاخه نه‌رغبيري ٦٨
دا اشياو اره حادث‌دي ، له نابوده پيدا شوي
هر چي‌و شو يابه شينه (هغه‌و اره فنا كيري ) -٦٩
دحق ذات صفات قديم دی .....
(كل‌اشيايي له قدر نه) (پيداشوي) پيدا كيري

---

٦٥— په‌ز ياتر و نسخو كي‌دا نيم‌بيتي‌داسی كښلی دی:«چي‌او هام‌خيز و نه لري‌سو دو نه نه‌يي‌ز يان‌وبل‌ر سيري»

٦٦— په‌ز یاتر و نسخو كي‌د«منكر يوي» كلمه «منكر دي» كښلي‌ده.

٦٧— په‌ز ياتر و نسخو كی‌د«داخل‌بو يه»پر ځای« كښينو لی»راغلی‌دی.

٦٨— په‌ز ياتر و نسخو كي‌دشار حينو خبري‌په‌دغه نيم بيتي كی داخلي شو و لی‌سوي‌دی‌او هغه‌دادي:«پر ده‌گو اه دي‌دامختلفي‌چاري»يا«هيڅكله كالی‌بی استانه رغيږی»

٦٩— ددغه بيت عر بي‌متن‌داسی دی:«و العالم‌حادث‌و هو قابل‌بل‌الفناء ...» طبيب‌ا حمدجان خان‌بر گڼ په‌نظم الفرائد كی (د١٣٦١ ه ق تاليف ) كی دغه مطلب داسي راوړی دی :

بو د حادث جهان و هست‌فاني *

خلورم بیان ـ خلاصهٔ کیدانی :

په عربۍ ژبه دامانځه په باب دحنفي فقه یوه کوچنۍ رساله ده لطف الله نسفي الکیداني (۷۵۰ ه ق س) کښلې ده ، یو مقدمه او اته بابه لري اخوند درویزه دغه رساله په پښتو اړولي ده ، پیل یې داډول دی :

بسم نام دالله خدای دی
کارساز د کل عالم دبنده ګانو ۷۰
(دی) رحمان مهربان خدای دی
رزق ، روزي ورسوینه
ومؤمن کافر ، جمله ځانو رانو ۷۱

دمخزن الاسلام دغه برخه چې جارج راورتي په ګلشن روه کې د «مخزن پښتو» تر عنوان لاندې اخیستې ده ، په لسو مخو کي (له ۱۳ مخه څخه تر ۰ ۱ مخه پورې) ځای سو بده.

* تغیر بر حدوشش دان نشانی
فنا گردد جهان چون هست حادث
قدیمش هیچگه هرگز ندانی

(دخطي نسخې ۱ ـــ ۲ مخونه)

۷۰ ـــ «کارساز» کلمه دلته په دریو هجاوو لوستله کیږي .

۷۱ ـــ خلاصهٔ کیداني په پښتو ژبه کې دوی نوري ترجمې هم لري، یوه یې دخمکنو دسیاعمر صاحب (۱۱۹۰ ه ق س) او بله یې د ملاعبدالحمید الکوزي ده چې د ژوند زمانه یې ددیرلسم هجری قرن لوسړی نیمایی ده، دخمکنو دسیاعمر صاحب دپښتو خلاصه کیداني په ۱۲۹۸ ه ق کال په دهلي کې چاپ سوی ده .
دخلاصه کیداني پښتو شرحه چې دباجوړ تره استاد کښلې ده «النوریه» نو میږي.

پنځم بیان ـ دوهم فصل ددوولسو فرقو عقاید :

یوه پارسي رساله دهچي نومورې شیخ الاسلام امام نجم الملة والدین ابوحفص عمر بن محمدبن اسماعیل النسفی (٤٦١-٥٣٧ هق) کښلې ده٧٢، په دې رساله کې شیخ الاسلام تصوف څه دی؟ او صوفي څوك دی؟ پوښتنو ته جواب ویلی دی او دمتصوفینو او مستصوفینو هغه دوولس ډلې یې معرفي کړې دي چې دده په زمانه کې دحبیبیه ـ اولیائیه ـ شمراخیه ـ اباحتیه ـ حالیه ـ حلولیه ـ حوریه ـ واقفیه ـ متکاسله ـ متجاهله ـ الهامیه (العاقیه) او سنیه (ناجیه) په نوم موجودي وې اخوندرویزه دغه رساله پښتو کړې ده او ویلی یې داسي دي :

«نسفی» هسي ویلي مبرهن دي ٧٣
چي صوفیان دحق دوستان دي
هم (مشغوله دخپل) زړه په پاك کردن دي
دوی پرې ایښي غیري میني اشنایی دي ٧٤
موافق ځي له کتابه
آراسته دپاك رسول په سنن دي
پاك الله دي په دوستي واړه نیولي
چي له خلکو تبرا کا

٧٢ــ نسف له اندخوی په څخه دشمال خواته تقریباً ٣ میله لیري دآمو پر غاړه باندي واقع ؤــ اوس ددغه ښار پر ځای قرشي ودان سوی دی ـ نسف دنخشب (نخشب) محرف شکل دی.

٧٣ــ په زیاترو نسخو کي تر «نسفي» دمخه «امام عمر» هم زیات کړ سوی دی.

٧٤ــ په زیاترو نسخو کي «له خدایه» کلمې د نیم بیتي په پای پوري نښلول سوې دي.

نغښتې دوی دشریعت په پیراهن دي ۷۵

دمخزن‌الاسلام دغه برخه هم جارچ راوړتي په گلشن روه کی اخیستې ده او په شپږو مخو کی (له ۵۰۳ مخه څخه تر ۵۰۸ مخه پورې) ځای سو یده.

تر راوړتې دمخه پروفیسر ډورن هم دمخزن‌الاسلام یوه برخه دمخزن پښتو ترعنوان لاندې په پښتو منتخباتو کې اخیستې وه۷۶.

دلته داخبره بې ځایه نه ده چې وو ایو جارچ راوړتی دگلشن روه په فهرست او مقدمه کې دمخزن‌الاسلام نوم مخزن‌الاسرار او په متن کې د پروفیسر ډورن په پیروي مخزن پښتو راوړی دی، مگر پخپله اخوند درویزه پرخپل کتاب باندې «مخزن‌الاسلام» نوم ایښی دی او دکتاب په پای کې یې کښلي دی:

اې طالب ؟ په آخر چې سې تمام کړ
دی په مثل خزینه دی.
څکه مایې نامه «مخزن‌الاسلام» کړ ۷۷

مخزن‌الاسلام یوسل و دري کاله پخوا دډهلي په هند و پریس یا په ۱۳۰۱ ه ق کال د ډهلی په فاروقي مطبعه، په ۱۳۲۹ ه ق (۱۹۱۱ ع) دلاهور په اسلامیه پریس، په ۱۹۶۹ ع کال (۱۳۸۹ ه ق) د پېښور په حمیدیه پریس کې چاپ سوی

۷۵— په زیاترو نسخو کی تر شریعت دمخه « درسول» کلمې زیاتې سوې دي.

۷۶— وگورئ: د chrestomathy of Pushtu له ۳۰۲ مخه څخه تر ۳۰۸ مخه پورې .

۷۷— وگورئ! دلندن دانډیاآفس لائبریری هغه نسخه چې په ۱۱۷۹ ه ق کال کښل سوېده—او دبرټش موزیم ۶۲۷۳ or لمبر نسخه چې پخپله د جارچ راوړتي یاداشت پرسته او د Blumhardt د B.M. Cat په دوهم لمبر کې معرفي سوې ده—او د پېښور د ۱۹۶۹ ع کال د چاپ سوی نسخې ۱۳۶ مخ.

دی—په و روسټي چاپ کي دبناغلي تقو یما لحق کاکاخټل ښکلې یو ه عالمانه او تحقیقي مقدمه هم ستهچي په ۸۱ مخو نه کي ځای سو یده، د مخز ن الاسلام خطي نسخې خو را ډیري دي او نو ر چاپو نه هم لري .

## ٦- ګلدســته:

ګلستان (د ٦٥٦ ه ق تالیف) د پارسي نثر د شهکارو نو څخه شمېر ل کېږي . دا کتاب یو ه مقدمه او اته بابه لري، ځای ځای نظم هم پکښې سته، مو لف یې د پارسي ژ بې مشهو ر شاعر شیخ شرف الدین بن مصلح الدین عبدالله شیرا زی (۶۹۱ یا ۶۹۰ ه ق مړ ) دی چي په «سعدی» سر ه شهرت لري. دا کتاب د نړی په ډیر و ژ بو تر جمه سوی دی لاتیني تر جمه یې په ۱۶۵۱ ع کال (۱۰۶۱ ه ق) George, Gentius کړې د ه ، په انګر یزی ژ به کي یې ښېږ تر جمې سته، تر ټو لو ښخو اني تر جمه یې د Galdwin ده چي په ۱۸۰۹ ع (۱۲۲۳ ه ق ) کال په کلکته کي چاپ سو یده- په پښتو ژ بــه د ګلستان پنځه تر جمې ما ته معلو مي دی۷۸ چي یو ه په هغو کي د غه ګلدسته ده۷۹. ګلدسته

---

۷۸— ګلستان دو همه پلا په ۱۲۲۷ ه ق کال د میر محمد ا نصاری زو ی امیر محمد په کلکته کي تر جمه کړی دی—بله تر جمه یې د راحت ز اخیلی ده، ار وا ښاد خان عبدالصمد خان و یل: علامه عبدالعلی کا کړ هم د ګلستان په تر جمه بو خت ؤ— پخپله خان عبدالصمد خان هم ګلستان په بندیخانه کي پښتو کړی دی.

۷۹—د ګلدستې په نامه په پار سي ژ به کي یو بل اثر سته چي د ګلستان منتخبات دي (و ګو ری: مخطو طات ا نجمن تر قي ا ر دو ۸۷ مخ ).

د ګلدستې په نامه د پارسی شاعرانو یو ه تذ کره هم سته چي په ۱۱۵۵ ه ق کال عبدالو هاب کښلې ده ، ګلدسته د «ا نتخاب کعبه عر فان» منتخبات دی.

د خوشحال خان خټک زوی عبدالقادر خان (۱۰۶۳ هـ ق زوکړی) د پېښور په نوښار کې پښتو کړېده (*) او د گلستان په معلومو پښتو ترجمو کې تر ټولو پخوانۍ ګڼل کېږي، عبدالقادر خان خټک د ۱۱۲۳ هـ ق کال د رجب په میاشت کې د دغه کتاب په پښتو ترجمه پیل کړی او د دغه کال د روژې په څلیرویشتمه یې له ترجمې فارغ سوی دی، د کتاب (گلدستې) په پای کې یې د بشپړ و لو تاریخونه داسې کښلي دي:

ز رسل څلیرویشت د سن کلونه

له گلستانه چې دا گلونه

ټول شول ترېجوړه چې گلدسته شوه

یادگار به پاته شي موږ د به څونه

دا کتاب چې گلدسته د گلستان دی

گل چیني ده د عبدالقادر خټک

که تاریخ یې د آغاز د انجام غواړې

سن د هجر په شماره و، د «غقدک»

۱۱۲۳

د دغو څلوریزو مضمون دا ښیي چې په گلدسته کې د گلستان ټول حکایتونه او حکمتونه نه دي ژباړل سوي، رښتیا هم د گلدستې چاپي نسخه چې د سعدي له گلستان سره پرتله سوې ده، په لومړي باب کې څلور -- په دوهم باب کې یو -- په دریم باب

* د عبدالقادر خان د ژوند پېښې د عبدالقادر خان د دیوان تر عنوان لاندې راغلې دي .

کی څلور — په څلورم باب کی یو — په پنځم باب کی یو — په شپږم باب کی دوه په اووم باب کی یو حکایت تړول شوی او لس حکایتونه — او دغه راز په اتم باب کی اته ویشت حکمتونه شته.

ګلدسته په ۱۳۸۱ ه ق ( ۱۹۶۱ ع ) کال د پېښور په شاهین پریس کی د پښتو اکاډیمی له خوا چاپ سوی ده، ښاغلی خیال بخاري یې مقدمه کښلې ده، دچاپ نسخې په ترتیب کی له دوو خطي نسخو څخه کار اخیسته سوی دی — دګلدستې نسخې لږ دي. دوې نسخې یې په برټش موزیم کی یوه نسخه یې دشرقي او افریقایي مطالعاتو د ښوونځي په لائبریری کی خوندی ده. د پښتو ټولنې په کتب خانه کی هم یوه خطي نسخه سته، دغه نسخه په ۱۲۶۶ ه ق کال دا کوړې د خان رسول خان خټک له پاره کښل سوې ده، رسول خان د حسن خان زوی دشهباز خان لمسی دسعدالله خان کړوسی او دتاریخ مرصع ده و لف افضل خان خټک کوسی دی، افضل خان دګلدستې دسترجم وراره ؤ.

دګلدستې لو مړی باب چې دپادشاهانو دخوی خصلت په بیان کی دی، راوړتې په په ګلشن روه کی اخیستی دی، په ګلشن روه کی دګلدستې منتخبات په ۳۳ مخو کی له ۵۳ مخه څخه تر ۸۶ مخه پوري ځای سوي دي.

* * *

ب — دګلشن روه دنظم په برخه کې له دغو لسو کتابو څخه خوځو پانی را اخیستل سوي دي.

## ۱ - د رحمان بابا دیوان:

رحمان بابا د پښتو نامتو شاعر دی او لسمې هجري سدی پای ته دخاص ادبي شهرت تښتن ؤ د ۱۱۰۰ ه ق او ۱۱۰۶ ه ق کلونو تر منځ اشرف خان « هجری »

غوندي متصلف (ځانستاینکي) شاعر له روهڅخه ډېر لیری د جنوبي هندوستان په بیجاپور کي د رحمان بابا د لوړي شاعري ستاینه د خپلي زبانۍ د یوه منلي شاعر په توګه په یوه قصیده کی داسي کړیده.

خوږ زبان یې په زمان شکري نولي
هغه واف چي مستقر یې پېښور دی. ۸۰
د رحمان په ویل ځای د لقب (؟) نشته ۸۱
چي یې ماشعر منظور کړ معتبر دی
(د اشرف خان هجري د چاپي دیوان ۲۳۸ مخ)

رحمان بابا په خټه ابراهیم خیل مومند ؤ، په بهادرکلي کي اوسېدی. ۸۲ د پېښور ښار ته نژدې د هزارخاني په لویه هدیره کي ښخ دی، ژوندي تر ۱۱۲۳ ه ق پوری باوري (یقیني) او تر ۱۱۲۸ ه ق کاله پوري ګماني دی. ۸۳

رحمان بابا پخپل ژوند خپل دیوان جوړ کړی دی، ده ویلي دي:

د «رحمان» و سوزان شعر ته حیران یم
چي یې اور بل شوی نه دی په دیوان
(د کابل چاپ دیوان ۱۲۱ مخ)

درست دیوان د رحمان ځار تر دا غزل شه
چي بیا نې یې کړ کردار د درویشانو
(د کابل چاپ دیوان ۱۲۷ مخ)

---

۸۰ — واف = بلبل — چوني

۸۱ — لقب په عربي ژبه هغه دوهم نامه ته ویل کیږي چي په هغه سړی ستایه سي یا غاندہ.

۸۲ — بهادر کلی د پېښور په جنوب کي د کوهاټ سړک ته نژدې پروت دی.

۸۳ — د پټي خزانې د خطي نسخې په ۹۵ مخ کي چي د رحمن بابا د مرګ کال ۱۱۱۸ ه ق ښودل سوی دی — ماته هندسي تیر وتنه ښکاري چي د نقل کوونکي له لاس اره پېښه ده.

ز ه رحمان پخپل اشعار شکر گذار يم
چي دا هسي رنګ ديوان مي دی مو ندلی
(د کابل چاپ ديو ان ۲۳۲مخ )

د رحمان بابا دديو ان قلمي نسخي خو را ډيري دي،جارج راو رټي په eselection from the poetry of the Afghans کی کښلي دي:
«سادرحمان داشعارود انتخاب له پاره درحمان دديوان شپيته نسخي سره پر تله کړ لي»
درحمان بابا ديو ان تر لس و اره زياتچاپ سوی دی ، تر ټو لو ښخو انی چاپي نسخه چي يې ماليدلي ده يو سلو دري کاله پخوا په۱۲۹۴ ه ق (۱۸۷۷ ع )د مو لوی احمد په اهتمام په لاهو ر کی چاپ سو يده.
جا رج راو رټي په ګلشن رو ه کی دعبدالرحمن سړ بنی تر عنو ان لاندي درحمان بابا له د يو ان څخه۷۳غز لي او ۹ قصيدي(له الف څخه تر ياء پو ري )دالفبي په تر تيب ا خيستي دي. درحمان بابا دديو ان دغه اقتباس سوي بر خه دګلشن رو ه په اته و يشتو مخو کي( دنظم دبر خي له دريم څخه تر ديرشم مخه پو ري)ځای سو يده.
تر را و رټي د مخه پر و فيسر ډ و رن هم په پښتو منتخباتو کی درحمان باباغزلي را وړي وې ۸۵ ،تر راو رټي و رو سته دپادري هيو ز په کليدافغاني کي هم درحمان بابا دديو ان منتخبات سته چي زياتره يي دګلشن رو ه نظمو نه دی ۸۶.

## ۲-دخوشال خان ديو ان:

دپښتو نامتو شاعر خو شال خان خټک (۱۰۲۲-۱۱۰۰ ه ق )دشهبا ز خان

۸۴- دز يات تفصيل له پاره وګو ری؛ -« رحمان بابا »دد وست محمد کامل تاليف۹٦مخ دپيښو ر چاپ۱۳۷۷ ه ق =۱۹۵۸ ع.
۸۵--وګوری: chres to mathy of pushtu له ۸۵ ،مخه څخه تر ۳۰۵مخه پوري.
۸٦- و ګو ری : کليدافغاني له ۹۹ ،مخه څخه تر ۲۳۸مخه پو ری.

(۱۰۰۰–۱۰۵۰ ھ ق) زوی دیحیی خان (۹٦۹–۱۰۱۹ ھ ق) لمسی او دا کوړی (۹۵۰–۱۰۰۰ ھ ق) کړوسی دی۸۷، سلک اکوړی په خټکو کی تری، په تر بو کی انو خیل او په انو خیلو کی حسن خیل ؤ، خوشال خان د خپل نسب په باب و یلی دي:

دافغان په ننګک مي وتړله توره
ننګیالی دزمانی خوشال «خټک» یم
سکه و رو نه مي «تري» دي حال يې دادی
له بولاقو نه لالیری یوخپک یم

(دخوشال خان سر غلري ۳۳٦ مخ)

دخوشال خان زوی اشرف خان هجري (۱۰۴۴–۱۱۰٦ ھ ق) چي د پلار د دغي قصيدې په اقتفاء کومه قصيده و یلي ده په هغه کي يې راوړي دی:

بود و اصل سی پښتون و لی خټک یم
سر تر پایه له نادره فکره ډک یم
له خټکو «حسن خیل» بیا له اکوره
په نسب سکه و راره دمیر باز ک یم

(داشرف خان هجري دیوان ۳۹ مخ)

---

۸۷– دلندی (کابل سیند) پر غاړه خیر آباد ته نژدې «سرای اکوړه» ملک اکوړي و دان کړ یدی–دغه ځای په کتابو کي دملک پور، اکوړه، سرای پــه نومونو یاد سوی دی، خوشال خان و یلي دي: «رحمت په اکوړی شه چي يې و نیوه ځای سرای».

خوشال‌خان دعمر پر شلم کال(۱۰۳۲ ھ ق)په‌شعر و یلو پیل کړی دی۸۸ او په ۱۰۹۵ ھق کال یې ددیوان‌دبیتو نو شمیر له‌خلو یښتو زرواوړی،ده په یوه‌قصیده کې و یلي دي:۸۹

ددیوان که مې‌بیت بیت سره‌حساب کړې
تر څلو یښت‌زره به‌تیر شي‌په دا کال

(دخوشال‌خان‌سرغلري۸۰٦مخ)

خوشال‌خان ددغې قصیدې تر و یلو وروسته پنځه کاله‌نور هم ژوندی ؤ او دپنځو کالو اشعار نور هم‌پر دغه څلو یښت‌زروز یاتیږي،فیاض‌شاعرپه ۱۱۳۲ ھ ق ۱۷۲۰ ع کې کښلې دی: داوخت‌افضل‌خان‌داشرف‌خان زوی دخپل‌نیکه خوشال خان‌داشعاروپه راټولولوبوخت‌دی اوتراوسه‌یې‌تقریباً‌دیرش‌زره بیتونه‌را ټول کړي دي. خوشال‌خان‌له دیوانه پرته‌نورمنظوم کتابونه هم کښلي دي. په نثر کې‌یې دستارنامه(په‌ځانګړې‌توګه)او بیاض(په‌تاریخ مرصع کې)چاپ سوي‌دي. دخوشال‌خان دیوان لومړی وار په ۱۲۸۷ ھ ق(۱۸۷۰ ع )کال په پیښور کې

---

۸۸ — خوشال‌خان و یلي دي:

په‌شل کاله کې‌دیګګ زما‌دشعر په‌اور باړشو

(دخوشال‌خان سرغلري ۷۰۰)

۸۹— ددغې قصیدې دپای‌بیتونه دادي:

وې‌سیاشت دمحرم‌غصه‌یې کال‌ده

۱۰۹۵

په‌غلیم مې غصه ور بڅره دا کال
خدایه هومره مهلت ورکړې‌په‌دنیا کې
چې کاږه کارونه سم کاندي‌خوشال

دډاکتر بلیو ترنگرانی لاندې او بله پلا په ۱۹۲۸ ع (۱۳۴۷ ه ق) دهوتی سردان په رحمانیه پریس کې دلومړي چاپ له مخه چاپ سوی دی – په ۱۳۵۷ ه ق (۱۹۳۸ ع) کال دخوشال خان اشعار دمرغلرو په نامه په کندهار کې دلوی استاد پوهاند عبدالحی حبیبی په زیار، مقابله او تصحیح چاپ سول، نوموړي لوی استاد په انتقادی توګه سره خلور خطی نسخې د خوشال خان د دیوان له لومړي چاپ سره پرتله کړې سرېیره پر دې یې په ۴۸ مخو کې یوه محققانه مقدمه پرو کښله او د خوشال دژوند پر تیاره ګوټونه یې روښانه کړل. تر دغه چاپ وروسته دامجموعه د خوشال خان د کلیات په نامه دوه پلا په پیښور کې (په ۱۹۵۲ – ۱۹۶۰ ع کلو) د دوست محمد کامل په زیار او مقدمه چاپ سوې ده، دخوشال خان داشعارو مجموعه «دارمغان خوشال» په نامه سید رسول رسا په پیښور کې هم چاپ کړله . پارسی اشعار، فضل نامه، باز نامه او سواتنامه یې هم پر زیات کړل او یوه ښه مقدمه یې پرو کښله.

په ګلشن روه کې د خوشال خان ختک له دیوانه څخه ۹۲ غزلي دالفبې په ترتیب اخیستل سوي دي، په پای کې یې یوه قصیده هم سته چې په ۱۰۸۶ ه ق کال دسوات په برمول کې خوشال ویلې ده – دخوشال خان دنظمو نو دغه اقتباس سوې برخه دګلشن روه په ۴۰ مخو کې دنظم برخې له ۳۳ مخه څخه تر ۷۲ مخه پوري سویده .

### ۳– دحمید دیوان:

دپښتو ژبې ناز کخیاله شاعر حمید مومند دولسمی هجري سدی په لومړي نیمایي کې ژوندکاوه – دده ژوند د ۱۱۳۸ ه ق کال دشوال د میاشتې تر شپږو یشتمي

پوري باوري دی، ځکه چې په دغه تاریخ دشرعةالاسلام له پښتو کولو څخه فارغ سوی دی، ده د کتاب په پای کې و یلي دي:

و کړه ماخدای ته داتیښته
په زړ سل اته څلو یښته
دشوال په شپږو یشتم
په دادادخدای و کتم
که کاخدای دافیرو زي
د «حمید» فقیر رو زي
شه په حمدو په درو د
خدای، بنیان دخدای خو شنو د
دلي ختم شه کلام
په ثناصلو ت سلام

دمیر احمد شاه رضوانی داخبره چې حمید مومند دتیمور شاه ابدالي (١١٨٦ ١٢٠٧ ه ق) دزماني سړی دی، یوه تیر و تنه ده چې میجر جارج راورتي د پښتوگرامر په لومړی چاپ کې کړې وه، دمیر احمدشاه رضواني دې ته نه دی پام سوی چې دنوموړي جارج راورتي فکر خپلی دغی تیروتنی ته په Selection from the poetry of the Afghans کې اوښتی دی او ددغه کتاب په ۸۵ مخ کی یې دحمیدمومند دمرگ کال ۱۷۳۲ع (۱۱۴۵ ه ق ) ښوولی دی ، د غه وروستی روایت بلوم هارټ هم په ۱۹۰۵ ع کال دبرټش موزیم د خطی نسخو په کتلاک او پوهاند رښتین دحمیدددیوان په مقدمه کې نقل کړی دی.

۹۰— وگوری: دحمید دیوان دکابل چاپ، دمقدمې ۶ مخ .

حمید مومند یو دیوان لري چې درو مرجان یې بولي، راورټي په گلشن روه کې له دغه دیوانه څخه شپیته غزلې او درې قصیدې دالفبې په ترتیب را اخستې دي او دغه اقتباس سوې برخه دگلشن روه په ۸۲ مخو کې دنظم دبرخې له ۷۸ مخه څخه تر ۱۰۲ مخه پورې ځای سویده ۹۱ .

دحمید دیوان لومړی وار په ۱۲۸۷ ھ ق (۱۸۷۰ ع بمبی) او دوهمه پلا په ۱۲۹۵ ھ ق(۱۸۷۷ ع) په بمبی کې، دریمه پلا په ۱۳۳۱ ھ ق (۱۹۱۳ ع) په لاهور او څلورمه پلا په ۱۳۷۰ ھ ق(۱۹۵۱ ع) په کابل-پنځمه پلا په ۱۹۵۸ ع ددرومرجان په نامه په پښتو ټولنه کې چاپ سوی دی —د لاهور چاپ دملا عبدالغفار کندهاري هوتک حاشیه لري او دکابل په چاپ کې د پوهاند رښتین مقدمه سته .

## ۴-د خواجه محمد بنګښ دیوان:

خواجه محمد دشمالي هندوستان او کابل دګورګاني پاچاشاه جهان( ۱۰۳۷— ۱۰۶۸ ھ ع )او دهغه دزوی اورنګزیب عالمګیر( ۱۰۶۸ — ۱۱۱۸ ھ ق ) د زمانې سړی دی، ده ویلي دي :

---

۹۱— حمید ماشوخیل پر دیوان سربیره نور کتابونه هم لري لکه: دشاه و ګدا منظومه پښتو ترجمه(په ۱۱۳۷ ھ ق کال) دنیرنګ عشق منظومه پښتو ترجمه دشرعة الاسلام منظومه پښتو ترجمه(په ۱۱۴۸ ھ ق کال) .

## هسی خو بن د تخت د پاسه «خورم» نه دی
## چي عاشق (دا) ستا په‌در کي خو بن خورم دی۹۳



### د «اورنګ» په‌پاچهي کي‌مي نیاونشي
### زه‌خواجه محمدبه وزم و بل‌لورته

۹۲— دشاه‌جهان اصلی‌نوم سلطان خرم ؤ، پلار یې جهانګیر‌پخپل تزک کي کښلي دي: «ازجګت ګسائین دختر موته‌راجه‌سلطان خرم‌درسنه سی‌و شش‌از جلوس‌همایون‌والدبزرګوارم‌مطابق‌سنه‌نهصدو نودو نه هجري در بلدهٔ لاهور عالم‌رابوجو دخو دخرم ساخت» (و ګوری‌ء‌تزک‌جهانګیری۹مخ‌دلکهنو دنول کشور چاپ)— شاهجهان‌د پلار په‌ژوند‌دشهزاده‌خرم په‌نامه‌یادیده، پلار یې‌پخپل تزک کي کښلي دي: «روزیکشنبه پانزدهم پنجاه هزار روپیه‌ساحق بخانه صبیهٔ مظفر حسین میرزا ابن‌بهرام‌میرزا ابن‌شاه‌اسماعیل‌صفوي که‌بجهت‌فرزندخرم خواستګاری‌شده‌بو دفرستادم.» (وګوری‌ء: دتزک‌جهانګیري۷۷مخ) خوشال‌خان ویلي دي:

ددنیا په‌لو یې‌خه‌باور خو شاله!
پرون دور دخرم‌نن داورنګ دی
(دخوشال‌خان‌سرغلري ۲۰۳مخ)

دابناد آدم‌خان له‌لاسه شوي
وس په‌حکم دخرم‌پکښي‌دا کارشي
(د خوشال‌خان سرغلري ۱۹۱مخ)

۹۳— وګوری‌ء: دګلشن روه—دنظم‌برخه ۱۱۸مخ—دخواجه‌محمد بنګښ د چاپي‌دېوان‌په ۱۲۹مخ کي‌دغه‌بیت‌داسي کښلی دی

هسي‌خو بن‌د تخت‌دپاسه حورمنه وي
عاشق ستاپه‌درکي پروت خو بن وخو ږدی

خواجه محمد په چشتیه صابریه طریقه کې د میاعبدالرحیم مرید دی، میاعبدالرحیم د خپل پلار میاعلی (علی خان) خلیفه و، میاعلی چې د اشنغر د شیر پاو او سیدو نکی او د محمدزی قبیلې له یوسفخیلي پښتې څخه دی، د اکبر پوره د اخوند پنجو بابا (۱۰۳۰ ه ق مړ) خلیفه ؤ، خواجه محمد بنګښ وایلي دي:

چې ساکن د چشتیانو په سر یردی
شیخ حضرت عبدالرحیم زموږه پیر دی

۳۹— اکبر پوره یو لوی کلی دی، دغه کلی د پیښور څخه تقریباً پنځه میله لیری پروت دی — داخوند پنجو بابا هدیره په دغه کلي کې ده — داخوند پنجو د ګنبدي څنګ ته د میاعلی قبر دی، میاعبدالرحیم تاریخ جبی ته نژدې په تپاره نومې کلي کې ښخ دی. (وګوری: دخواجه محمدبنګښ د چاپي دیوان مقدمه ۵۳ مخ)

۴۰— داخوند پنجو د مرګ کال د خزینة الاصفیا په ۱/۹۷ مخ کې ۱۰۷۳ ه ق کال ښودلی دی — مؤلف مولوی غلام سرور لاهوري (۱۲۴۳—۱۳۰۷ ه ق) وایلي دي:

چو پنجو رستم سر پنجهٔ عشق

ز دنیا گشت در ذات خدا طاق

وصالش «عارف اخلاص» گفتم

۱۰۷۳

دگر کردم رقم «فیاض آفات»

۱۰۷۳

د تحفة الاولیاء په ۹۳ مخ کې داخوند پنجو د مرګ کال ۱۰۳۰ ه ق ښوول شوی دی — دخواجه محمد بنګښ د دیوان د مقدمې په ۵۳ مخ کې هم دغه تاریخ ښودلی دی .

شفقت دخپل پدرو ر باندي وشه

ده سو ندلی محبت شهدو شکیر دی

پیر رو ښان د میاعلی ،اخو ند پنجو شه

هسی پو ر ته پسی تللی داخنځیر دی

دخو اجه محمد دیو ان په ۱۹۸۵ ع (۱۳۳۵ ه ق ) کال په پیښو ر کي چاپ سوی دی، پر یشان خټک او خیال مقدمې پر لیکلي دي .

ر او رټی په گلشن رو ه کي دخو اجه محمد د دیو ان له کو مي خطي نسخې څخه ۳۲ غز لي او ۲ قصیدې دالفبې په تر تیب ر ا اخیستی دي، دغه اقتباس سوې بر خه د گلشن رو ه په څو ر لسو مخو کي د نظم د بر خې له ۰ ۱ مخه څخه تر ۱۸ ۱ مخه پو ري ځای سو یده .

۵-د میر ز اخان د یو ان:

میر ز اخان دنو ر الدین (۹۸۹ ه ق ) زوی د پیر رو ښان بایز ید او رمړ ( ۹۸۰ ه ق مړ ) لمسی دی ۹٦، په ۱۰۳۰ ه ق کال دد کن په جنگو نو کي د مغلو په طر فداری ومړ دده څو ان زوی عبدالحکیم هم په دغو جنگو نو کی مړ سوی دی، میر ز اخان د دغو جنگو نو په باب تر سر گ لږ ه مو ده د مخه و یلي دي:

په تار یخ دز رخلو یښت و ایم داخبر

چي لیده شي په گجر ات پهد کن جبر

---

٩٦— و گو ری: د بستان مذاهب ۳۱۱ مخ دلکهنو چاپ—مأثر الامر اء ۲/۳۴۳ مخ—منتخب اللباب ۱/۴۳۵ مخ—حالنامه—ددو لتـ او انی دیو ان ۲۰ مخ د کابل چاپ .

پخپل عمر خو خبر د نیک او بدشوم
په‌دا دو دسي قتل نه‌و لید په‌ډېر
مسلمان، کافر ان گهسره پر اته دي
چي يې ستر نه په‌او رشي‌نه په‌قبر
يوعجب و ينو ته‌تېري‌زمانه‌ده
درحمت په‌او ښو و نه‌ژړل ابر
اي«میرزا»له‌هسي‌قامه پناه‌غواړه
چي‌په‌ژ به‌مسلمان‌خوي‌يې دگبر
(دمیرزادديوان۲۷مخ دکابل‌چاپ)

دولت لوانې (تر ۱۰۶۸ ه ق پورې ژوندی)دمیرزاخان‌دمرگ‌تاريخ داسې راوړی‌دی :

میرزاخان‌دنورالدين‌صفت‌به خوکړم

میارو ښان‌دپو هي‌ښهر دی‌یې‌و رؤ
دهادي په‌زړه‌چي‌پټ‌ؤ په‌ډېر کالد
دمیرزاخوله دهغه‌علم مظهرؤ

هیځ افغان‌ده‌غوندې‌شعر کړی‌نه دی
دی‌پخپل زمان‌تر هر شاعر بهتر ؤ
په‌دنیا یې سحبت،تکبر نه کړ
په‌ظاهر سپینه‌جامه کي قلندر ؤ
دد کن په‌جنگ شهيدشه،خوشنو داوسه
په‌تاریخ دز رخلو يښت‌دده گذرؤ
( ددولت‌ديوان. ۲مخ—د کابل‌چاپ)

د میرزاخان ترسرګدیو خلو یښت کاله ورو سته (په ۱۰۸۱ ه ق کال) خوشال خان دده هشاعری داسی ستاینه کړې ده:

له چانه په پښتو کي ما میرزا ن لیدلی نه دی
میرزا په دازبان کي و یل کړي دی تتلي

د( خوشال خان سرغلری ۹۹٦سخ)

جارج راورتي دپښتو ګرامر دلومړي چاپ په مقدمه کي (په ۱۸۵۵ ع کال ) د میرزا خان نوم فتح خان ښوولی دی او قبیله یې یوسفزی ښنبلي ده-۹۷. خو په ۱۸٦۰ ع کال یې خپله دغه تېروتنه سمه کړې ده، په ګلشن روه کي یې دده اشعار دمیرزا خان انصاري ترعنوان لاندی چاپ کړي دي ، د پښتو ګرامر د دوهم چاپ په مقدمه کی یې هم دمیرزاخان انصاري په نامه راوپیژاند لی او فتح خان یوسفزی یې ځني بېل کړی دی .

دمیرزاخان دیوان لومړی وار په (غلطيسر: دمیرزا هدددیوان په نا-۹۸ ) په ۱۳۳۴ ه ق کال (۱۹۱٦ ع) په لاهور کي چاپ سوی دی، دهوتک سلا عبدالغفار کندهاري حاشیې هم پرسته -۹۸-دوهمه پلا په ۱۹۵۹ ع (۱۳۷۹ ه ق) کال په پیښور کی همیش خلیل او دریمه پلا په ۱۳۹۵ ه ق (۱۹۷۵ ع) کال په کابل کی پښتو ټولنې چاپ کړی دی. په دغو دوو روستیو چاپونو کی سریزي هم سته .

جارج راورتي په ګلشن روه کي دمیرزاخان او رسړله دیوانه څخه

۹۷ — دپښتانه شعراء په ۱/ ۸۰ مخ کي هم دغه تېروتنه راغلې ده .

۹۸ — وګوری: دمیرزاخان دیوان په دغه چاپي نسخه کي ۱۷ — ۳۲ — ۵۷ — ۵۸ — ۷۵ . . . مخونه.

پنځلس غزلي او څلور قصيدي اخيستی دي . د غه اقتباس سوي برخه دګلشن روه په دوولسو مخوکی دنظم دبرخي له ۱۲۱ مخه څخه ، تر ۱۳۲ مخه پوري ځای سو يده .

تر را و رتهي دمخه پروفيسر ډورن هم دمير زاخان د شعر څو نموني په پښتو منتخبا تو کي چاپ کړي وې -۹۹ .

## ۶- د شيدا ديوان :

جارج راورټي د د غه کتاب (ګلشن روه ) د نظم د برخي په ۱۴۹ مخ ، د selection from the poetry of the Afghans په ۳۰۵ مخ شير محمدخان ګنداپور دتواريخ خورشيد جهان په ۲۴۱ ـ د پټي حيات خان دحيات افغاني په ۳۱۸ مخ T.C. Plowden د کليد افغاني د انګريزی ترجمي د ۳۳۷ مخ په لمنه ( حا شيه) کي د پښتو ژبي مشهور شاعر کاظم خان«شيدا» دتاريخ مرصع د مؤلف نومو ړي افضل خان خټک زوی داشرف خان هجري لمسی اودخوشال خان کړوسی ښوولی دی . دا روا يت د «شيدا » دديوان په مقدمو ، کتلا ګو ، د پښتو ادبياتو په تاريخو نو او تذکرو کي هم په وار وار و نقل سوی دی، اوسير احمدشاه رضوانی(۱۲۷۹-۱۳۵۳ هق )دپلارنوم په بهارستان افغانی کي و يلي د ي :

پسله د و يه کاظم خان «شيدا» ګو ياشو

چي و زوی دانشمنددافضل خان

«شيدا» په خپل ديوان کي نه دی راوړی ،خو په «سرای اکوړه» کي

---

۹۹— و ګوری: . . . . . Chrestomathy. په ۳۰۵ مخه څخه تر ۳۷۳ مخه پوري.

یې د«افضل آباد» خاص ذکر د خپل تاتو بي په توګه سره په یوه رباعي کې کړی هغه رباعی داده :

نسیمه ورشه د«سرای» سواد ته
له هغه پسه «افضل آباد» ته ۱۰۰
سلام مي وکړه په دوارو لاسو
درو دیوارو ګل وشمشا دته

نور محمد« نوری » کندهاري چې په تحفة الامیر (د ۱۲۸۰ ه ق تألیف ) کې دندیې ( ساندې) تر عنوان لاندې د کاظم خان «شیدا» دوې رباعی ګانې نقل کړې دي هلته یې شیداد خوشال خان له لمسیو څخه بللی دی او د پلار د نامه یادونه یې نه ده کړې .

په دې وروستیو کتو کې په دې باب چې « شیدادافضل خان زوی دی» څینو کسانو ته څه شك پیدا سوی دی او ددې شك سببونه دادي :

الف ـ په تاریخ مرصع کې چې د ۱۱۳۶ ه ق کال د کوچنی اختر تر سیاشتې پورې واقعات درج دي ، په هغو کې د (مؤلف) افضل خان دزوی په توګه د کاظم خان نوم نه دی راغلی ۱۰۱.

دا شك دجارج راورټي په دې خبره له منځه ځي ، چې لیکلی یې دی :

---

۱۰۰ ـ دافضل آباد ـ او افضل آباد د باغ ذکر په تاریخ مرصع کې هم سته . وګوری : ۳۱۴ ـ ۳۴۶ ـ ۳۶۹ ـ ۳۷۲ مخونه .

۱۰۱ ـ په تاریخ مرصع کې دخواجه کاظم خان پر نامه فقط یو وار پیښیږ و داسې : د کابل دګورګانی صوبه دار (والی) سپهدار خان مستوفی و ـ سپهدار خان له ۱۱۲۶ ه ق څخه تر ۱۱۲۷ ه ق پورې یو کال د کابل صوبه داري وکړله .

«کاظم خان شیدا د ۱۱۳۵-۱۲۰۰ ه ق کلو نو تر منځ ژوندی وو» ۱۰۲

نیاغلی د وست محمد کامل دتاریخ مرصع دمقدمې په (م ب) مخ کې ددغه شك په ردکې کښلي دي:

«ترڅو چې ددغو خبرو یا مشکلاتو تعلق دی، نو که افضل خان چې سوعرض کړی دی په ۱۰۷۰ هق کال زیږیدلی وي نو په شوال ۱۱۳۶ ه ق کښې ۱۰۳ چې ترهغې وروسته دي یې په تاریخ مرصع کښې حالات راوړي دي، به د شپېتو یو شپېتو کالو وه. نه خو ناممکنه اونه خوغیرا غلبه ده، چې په ۱۱۳۶ هق اوتري پس ته یې نور زامن لو نه هم شوي وي یاد اچې په شوال ۱۱۳۶ ه ق کې یې زامن دو مره واره وو چې دهغو د ذکر موقع تر دغه وخته دو اقعاتو په بیان کې رانه غله.»

ب — کاظم خان شیدا ددیوان په مقدمه کې دعابدخان له نامه سره «وروړ» کښلی دی او په تاریخي قطعو کې یې ددوو وړونو (چې فتح او الله نوړ نو سیدل) دمرګ تاریخونه راوړي دي، په تاریخ مرصع کې دافضل خان دزامنو په تورګه ددغو دریو وړونو نه یادو نه نه دسوې ددغه شك درد له پاره هم نوموړي دوست محمد خان کامل دتاریخ مرصع په مقدمه کې په هغه دلیل اکتفاء کړیده چې دلو مړي شك دایسته کولو له پاره یې راوړی او پاس رانقل سوی دی.

خو ماته په فتح خان او الله نور پورې دمر بوطي تاریخي قطعې سیاق داسې نه ښکاري چې دوی دې د کاظم خان شیدا وروڼه وي، بلکه زه ګمان کوم دو مړښتانه وروڼه په یوه

۱۰۲ — د راورټي ګوزیده Selection From the poetry of the Afghans دشیدا د منتخبو قطعو نو دا: ګر یزی تر جمې په باب نیکای یاداشت

۱۰۳ — په اصل کې ۱۰۳۶ ه ق کښلي ده — چې دچاپ تیرو تنه یې باید وبولو.

سیاشت کې سړه دي او دغه پیښه د روهیلکهنډ د پیر و پښتنو د خواشینی سبب ګرزېدلې ده چې یو په هغو کې کاظم خان شیدا غوندې حساس شاعر دی، هغه قطعه داده:

چې فتح او الله نو ر له دنیا ولاړل
په غمو نو کې بې فرق ترمیاشتی کم
په هر چاؤ رخلات سخت ددو اړو وز و نو
په فراق کې بې نالان و ولوی وکم
تأمل بې په بیان د تاریخ وشه
راته و وې زړه «آهاد قلوب غم» ۳۰۱
۱۱۸۹ هـ ق
(د دیوان ۱۶ مخ — کابل چاپ)

کاظم خان شیدا چې کومه رباعی د خپل و روړ په سانده (سرثیه) کې ویلې ده دهغې اتقاد، تأثر او رقت چې له پورتنی قطعې سره پر تله سې د سیاق بېلتون یې لـه و رایه څرګندیږي، هغه رباعی داده:

له حب جاه په زړه کې سوړ یم
دملنګیه و کارته جوړ یم
سرمي خوړلی د شیرین و رو ردی
له ژندګیه تر حلقه سوړ یم

دافضل خان ختک (۱۰۷۵ هـ ق زو کړی) دلمسیو، داسدالله خان (۱۱۱۹ هـ ق زو کړی) دزامنو دوهم خوشال خان (۱۱۷۲ هـ ق شهید)

---

۳۰۱ — دشیدا د دیوان په کابل چاپ کې تر «آهاد قلوب غم» لاندې (۱۱۹۱ هـ) کښلی دی.

او سرفراز خان۱۰۵ (۱۱۸۳ ه ق مړ) د سرگونو کوم تاریخي قطعې چې کاظم خان «شیدا» ویلې دي ۱۰٦ دهغو انتقاد(سوز) هم د فتح خان او الله نور د سرگ تر قطعې ډیر زیات دی او دا ښیي چې خوشال خان شهید او سرفراز خان د خټکو پلار کي تر فتح خان او الله نور زړ دیړو و .

ج ــ کاظم خان شیدا د خپل پلار د مرگ کال ۱۱۸۳ یا ۱۱۸۹ یا ۱۱۸۷ یا ۱۱۸۳ ه ق ښو ولي دی دا عددونه له هغې تاریخي مادې څخه را اوزي چې په دغه قطعه کي راغلې ده :

داچي والدمي ارتحال وکړ
ځاي یې جنت شه دنیا زندان وه
تاریخ دار نگه درحلت ووې ۱۰۷
خو دوماته :«سیاشت د شعبان وه»۱۰۸
(د کابل چاپ دیوان ۲۱٦ مخ )

دغه تاریخي ماده څلور ډوله لوستلې سوې ده او دغه عددونه ځنې راوزي :

---

۱۰۵ ــ سرفراز خان هغه رسمي لقب دی چې د لوی احمدشاه بابا (۱۱٦۰ــ ۱۱۸٦ ه ق ) له خوا اسدالله خان مشر زوی سعادتمند خان ته ورکړ سوی دی.

۱۰٦ ــ وگوری د شیدا د دیوان ۲۱٦ــ۲۱۵ مخونه.

۱۰۷ ــ د همیش خلیل د چاپ په ۲۰۵ مخ او د ډاکټر انوارالحق د چاپ په ۳۵۰ ۱ مخ کی دا نیم بیتي داسی راغلی دی:

«تاریخ یې دار نگ د رحلت ووې»

۱۰۸ ــ تر دغي تاریخي مادي لاندي ۱۱۸۳ ه ق عدد کښلی دی ــ مگر له ذکر سوي تاریخي مادې څخه ۱۱۸۹ ه ق راوزي.

| | | |
|---|---|---|
| سیاشت دشعبان و ه | = | ۱۱۸۹ |
| سیاشت دشعبان و | = | ۱۱۸۴ |
| سیاشت دشعبان ده ۱۰ | = | ۱۱۸۷ |
| سیاشت دشعبان ده ۱۱ | = | ۱۱۸۳ |

په دغو څلورو دوه لونو کي ترټولو وروستی لوستنه دجمل په حساب له هغه عدد سره برابریږي چي په دریو سرو چاپي نسخو کي ترتاریخي ساد و لاندي کښلي دی؛ او ددغه مطابقت له امله ساته دغه وروستی لوستنه تر نورو غوره بنکاري دنبوی حدیث «الدنیا سجن المؤمن و ...... صحیح،» پښتو ترجمه «دنیا زندان ده» هم داثابتوي چي (ده= da )باید ردینوی نه(و ه= Wa ).

په ۱۱۸۳ ه ق کال د کاظم خان شیدا دپلار سرګذاو (دځینو روایتو نوله مخي دافضل خان مرګ په ۱۱۵۳ ه ق یا ۱۱۶۱ ه ق کی پیښیدلی) یو داسی تناقض دی چي یا به دافضل خان سرګذروایتي تاریخونه ناسم وال کیږي او یا به کاظم خان شیدا دخوشال خان دکوم بل لمسی په زامنو کي شمیرو.

---

۹۰ ۱ــ دغه تاریخي ساده دهمیش خلیل په چاپ کي کښلي ده. ګر تر اریخي سادی لاندي ۱۱۸۳ عدد راغلی دی.

۱۱۰ ــ دلته داضافت دال ستهــخکه نو (ت) باید په زیر و لوستله سي ــد غه تاریخي ساده دداکتهرانوار الحق په چاپ کي راغلي داو تر تاریخي سادي لاندي ۱۱۸۳ ه ق کال کښلی دی.

۱۱۱ ــ دغه حدیث نبوي دو ثیقة الاخرت ۷ مخ کي داسي له پښتو کړ دسوی دی

ده دنیا بندیخانه دمومنانو        باغ باغچه بوستان یه حق د کافرانو

د کاظم‌خان شیدا زوکړه راورتې‌د۱۱۳۵—او۱۱۴۰ھ ق کلونو تر منځ بللې ده‌او بلوم‌هارټ دبرتش‌موزیم دکتلاک په دوهم ویشتم مخ کې د۱۱۴۰ھ ق (=۱۷۲۷ع) کال په شاوخوا کې‌ګڼلې ده،دغه‌و روستی روایت د کاظم خان‌شیدا ددیوان و چاپي نسخو په مقدمو کې رانقل‌سوی دی.۱۱۲

کاظم‌خان شیدا په‌نوي‌ځوانۍ کې‌دپردیسی په‌غم‌اخته‌سو یدی‌او په‌هغه‌پردیسي کي سرېدی — ده ددیوان په‌مقدمه کي کښلي‌دي :«په عنفوان شباب کي‌مي استراحت‌دحضر په‌محنت دسفرو بدل‌شه‌او الی‌آن مي‌په‌شام‌دغربت‌صبح دوطن مالوفه‌طالع‌نه‌دی» کاظم‌خان شیدا‌د۱۱۵۳—او ۱۱۶۱ ھ ق کلونو ترمنځ دپردیسی په‌لړ کي سرهند ته رسیدلي او هلته ددوهم محمدمعصوم مجددي نقشبندی (۱۱۶۱ھ ق مړ)مریدسوی دی—دوهم‌محمدمعصوم مجددی دمحمد اسماعیل(۱۱۳۶ھ ق مړ)زوی‌دمحمدصبغت‌الله (۱۰۳۲—۱۱۲۱ھ ق لمسی د عروةالوثقی‌لومړی‌محمدمعصوم(۱۰۰۷—۱۰۷۹ھ ق ) کړوسی او دمجدد الف ثاني‌شیخ احمدالکابلی‌السرهندی(۹۷۱ —۱۰۳۴ھ ق) کوسي‌دی- په طریقت کي دخپل‌نیکه محمدصبغة الله خلیفه ؤ،محمد صبغة الله له خپل پلار اولومړی محمد معصوم‌او هغه لەخپل پلار حضرت‌مجدد (رح) څخه‌د ارشاداذن مو ندلی دی، همیش‌خلیل‌دشیدادیوان په‌مقدمه (ک)مخ کي کښلي دي :

«شیداسرهندشریف‌ته‌لاړ ،دلته‌هم‌ډیره موده‌پاته نه‌شو،راسپورته‌لاړ، دغو ورځو کې‌دریاست‌راسپور حکمران‌فیض‌الله‌خان‌ؤ نو اب‌فیض‌الله‌خان‌پخپله‌هم پښتون ؤ .........»

دغه‌مطلب کټ‌مټ ډاکټر انوار الحق دشیدادیوان‌دارد و ترجمې‌په‌مقدمه (۳۷مخ) کي اخیستی دی،زمایه‌خیال دنواب‌فیض‌اله‌خان(۱۱۸۸-۱۲۰۸ھ ق)

۱۱۲ — وګورئ—د کابل چاپ‌دمقدمې الف مخ—دانوار الحق‌چاپ‌دمقدمې ۳۷ مخ د همیش‌خلیل چاپ دمقدمې(ط)مخ .

دحکمرانی پەو خت کی رامپور تەدشیداتگ دتأسل و ږخبره دەداخکه چي
نوابفیض اللهخان دروهیلکهنډدنوابی ترږنګیدلو و روسته په ۱۱۸۸ ه ق د
رامپور نواب سوی دی‌او دشیدا پهٔ دیوان کي په ۱۱۶۲ ه ق کال د نوموړي
نوابفیض‌اللهخان‌دپلار دروهیلکهنډنواب«علی‌محمدخان‌پړیخ »د مرګ مرثیه
او تاریخی‌قطعه‌دا‌ښیي۱۱۳چي‌شیداتر۱۱۶۲ ه ق پخوا روهیلکهنډته‌رسیدلی دی
او دفرخ‌آباد‌دنواب‌احمدخان‌بنګښ(۱۱۶۳—۱۱۸۵ ه ق )له‌لاسه په‌۱۱۶۳ ه ق
کال‌دنواب‌منصورخان‌صفدرجنګ(۱۱۵۱—۱۱۶۷ ه ق)له‌خواخخه په‌فرخ‌آباد
کی دمقررحاکم‌نول رای دوژل کیدلوم۱۱ په۱۱۶۵ ه ق کال‌پرفرخ‌آباداو

---

۱۱۲ — دهغی مرثیي‌څو بیته دادي:

طبل رحلت زد سوي ملک بقا
تاعلی محمدنواب نامدار
از بلاد هند تا مسکو نروه
نیست افغان را بغیر ازگریه کار
سال این ماتم بتو گر ددجای
«هی هی افغان »اگر گیری‌شمار
۱۱۶۲ ه ق

۱۱۳ — ددغي تاریخي قطعې څو بیته دادي:

خان احمد بروز رزم و وغا
تیغ قطاع از نیام کشید
آن نول کافر لعین و شقی *

روهیلکهنډ باندي د نواب منصور خان صفدر جنګ او مرهټو د ګډ برید ۱۱۵
په ۱۱۸۸ هـ ق کال د حافظ الملک حافظ رحمت خان پېښی ۱۱۶ د شهادت تاریخ قطعې
په روهیلکهنډ کي د نواب فیض الله خان د نوابی تر پیل کیدلو پخوا د شیــــدا
استوګه ثابتوي شیدا په یوه رباعی کي د روهیلکهنډ د دوو مشهورو ښارونو (رامپور
او بانس بریلي) یادونه داسي کړیده:

ورځ د ښنت ده، ورېځ ده ګوره
وبریلي ته ځو له رامپوره
ګویا زعفران دي داځ ګلونه
چي بهرمند یو نن له سروره (د کابل چاپ دیوال ۶۳ مخ)

*نائب خاص رافضی شدید
زد بشتافت از جهان په جحیم
گشت تاریخ ارتحیثو یایدم
«۱۱۶۶ هـ ق»

۱۱۵ — د دغی قطعې څو بیته دادي:
پښتانه د کټهیر ستر لرل دی
که هرځو ورولکه غر قوی بنیاد
و تاریخ ته بې حیران د واقعات وم
راته وویل خپل زرای «عظیم فساد»
«۱۱۶۵ هـ ق»

۱۱۶ — دغه قطعه داده:
په میدان چي حافظ جیو پر یوت شهید شو
کشنده یې په رحات کی شو عجول
استفسار که د تاریخ کاندی څوک و ایه:
جي: «یو کال وه د قاتل دستول»
۱۱۸۸ هـ ق

کاظم‌خان شیدا په ۱۱۹۳ ه ق کال په راسپو رکي و مړ، دمړینې تاریخي ماده یې «دل‌نظیر» ده ۱۱۷ چي په دې رباعی کي راغلې ده:

دشیداپه‌آشیانه کی‌جهان‌تریخ شه
د کباب‌غوندې‌یې کون‌ومکان‌سیخ شه
درست‌بدن‌یې‌گو یازړه‌دی‌په سینه کي
«دل‌نظیر» د کاظم‌خان‌دمرگ‌تاریخ‌شه

۱۱۹۳

د کاظم‌خان‌شیدا دیوان‌تر اوسه‌پورې‌درې‌واره‌چاپ‌سوی دی، لومړی وار په (۱۳۷۲ ه ق = ۱۹۵۲ ع) کال‌دښاغلی‌لیکوال‌عبدالرؤف‌بینوا په‌مقدمه، تصحیح او تحشیه په کابل کی—دوهم‌پلا په ۱۹۶۵ ع کال (۱۳۸۵ ه ق) دهمیش خلیـل په‌مقدمه او ترتیب‌او دریمه پلا په ۱۹۶۶ ع کال (۱۳۸۶ ه ق) په پیښور کی د ډاکتر انوارالحق په‌زیار چاپ‌سو ' و روستی‌چاپ‌یې‌اردو ترجمه‌هم‌لري.

په گلشن‌روه کی‌د کاظم‌خان «شیدا» له‌دیوانه خخه ۳۸ غزلې‌دالفبې‌په ترتیب را اخستل‌سوي دي‌او دغه‌اقتباس‌سوي برخه دگلشن‌روه په ۱ مخو کی (له ۵ ۳ م مخه خخه‌تر ۸ ۳ م مخه‌پورې) ځای سو یده.

د کاظم‌خان «شیدا» دوې‌غزلې‌د کلیدافغاني په ۳۶۳—۳۸۷ مخونو کی‌هم نقل‌سوي دي.

---

۱۱۷ — همیش‌خلیل دشیدا دمرگ‌تاریخ ماده «بینظیر» راوړې‌ده‌او لاندي عدد ۱۱۹۳ و رته کښیلی دی (و گوری د همیش‌خلیل دمقدمې «ع» مخ) «بی‌نظیر» که‌تاریخی‌ماده سي ۱۱۷۲ ځني‌راوزي‌او دایوه تیر و تنه‌ده‌چي‌بایدسمه کړله‌سي.

## ۷– د اشرف خان هجري دیوان

د خوشال خان خټک (۱۰۲۲–۱۱۰۰ ه ق) دویم زوی اشرف خان په ۱۰۳۰ ه ق (۱۶۳۵ ع) کال په سرای اکوړه کې زیږېدلی دی۱۱۸ مور یې سرجانی نومېدله د الف خان لور د ملک سرور لمسۍ او د سیرک کړوسۍ سیني خټکه او په سینیو کې الګ خیله وه * واده یې په ۱۰۴۰ ه ق کال سوی دی او په ۱۰۸۰ ه ق کال سړه ده.۱۲۰

د ۱۰۷۳ ه ق کال د ځلرسي خوړ په او اسطو کې چې خوشال خان په پېښور کې مغلو بندي کړ او بیا یې دوی سیاستي پس ډهلۍ ته ولیږه، اشرف خان د خدا یار

۱۱۸ – اکبر خان د خوشال خان تر ټولو مشر زوی و، تر اشرف خان د مخه زیږېدلی دی – داوړه ور خو ؤچې وسړ.

۱۱۹ – خوشال خان په ۱۰۸۱ ه ق کال په یوه قصیده کې ویلي دي:

د نطفې اثر سي و لاړ پکښې ضایع شو
وار په پېړد سرجانۍ لري تاثیر
(د خوشال مرغلري ۹۹ مخ)

*خوشال خان په انو خیلو کي هوتي دی، هوتي او خټک (سیني) په شجره کي ورونه شوي او لسوي دي.

۱۲۰ – خوشال خان ویلي دي:

پوره زر اتیا کلو نه د هجرت وو
چي د مور پخوا سي و سړ مشر کور
(د خوشال خان مرغلري ۲۰۶ مخ)

او جگرام په لمسه کابل ته ولاړ، چي هلته د کابل له گورگاني صوبه دار (والی) سیدامیر خان خوافی سره د پلار دمخلاصون په باب وږ غیږي. (۱) گورگاني صوبه دار ته چي په لاس ورغی زندان ته یې واچاوه - دبهادرخان د اوږدزی (۱۰۵۹ ه ق مړ) دزوی دلیر همت خان په سپارښت او ضمانت خوشحال سو — مگر ډیر ژر یې بیرته زندان ته و اچاوه، دا پلاپیادنو سوړي دلیر همت خان داوږدزی په ملاتړ له زندانه راووت - وطن ته ولاړ، او د ختکو خانسو، په ۱۰۷۷ ه ق کال (۱۶۶۷ ع) چي داتک گورگاني فوجداو کامل خان دهارون پرگودر لـه یوسفزو سره جنگیده اشرف خان دپردیو ملاتړ وکړ او دگورگاني حکومت له پاره یې توري ووهلې، یوسفزي چي داخوندچالاک کابل گراسي او بهاکو خان ترمشر تا به لاندي جنګېدل مات سول او کامل خان یې له سرو نو څخه کله منار (دسرونو خلي) جوړ کړ.

په ۱۰۷۹ ه ق کال چي خوشال خان دهندوستان له بندیخانه بنداو پردیسی څخه وطن ته راستون سو، دختکو خاني یې خپله کړله—د۱۰۸۳ ه ق کال په لومړي هفته کي چي دایمل خان مومند او دریاخان اپریدي ترمشرتابه لاندي تورياليو پښتنو په خیبر کي دگورگاني حکومت فوجونو ته ماتي ورکړله—خوشال خان دحکومت د فوجونو سل ؤ، تر دغه ماتي وروسته خوشال خان ته له گورگانـــي

(۱) — سیدامیر خان خوافی له ۱۰۷۲ څخه تر ۱۰۷۸ ه ق پوري په کابل کي دگورگاني حکومت والی ؤ — په ۱۰۸۱ ه ق کال په اگره کي ومړ.

حکومته څخه بیره پیدا سوه ــ له اکوړي څخه نظام پو رته کله سو ۱۲۲ په اکوړه کي بیا خاني اشرف خان ته پاته سوله، د ۱۰۸۳ ه ق کال د صفري په سیاشت کي چي دلاهو ر گورگاني حاکم فدا یي خان ( مظفر حسین ) په خیبر کي د کابل د مات سوي گورگاني والي محمد امین خان په مرسته پښتو رته راتیء اشرف خان یې تر خیر آباد پوري مخي ته و رغی او تر پښتو ر پوري یې ملگری ؤ ، خو بیا شتي پس چي د محمد امین خان پر ځای دو هم مهابت خان (میر زا الهر اسپ) خپلو رمه پسلاد کابل والي سو ۱۲۳ ، اشرف خان هجري یې بیا تر خیر آباد پوري مخي ته و رغي او تر نوښار ه یې په جلب کي ؤ ــ د رخصتو لو په و خت کي مهابت خان له اشرف خانه څخه په ضمانت واخیست چي پلار به خپله سیمه کي نه پر یږدي د خوشال خان د غه ضمانت

---

۱۲۲ ــ نظام پو ر د نوښار جنوب او د چواټ چوني جنوب شرق ته دخوړي په ناوه کي دیوه ځای نوم دی ــ خوشال خان چي د مغلو سره و رانه سوله ز یاتره په نظام پور کي اوسیدیء ــ خوشال خان و یلي دي :

مغل یې قدره پښتو ن بې ننگه
تو به له تو ري، تو به له جنگه
تسبیح په لاس کي په نظام پو ر کي
ناست په مسجد کي جمدر ترخنگه

(د خوشال مرغلري ۷۷۲ مخ )

۱۲۳ ــ ددو هم مهابت خان پلار لو مړی مهابت خان ز مانه بیگ نو میده د غیو ر بیگ کابلي زوی ؤ ــ دو هم مهابت خان خپلو ر و اره د کابل صو به دار سوی دی او خپلو ر لس کاله یې د کابل صو به داري کړ یده ــ په ۱۰۸۰ ه ق په پنجاب کي و سړ .

په ورکولو لهاشرفخانهڅخه خوابدی سو ،دډو ډیتر جنګ((رجب ۱۰۹۱ ه ق) څهسو ده دمغلواشرفخاناو پلار مناسبات نور هم خراب سول،ددی سبب داوچي خوشالخان پهدغهوخت کيلهنظامپوره څخهدتري بولاقوسيمي ته کډهسواو په«یوسف» کيپي واړول ـداځای دختکو په سیمه کيپروت دی ـاشرفخاندغه ضمانت له مغلوچیګورګانيوالی تهپیورکړی ؤ،ددي کارمخالفت وکړاود اشخړهد پلارا وزوی ترمنځ دجنګی کاروابیوسبب سوه .

مګر پهدي عملي مخالفت هم دمغلو زړه داشرفخانپهباب سپین نهسو، د۱۰۹۲ ه کالد دوهمي خورپهسیاشت کيپياشرف خان په پیښورکي بندی کړ او د ختکو خانی یيداشرفخانسکه ورور بهرامخان ( ۱۰۵۳—۱۱۲۳ ه ق ) ته ورکړله.اشرفخان دیوه سیاسي بنديپه توګه هندوستانته بوتلل سوا و د ګوالیار په کلاکی یي بندي کړ —د۱۰۹۷ ه ق کالدمیانی پهڅلورمه چي اورنګزیب عالمګیر (۱۰۶۸—۱۱۱۸ ه ق )پهجنوبی هندوستان کيد بیجاپور کلاو نیوله —څهسوده پسيپله نورو بندیانو سرهاشرفخان هم بیجاپور ته بوت—اشرفخانترمړ کاله بند وروسته په۱۱۰۶ ه ق (۱۶۹۴ع ) کال په بیجاپور کيومړ ،آزادخانددهٔ دمرګ پهباب داقطعه ویلي ده:

دهجرتيي زرسل شپږ ؤ
اشرفخانچي فوت شو یاره
«غماندوه»دده تاریخ دی
کهحساب کړيوی یي شماره

اشرفخانپهپښتو او پارسی ژبو کي شاعری کړي ده ،تخلصيي «هجری »

دی۱۲۳ کله کله «روهی» او «ختک» هم د تخلص په دول په مقطعو کی راوړي په بې تکو غزلو کي يې «اکرم» تخلص دی، په پښتو کی پښه ديوان لري، داد يوان لومړی ځل په ۱۹۵۸ ع (۱۳۷۷ هـ ق) کال په پېښور کی د هميش خليل په زيار، مقدمه او لغت نامه خپور سوی دی راو رتی په گلشن روه کي د اشرف خان هجری له ديوانه څخه ۲۳ غزلي او يوه قصيده د الفبې په ترتيب را اخيستي ده، دغه اقتباس سوي برخه د گلشن روه په ۱۲ مخو کی له ۱۵۰ څخه تر ۱۶۲ مخه پوري ځای سوې ده.

د هجری يوه غزل له د کليد افغاني په ۳۷۸ مخ کی هم سته.

۸— يوسف زليخا:

د يوسف(ع) قصه په قرآن کی راغلې او د «احسن القصص» په نامه ياده سوې ده، دغه قصه له ډير و شاعرانه مبالغو او افسانوي خرافاتو سره د نړی په ډيرو ژبو لکه پارسی، ترکي، عربی، سنسکريت، اردو، روسی او نورو ۱۲۵ . . . . کی سته. د افغانستان مشهور شاعر مولانا نورالدين عبدالرحمان جامي (۸۱۷—۸۹۸ هـ ق)

---

۱۲۳— په پښتو ژبه کي يو بل شاعر هم سته چي «هجری» يې تخلص دی دغه شاعر امير خان نوميږي او دوه ديوانونه څني پاته دي (وگورئ: ورکه خزانه ۲/۶۳ مخ) د جلال الدين اکبر (۹۶۳—۱۰۱۴ هـ ق) په وختو کي د پارسي ژبې يو شاعر تير سوی دی هجری يې تخلص ؤ، ديوان يې درلود، دغه شاعر د ابو نصر احمد جام زنده پيل (۴۴۱— ۵۳۶ هـ ق) له اولادې څخه ؤ؛ د گلشن هند د مؤلف (ميرزا علی لطف) د پلار کاظم علی استرآبادی تخلص هم هجري ؤ کاظم علی په ۱۱۵۲ هـ ق کال د افشار نادر (۱۱۰۸—۱۱۶۰ هـ ق) په فوج کي هندوستان ته تللی دی.

۱۲۵— دغه قصه په روسي ژبه کي S. Lepkin نظم کړيده.

دغه قصه په ۸۸۸ هـ ق (۱۴۸۳ ع) کال په هزج مسدس محذوف یا مقصور بحر کي په پارسی ژبه د مثنوي په ډول نظم کړې ده او د «یوسف زلیخا» په نامه یادیږي ۱۲۶ د یوسف او زلیخا قصه په پارسی ژبه کی د یر لسو نورو شاعرانو هم نظم کړیده، خو په ټولو کي د جامي یوسف او زلیخا زیات ادبی ارزښت لري — د پښتو ژبی مشهور شاعر عبدالقادر خان خټک (۱۰۶۳ هـ ق زیږیدلی) د جامي یوسف و زلیخا په پښتو ژبه اړولې ده، ۱۲۷ د نظم شکلی سکښتني مثنوی دی او بحر یې په خپله عبدالقادر او نورو پخوانیو د پښتو ژبی د خفیف بحر په نامه یاد کړی دی ۱۲۸ عبدالقادر خټک په ۱۱۲۱ هـ ق کال د دغه کتاب له نظمو نوڅخه فارغ سوی دی، د کتاب په پای کي و یلي دي:

سن د هجر غین و قاف ؤ

اته کم د پاسه کاف ؤ

چي تمام شو دا کتاب

الله اعلم بالصواب

د عبدالقادر «یوسف زلیخا» لومړی وار په ۱۲۸۸ هـ ق (۱۸۷۱ ع) کال دوهم وار په ۱۲۹۸ هـ ق (۱۸۸۱ ع) کال د دهلی د یوسفی په چاپخانه کی — د ریمه پلا

۱۲۶ — د یوسف او زلیخا قصه د دغه او رنگ جامي پنځم اورنگ دی.

۱۲۷ — د یوسف زلیخا بله منظومه پښتو ترجمه د احمدجان شاعر ده.

۱۲۸ — عبدالقادر خان د یوسف زلیخا په پای کي و یلي دي:

په خفیف بحر و یلی ۔۔۔ کل د قبت خنی و تلی

چي خفیف بحر شیرین کا ۔۔۔ هغه کس سحر مبین کا

ما شیرین په بحر خفیف کړ ۔۔۔ بې جوابه مي حریف کړ

په ۱۳۱۵ ه ق (۱۸۹۷ع ) کال د کابل په دار السلطنه چا پخانه کي د گل محمد خان — محمدزی په اهتمام — خلر مه پلا په ۱۳۴۱ ه ق(۱۹۲۲ع) کال د کندهار ی تاجر انو ملا بسم الله او فتح محمد په فرمایش په لاهور کی چاپ سوی ده .

جارج راورتی په گلشن روه کی د عبدالقادر خان «یوسف زلیخا » څخه ۲۷۳ بیته تر شپږ و عنوانو لاندي را اخیستي دي، دغه اقتباس سوي برخه د گلشن روه په ۲۱ مخو کی له ۱۶۵ مخه څخه تر ۱۸۵ مخه پوري ځای سوي ده . تر راورتی دمخه پروفیسر ډورن هم په پښتو منتخباتو کي د عبدالقادر خان د یوسف زلیخا څه برخه اخیستي وه. ۱۲۹

## ۹ـ د عبد القادر خان دیوان:

عبدالقادر خان د پښتو ژبی د مشهور شاعر خوشال خان ختک( ۱۰۲۲ ـ ۱۱۰۰ ه ق )زوی دی پلار یې دز و کړی کال د« عبدالقادر خان» له کلمی څخه را ایستلی دی چي دجمل په حساب ۱۰۶۳ عدد ځنی جوړیږي— او عبدالقادر خان هم د ۱۰۶۳ ه ق کال دلوی اختر دسیاشتی په پنځه و یشتمه زو کړی دی عبدالقادر خان داشرف خان دوی له مور ه نه دی .

عبدالقادر خان په ۱۰۸۳ ه ق کال د نوښار په جنگ او په ۱۰۸۵ ه ق کال د گنبت په جنگ کي د پلار سلگری ؤ. ۱۳۰ د عبدالقادر خان او افضل خان تر منځ مناسبات ښه نه ؤ — ځکه نو دی دژوند په وروستیو کلونو کي څه موده په نوښار کی اوسیدی، راورتی لاوایي چي د افضل خان له لاسه وژل سوی هم دی — خو د

---

۱۲۹ — وگوری: Cheresto mathy له ۲۷۳ مخه څخه تر ۲۸۲ مخه پوري.

۱۳۰ — د نوښار جنگ د نوښار له گو رگاني نایه دار ( خلیل) او د گمبت جنگ د کو هاټ له خان(شیر محمد خان بنگښ) سره پیښ سوی دی.

دراو رتہی دغه‌خبره هیڅ‌ملاتړ نه لري‌او ده‌هم‌ددغه‌روایت‌مأخذنه‌دی‌ښوولی .
دعبدالقادرخان ژوندتر ۱۱۲۰ ه ق کاله پوری یقیني دی– د امطلب دده له دغه بیته‌څرگندیږي :

دو شپیته کاله دی‌لاړ عمر په‌لهوه
عبادت دی‌په‌عادت نیکی په‌سهوه

عبدالقادرخان‌په نقشبندي طریقه کي‌د شیخ سعدی لاهوري ( ۱۱۰۶ ه ق مړ )
خلیفه ؤ –شیخ‌سعدی‌له‌پښتانه ستانه شیخ‌آدم‌مشوانی بنوری( ۱۰۵۳ ه ق مړ )
او هغه له‌مجددالف‌ثاني‌شیخ احمدالکابلی السرهندي(۹۷۱–۱۰۳۴ ه ق ) څخه
دخلافت‌خرقه‌او دارشاداذن موندلی دی .

عبدالقادرخان خټک د پښتو ژبی د لومړی درجې له شاعرانو څخه شمیرل کیږی،و ینائې دتصوف رنگ لري–دی‌دغزلو او قصیدو په‌مقطعو نو کی تل خپل نوم راوړ ی — یو ځای دو ه‌یې« کرلانی» کلمه هم‌دقبیلوی تخلص په‌توگه راوړې‌ده. عبدالقادرخان‌په یوسف زلیخا او گلدسته سر بیره یو پښتو دیوا ن‌هم لري‌چي لو مړی و ار په ۱۳۵۷ ه ق (۱۹۳۸ ع ) کال‌دلوی استاد پوهاندعبدالحی حبیبی په‌محققانه‌مقدمه،تصحیح او تحشیه په کندهار کي– د و همه پلاپه۱۹۶۷ ع (۱۳۸۷ ه ق ) کال‌او څلرمه‌پلا په ۱۹۷۲ ع( ۱۳۹۳ ه ق ) کا ل‌د همیش‌خلیل له‌مقدمې‌او فرهنگ‌سره –دریمه پلاپه۱۹۶۹ ع( ۱۳۹۰ ه ق )کا ل دډاکتر انوارالحق له سریزي او لغت نامې سره‌په‌پیښو رکی‌چاپ سوی د ی.

د کلیدافغاني په ۳۸۶—۳۹۷ مخو کی هم دعبدالقادرخان دوې غزلې نقل سوي دي .

**۱۰—د لوی احمد شاه بابا دیوان :**

دپښتو نو سیالی او بریالی ستر تولو اک غازی لوی احمدشاه بابا په ۱۱۳۳ ه ق یا—۱۱۳۵ ه ق کال په هرات کې زیږیدلی ۱۳۱ د ۱۱۶۰ ه ق کال درجب دمیاشتي تراتلسمي ورځې پخوا د کندهار په شیرسرخ کې پاچا سوی او د ۱۱۸۶ ه ق کال دلومړي خور په دو یمه دپنجشنبې په ورځ د کندهار په تو به کی مړ دی ۱۳۲ زیـارت ئې د کندهار ښار کي خرقې شریفې ته څرمه واقع دی، د پنجشنبې او د جمعې په ورځو کې یې خلک زیارت ته ورځي، دوعاوې ورته کوي او سرادونه غواړي. لوی احمدشاه بابا یو اځي دتوري قهرمان نه ؤ، په علم، فضیلت او پرهیز — ګاری کې یې هم نوم درلود— شعر یې هم وایه په عربي، پارسي او پښتو ژبو

۱۳۱ — په ځینو کتابو کي دلوی احمدشاه بابا زو کړه په ملتان کې ښوول سوی ده.

۱۳۲ —دابراهیم جامي لمسي دمنشي محمود الحسیني زوی محمداسماعیل ویلي دي:

روز پنجشنبه بتاریخ دوم زاول ربیع
وقت ظهر و سال لوئیل آخر فصل بهار
کرد رحلت در هزار و یکصدو هشتادو شش
سال تاریخ وفات از سال هجرت کن شمار
ز ابتدای سلطنت تاروز فوتش شد حساب
کرد شاهی بیست و شش سال آن شه والاتبار

(دتاریخ احمدشاهي ۱۲۹۲ مخ)

کي شعر و نه ځني پاته دي، په پښتو ژ به کې بشپړ ديو ان لري، د دغه ديو ان کو مې خطي نسخې چې ماته معلو مې دي، شمېر يې لسو ته رسيږي او په دغو کتب خانو کي خو ندي دي :

لو مړی نسخه دلندن په بر ټش مو زيم کې په ۴۴۹۵ OR. گڼه خو ندي ده، د گلشن رو ه انتخابات له دغې نسخې څخه سوي دي. دو همه نسخه دلندن په انډيا آفس لائبر يري کې په ۲ — B گڼه خو ندي ده، ددغې نسخې سر و پاي کنډ و دی دريمه نسخه دتاشکند دختيز پيژ ندني دانستيټوټ په کتب خانه کې سته، دغه نسخه چې په ۱۱۶۳ هـ ق کال محمد حامد دراني کښلې ده دتاشکند دخطي کتابو د کتلاک تر ۲/۳۹۰ لمبر لاندې يې تفصيلات راغلي دي. څلو رمه او پنځمه نسخې دټو نک د پښتنو نو ابانو د کو رنۍ په کتب خانه کې وې، دهندو ستان تر و يش و رو سته پاکستان ته راو ړل سوې او س د پيښو ر د پښتو اکاډيمۍ په کتب خانه کي خو ندي دي. شپږ مه نسخه د کابل دجمهو رې ارگ په کتب خانه کي خو ندي ده او و مه او اتمه نسخې د کندهاري سليمي (محمد حليم) په شخصي کتب خانه کې خو ندي دی ، د يوې نسخې دنقلو لو کال يې ۱۱۸۶ هـ ق دی ،

۱۳۳ — و گو رئ: په انگلستان کې د پښتو ژ بې د خطي نسخو دنوي فهرست ۹۷ مخ دبلو م هار ټ د بر ټش مو زيم په کتلاک کې ۱۰۳۳ لمبر کتابو نه.

۱۳۴ — ټو نک دهند و ستان دو سطي بر خې په شمالي څنډه کې د يو ښار نو م دی — په د غه ښار کې يوه نوابي حکومت جوړ شوی وه چې پښتانه نو ابان پکې واکمنان وه. لو مړی نواب امير خان سالارزی ترکلانی (۱۲۳۲ — ۱۲۵۰ هـ ق) يې په ۱۲۳۲ هـ ق (۱۸۱۷ ع) کال تاداو ايښی دی دغه نوابي په ۱۹۴۸ ع (۱۳۶۸ هـ ق) کال د هندو ستان حکو مت په راجستان گډه کړه.

پر بله نسخه یې د سدو زو شهز ادگانو مهر و نه ستهاو داسی ښکاري چې دغه نسخه بهدسدو زو پهپاچاهي کور نۍ پو ري اړه درلو ده.نهمه نسخه یې د کند هار پـه موزیم کې خوندي ده،ددغې نسخې لیکل دلوی احمدشاهباباتر مرگه پنځه میاشتی وروسته د۱۱۸٦ ه ق کال د کوچنی اختر دمیاشتی پهشپږمه پای ته رسیدلی دي.لسمه نسخه دلوی استادپوهاند عبدالحی حبیبی پـهشخصی کتبخانه کي وه دانسخه په سنده کي لوی استا دتهچاور کړې وه.دلوی احمدشاهبابا دیو ان تر اوسه پو ري دوه واره چاپ سوی دی — لو مړی وار په۱۳۵۹ ه ق (۱۹۳۹ ع) کال دلوی استادپو هاند عبدالحي حبیبی په مقدمه ،تصحیح او تدوین د « لوی احمدشاهبابا» پهنامهپه کابل کی—او دو همهپلا۱۹٦۳ ع کال(۱۳۸۳ ه ق)دقاضی هدایتالله پهترتیباو دخیال بخاری پهاهتمام د«دیو ان احمدشاهابدالی» په نامـه چاپ سو .

راو رتي پهگلشن روه کي ۱۱۷ کاله پخوادلوی احمدشاه باباله د یو انهځخه اتلس غزلي او یوهقصیده دالفبې پهترتیب را اخیستې ده،دغهاقتبا س سوې بر خهد گلشن روه پهلسو مخو کې له۳۰ مخه ځخهتر ۱۲ مخه پو ري ځای سو یده .

د کلیدافغاني په۱۳۸مخ کي همدلوی احمدشاهبابایوهغز له سته .



د ۱۳ — دغه غز له د کابل چاپ په ۱۳۲ مخ—او د پیښو ر چاپ په ۱۸۷ مخ کی راغلی ده.

## «۳»

دګلشن روه په لیک دودکې ځینې داسې
ځانګړتیاوې (خصوصیتونه) سته چې دپښتوپه اوسني
لیک دودکې باب نه دې ، زما خیال دا دی چې د غو
توپیرونو را ایستل او دهغو لنډه څیړنه به دګلشن روه
په لوست او پوهه کې سوواني پیښند کړې . له دغه امله
نوځینې غټ توپیرونه په لاندې لیکوکې کا بزم ، په
هغو مخوکې چې دا توپیرونه سته ، دهغو شمېر(عدد)

د سهي (صحیح) یا اوسني مروج شکل څنګ ته لیکم
او که چیرې د غه توپیر ته پروا ونه ري. تکرار سوی وي بیا یې نو
د پنځو شپږو مخونو په ښوولو اکتفا کوم:

۱- ږ ور ر کی په گلشن روه کې یو ځانته توری-
(Grapheme) یا شکل چې د هغه ثابت ښکارندوی وي
نه لري، کله د اوسني لیک د ږ د غوندې د کلمې په پای-
کې په (ه-ه) سره ښوول سوی دی، لکه:

اوبه (۲/۱۲۹ مخ)*

ږه (۲/۱۳۰)

یوه (۱/۱۸۱ - ۲/۱۳۰)

لیوه = لیږه (۱/ ۱۸۱)

وپیژانده (۱/ ۱۱۳)

---

* - گلشن روه پر دوو برخو (نثر - نظم) ویشلی دی، د هري برخې د مخونو شمېر جلا دی او
دوه ټوکه غوندې ښکاري - د مخونو تر شمېر د مخه چې کوم عدد کښلی دی هغه د غه برخې ښیي

له (۱/ ۳۱)

کله ترا وسني لیک دود مترقی سوی دی او د کلمې په منځ کې زور لري یې هم په (ه) سره ښوولی دی، لکه:

ونه سي ——— ونسي (ونیسي) (۲/۱۱۲)

وه کا ——— وکا (۱/ ۵۷)

وه وِ ——— ووې (وویل) (۱/ ۵۸)

وه وایه ——— و وایه (۲/۲۰۹)

وه لید ——— ولید (۲/ ۱۹۰)

وْشي ——— وشي (۲/۲۰۹)

وه وته ——— و وته (۱/ ۶۲)

دوه یه ——— دویه (۱/ ۸٤ ـ ۲/ ۱۰۸) ـ

مگر په ۲/ ۱۲۱ مخ کې (دووه) کښلې دی

کله یې د (ه) پرځای د کلمو په پای کې زور (ـَ) کښلی دی، لـــــکه:

سرگردانَ ـــــ سرگردانه (۲/ ۱٤۳)

پَلس قسمَ ـــــ په‌لس قسمه (۱/ ٦۰)

پاکَ سرورَ ـــــ پاکه سروره (۱/ ٦۰)

لہ خپلَ احوالَ ـــــ لہ خپله احواله (۱/ ۱۱۳)

کَ ـــــ کہ (۲/ ۱۵۷)

لکَ ـــــ لکہ (۱/ ۱۳۵ - ۱/ ٦۱)

منڈَ ـــــ منڈه (۱/ ۱۳۵)

خلقَ ـــــ خلقه (۱/ ۵۹)

دیارلسمَ ـــــ دیارلسمه (۱/ ۲۵)

غیبتونَ ـــــ غیبتونه (۱/ ۵۹)

بلنَ ـــــ بلنه (۱/ ٦۲)

کنبتَ ـــــ کنبته (۱/ ۹٤)

دننَ ـــــ دننه (۲/ ٤)

مینَ ـــــ مینه (۱/ ۷۸)

په ځینو ځایو کي د غه د زور کي ښکارندوی زور هم نسته، لکه:

ن ـــــــ نه ـ مثلاً: خوان یغما ـ خوا یغمانه (۱/۱۰۸)

ب ـــــــ به (۱/۶۰ ـ ۱/۶۶ ـ ۱/۶۷ ـ ۱/۷۷)

پ ـــــــ په (۱/۶۰ - ۱/۶۲)

ک ـــــــ که (۱/۶۵ - ۱/۶۶)

ت ـــــــ ته (۱/۷۱)

گاه ـــــــ گاهه (۲/۸)

لغزش ـــــــ لغزشه (۲/۸)

سفر ـــــــ سفره (۲/۱۶)

چرت ـــــــ چرته (چـبرته) ( )

لک ـــــــ لکه (۲/۲۳)

درانه لوستونکي به په دې خبر وي چي د هانري جارج راورټي پام زورکي ته نه دی سوی او په گرامرکي یې هم د زورکي

یادونه نسته، دَی تل زورکې په زور (ـَ) ښیي.

۲ـ هغه واوچې په اوسني لیک دود کې د حرفِ علت (معروف واو) یا حرکت (پېښ) ښکارندوی دي زیاتره په گلشن روه کې نسته او په پېښ (ـُ) اکتفا شوېده، لکه:

گوتُ ــــ گوتو (۲/۱۰۶)

مُند ــــ موند (۲/۴۸)

اُلس ــــ اولس (وُلس) مگر په ۲/۱۱۵مخ کې (الوس) کښلې دی

تاسُ ــــ تاسو (۱/۶۱ – ۱/۷۱ – ۱/۱۴۱)

لتُ ــــ لتو (۱/۶۵)

کسُ ــــ کسو (۱/۱۵)

وزیرُ ــــ وزیرو (۱/۴۰)

عالمانُ ــــ عالمانو (۱/۱۳۵)

مسلمُ ــــ مسلمو (۲/۹)

حکامُ ــــ حکامو (۱/ ۱٤)

فرزندانُ ــــ فرزندانو (۱/ ٥۱)

مُه ــــ مو (ضمیر) (۱/ ۱۸)

خلقُ ــــ خلقو (۱/ ۲٦)

کټرُ ــــ کټرو (کهتر په پنجاب کي یو قوم دی) (۱/ ۲۳)

کله يي "واو" هم کښلی دی، لکه:

کټرو (۱/ ۲۳)

زهمنو (زامنو) (۱/ ٤۰)

اووه (۷) (۱/ ۲۷)

په ځينو ځايو کي نه "واو" سته او نه پيښ، لکه:

ابو ــــ اوبو (۲/ ۸)

دروغ ــــ دروغو (۲/ ۱۱۲)

بلبل ــــ بلبلو (۲/ ۲۳)

واغندي ــــ واغوندي (۱/ ۱۰۳)

غند ــــ غوندي (۷۷/۱ - ۵/۲ - ۲۵/۲ - ۳۵/۲ - ۹۲/۲)

گند ــــ گندي (۶۱/۱)

نمونخنه ــــ نمونځونه (۶۶/۱) - په مثال کې لمړی واو ستنه دوهم واو نسته.

بخت ور ــــ بختورو (۱۱۸/۲)

- په زیاترو ځایو کې معدوله واو نسته، لکه:

خله ــــ خوله (دهان) (۵۹/۱ - ۱۳۲/۱ - ۱۲۳ - ۱۴۰/۱ - ۱۴۷/۱)

خله ــــ خوله (عرق) (۱۴۷/۱) - په ۱۴۷/۱ - ۱۲۹/۲ مخونو کې (خوله) کښلې ده

خلو ــــ خولو (عرقها) (۱۴۵/۱)

ګته ــــ ګوته (۶۰/۱)

ګتي ــــ ګوتي (انگشتان) (۱۱۹/۱ - ۱۳۵/۱ - ۱۳۶/۱ - ۱۱۴/۱ - ۱۴۷/۱ - ۱۸۲/۱)

ګتو ــــ ګوتو (۱۱/۲ - ۱۴۵/۱)

غنبي ــــ غوبني (۱۶/۱) په ۵۷/۱ کی غوښیې کښلي دي

مګر د (غواړي) په کلمه کې یې معدوله واو ساتلی دی (۸/۱ - او نور ..........)

٤ ـ په ګلشن روه کي مجهوله يې (ې) نسته، دکلمې په پای کی زياتره دغه رنغ په زير (ـِ) سره ښيي او دکلمې په منځ کي يې ټکي څنګ پرڅنګ (..) رڼدي، لکـــــه :

پرِ ــــــ پرې (۱/۱۶۱ - ۲/۱۷۲ - ۱/٤۱) -

مګرپه ۱/۲۱ مخ کي (پريـــ) کښلی دی.

درِ ــــــ درې (۱/۳۷ - ۱/٤۷) -

مګرپه ۱/۱۵۸ مخ کي (دري) کښلي دي.

وه ورِ ــــــ و وې (و ويل) (۱/۸۵ - ۱/۸۷ - ۱/۱۵۸) -

مګرپه (۱/۷ - ۱/۱۷) مخ کي (و وي) کښلی دی.

ترِ ــــــ ترې (۱/۳۱ ....) مګرپه (۱/۱۶) کي (تري) کښلی دی.

وِ ــــــ وې (۲/۱۸٤)

کرِ ــــــ کړې (۱/۳۷)

ډير ــــــ ډېر (۲/۸۷ - ۲/۱۹۱ - ۲/٦٤)

تیـر ـــــ تېر (۲/۶٤)

هیر ـــــ هېر (۲/۶٤)

۵ ـ معروفه یې (ي) هم په ځینو ځایو کې په زېر (ــِـ) سره بنوول سوېده[۱۳۶]، لکه:

مِ ـــــ مې (ضمیر) (۱/۱۳۶) مګر په (۱/٤۶) کې (مې) کښلی دی.

لورِ ـــــ لوري (۱/۱۱)

ډکِ ـــــ ډکي (۱/۵۹)

غندِ ـــــ غوندي (۱/۱۸ - ۱/۷۷ - ۱/۱۳۸)

مګر په (۱/٤۶) کې (غندي) کښلی دی.

غنډِ ـــــ غونډي (۲/۵٤)

ولِ ـــــ ولې ؟ (۱/۱۳۵ - ۱/۱٤۵)

پورِ ـــــ پوري (۱/٤۱ - ۲/۸۳)

نورِ ـــــ نوري (۲/۸۳)

۱۳۶ ـ دغه یا ګانې د پښتو ژبې په ځینو لهجو کې مجهولې ویلې کېږي.

ستاسِ ــــ ستاسي (۷۷/۱)

ګندِ ــــ ګوندي (۵۸/۱)

هسِ ــــ هسي (۱۵/۲)

لارِ ــــ لاري (۱۷/۱)

غوبنِ ــــ غوبني (۵۷/۱)

ډلِ ډلِ ــــ ډلي ډلي (۱۳۷/۱)

تاسِ ــــ تاسي (۵۷/۱ ـ ۶۰/۱)

د غسي یا ګاني کله کله زیر (ــِ) هم نه لري، لکه:

ول ــــ ولي؟ (۶۱/۱ - ۷۱/۱ - ۷۸/۱ - ۱۳۵/۱ - ۱۳۸/۱ - ۱۴۰/۱)

ګند ــــ ګوندي (۶۱/۱)

غند ــــ غوندي (۷۱/۱ - ۵/۲ - ۲۵/۲ - ۳۵/۲ - ۹۲/۲)

کاند ــــ کاندي (۱۵۹/۱ - ۶/۲)

لاف ــــ لافي (۴۲/۲)

حلال ــــ حلالي (۴۳/۲)

هیچر هیچري (۱۱۵/۲)

۶ـ دکلموپه پای کې د ay غبرګ ږغی Diphtong (که تأنیثي یې وُکه ثقیله) په (ئِ) سره ښودل سوی دی، لکه:

بنئِ ــــ بنی (انبان) (۱۳۹/۱)

بزرګئِ ــــ بزرګه (۱۵۹/۱)

درویشئِ ــــ درویشی (۱۳۵/۱)

خیرئِ ــــ خیری (۵۸/۱)

پادشاهئِ ــــ پادشاهی (۸۷/۱-۱۶۱/۱)

پیرئِ ــــ پیری (۱۶۱/۱)

جرئِ ــــ جری (۱۹۷/۱)

وکانړئِ ــــ وکا ښئ (۵۰/۱)

وترئِ ــــ وترئ (۱۵/۱)

یاستئِ ــــ یاستئ (۱۵/۱)

رايشئِ ـــ رايشئ (ږاشئ) (۱/۱۵)

کله کله دغه غبرگ ږغی د معروفي يې په بڼه هم لیدل کیږي، لکه:

پردي ـــ پردی (۲/۱۰۱)

سرِوي ـــ سرُوی (سوږی) (۱/۵۰)

اړي ـــ اړی (۲/۱۰۲)

ښاغلي ګل پاچا الفت کښلي دي: "د ay له پاره د (ئِ) توري استعمال په ګلشن روه کي پيل سوی دی."[۱۳۷]

تر اوړمي د مخه پروفيسر ډوړن په پښتو منتخباتو کي د تأنيثي او ثقيله ياګانو له پاره (ئ) توری کارکړی دي، لکه: وينئ، هېروئ او داسي نور......

۷ـ ګلشن روه د (څ = ځ) توری نه لري، پر ځای يې (ځ) کښلي ده يعنی د (ځ او څ) د دوو ـ

۱۳۷ـ وګوري: ليکوالي ۲۸ مخ ـ کابل چاپ.

ږغونوله پاره يې يو تورى کارکړى دى ، څو مثالونه يې دادي :

ځما ـــــ څما (زما) (۱۷۳/۲)

ځاى ـــــ څاى (۱۲۲/۱-۱۵٦/۱)

ځل ـــــ څل (نوبت) (۱۸۹/۲)

ورځ ـــــ ورڅ (۱۸۹/۲)

نمونځ ـــــ نمونڅ (٦۹/۱)

پريوينځي ـــــ پرې وينڅي (۱۵۳/۱)

ځنى ـــــ د (څني) او (څيني) پر ځاى (۵۲/۱-۱۲۲/۱)

کله کله (ځنِ) هم کښيلي دي (۷٦/۱-۷۷/۱-۱۳۸/۱-۱٤٤/۱-۱٦۱/۱)

ځان ـــــ څان (۲٤/۲)

ځوى ـــــ څوى (زوى) (۱٦/۲-۱۸۷/۲)

کله بيا د "ځ" ږغ په "س" ليکي، لکه :

سخه ـــــ ځخه ۱۱٤/۱

دلته باید دا خبره وسي : د پښتو ژبي په هغو زړو خطي نسخو کي چي په روښانۍ او خوشالي ليک دود نو کښل سوي دي د (ځ) ـ او (څ) ترمنځ توپير نسته ـ البته د (ځ) له پاره په روښاني ليک دود کي (ڈ) او په خوشالي ليک دود کي (ڇ) توري کاريد[۱۳۸] ـ (څ) په روښاني ليک دود کي له اوسني ليک دود څخه توپير نه درلود، خو په خوشالي ليک دود کي يي د (ڇ) په بڼه ليکله[۱۳۹].

۸ ـ د "ڼ" توری زياتره "ڼر" کښلی دی[۱۴۰]، لکه :

کينړ ــــــ کـيڼ (۱/۹۰)

سربنړ ــــــ سربڼ (سربڼ) (۲/۱۲)

بيچاونړه ــــ بيچاوڼه (۲/۱۷۹)

پانړي ــــــ پاڼي (۲/۱۶)

---

۱۳۸ ـ د لوی احمدشاه بابا د ديوان کومه خطي نسخه چي په انډيا آفس لايبريري کي په ۴۴۹۵ گڼه خوندي ده، د دغي نسخي په ۲۶ پاڼه کی هم (ځ) د روښاني ليک دود په څېر (ڈ) کښل‌سوي ده .

۱۳۹ ـ وگوری : دستارنامه ۵۲ ـ ۵۳ مخونه ـ د پېښور چاپ

۱۴۰ ـ د (ڼ) توري اوس هم په لرپښتونخوا کي (نړ) ليکي ـ د هريانه خبره دا ده چي د دوی په ليک دود به کوڼړ Kunar (د افغانستان يوه سيمه) څنگه کښل کيږي او کونړ ته منسوب به آيا د ليکلو امکان ولري؟

بانړه ــــ بانه (۱۹۷/۲)

وکانړۍ ــــ وکانۍ (وکاندۍ) (۱۳۷/۱)

خو د گلشن روه په مقدمه ـ ۱/۳ ـ ۱/۲۵ مخونو کې په ړون سره ـ (علی الترتیب) گهنه، وړنو، ترکانۍ کلمې د (نړ) پر ځای په (ن) کښلي دي.

۹ ـ د (ژ) پر ځای زیاتره په (ږ) کښل سوي دي لکه:

ږوندون ــــ ژوندون (۱۷/۲)

ږواک ــــ ژواک (۲۱/۲ ـ ۴۳/۲ ـ ۴۸/۲)

ږوندی ــــ ژوندی (۲۱/۲)

ږبه ــــ ژبه (۴۲/۲ ـ ۴۴/۲)

ږومه ــــ ژومه (۷۷/۲)

خیږی ــــ خیژی (۱۱۱/۲)

خو کله کله د (ج) په بڼه هم لیدل کیږي، لکه:

وجلو ــــ وژلو (۱۷۶/۱)

وجلی ـــــ وژلۍ ـ دغه کلمه د (وژلي) په بڼه هم سته (۱۷۷/۱)

وجله ـــــ وژله (۱۰۲/۱)

۱۰ـ (ښ) له اوسني ليک دود سره سم ه ليکلي ده ـ فقط په ۷۷/۲ مخ کې (مالګه) لغت (مالښ) سوی دی ـ کله کله بيا د (ښ) پرځای د (ګ) توری ليدل کيږی ، لکه :

ګيره ـــــ ږيره (۳۸/۲)

څمونګ ـــــ څمونږه (زمونږه) ۱۷۲/۱

تيريګي ـــــ تيريږي (۹۱/۲)

۱۱ـ د ګاف پرځای هيڅکله (ګ) نه ليکي ـ ستل يې د (ګ) په بڼه وينو.

۱۲ـ (چي) تل (چه) کښلی دی .

۱۳ـ ظرفي ادات (کې) کله (کښ) (۶۰/۱ - ۶۱/۱ - ۱۳۵/۱ - ۱۳۹/۱) کله (کښِ) (۱۶۷/۱ - ۱۶۸) او کله (کښي) (۳/۱ - ۵۷/۱ - ۱۳۵/۱ - ۱۳۹/۱ - ۱۸۹/۲) ليکلی دی .

۱٤ـ غایب منفصل ضمیر (یې) تل (ئې) کښلی دی .

۱۵ـ د جمع متکلم له پاره فاعلي او مفعولی ضمیر تل (هو ږ) کښلی دے، یعنی (ن) نه لری، خوند رتا کوم ځای چې (ن) ولري هلته باید (ږ) پر ځا (ګ) ور سره را غلی دی.

۱٦ـ (لَمَبه) کلمه هر ځای (لنبه) کښلي ده. (وګورئ ۱/۱۰۰-۱/۱۰۲-۱/۱۷۹-۲/۵۲-۲/۵٤-۲/۷۸-۲/۸۷-۲/۱۰۷-۲/۱۱۰-۲/۱۱۵) .

۱۷ـ سَلْ ـ ۱۰۰ کلمه همېشه "صل" لیکلې ده. (۱/۵۱-۱/۱۱۳-۲/۲۵-۲/۳٤-۲/۵۹-۲/۱۹۷). او "سَوْ" کلمه تل "صو" ده:

لکه : د هجرت نه صو شپږ نوی (۱/۲۹)

تېر صو کسه دولت زی (۱/۳۰)

صل دوه صو کس څوانان نور غواړي . (۱/۸)

۱۸ـ (نزامن) کلمه تل (نزهمن) کښلي ده . (۱/٤-۱/۳۰-۱/۳۱-۱/۳٦-۱/۳۸-۱/۸٤-۱/۱۵۸) .

۱۹ـ (وسله) کلمه همېشه (وصله) لیکلې ده. (۱/۱-۱/۳۱-۱/۸....)

۲۰ـ (پښبه) کله کله (ښپه) کښلې ده. (۱/۱۷۲-۱/۱۸۵)

۲۱ـ (تیار) کلمه تل (طیار) لیکلې ده. (۲/٤۱-۲/٤٤-۲/٤٦-۲/٦۸)

۲۲ـ (حاتم) کلمه (حاطم) کښلې ده ـ چې د الیک دو
یې باید یوه تېروتنه وبولو (۱/۱۵٤-۲/۲٦ ...) فقط په ۲/۱۱۷ مخ کې حاتم راغلی دی.

۲۳ـ کله کله چې د ربط د مخنې حرفونو (Prepositions) له
وروستې کلمې سره ګډې کښلې دي، لکه:

پهَر ـــــ په هـر (۲/۱۲۱)

نوي ـــــ نه وي (۲/۱۹)

پبنګاله ـــ په بنګاله (۲/۸۹)

پهاله ـــ په هاله //

پلاله ـــ په لاله //

پهند ـــ په هِند //

پشنه ـــ په شنه //

پسبزه ـــ په سبزه //

## پګلګون ـ په ګلګون (۸۹/۲)

خوپه پارسی کې چې بیا د ربط د مختې حرفونه په وروستی کلمه ګډیږي، هلته یې بیا اپوته (معکوسًا) ناهیه (مَ) د (مه) په شکل بېل کښلی دی، لکه:

مه خوږ ـــــ مخور (مه خوره) (۸۹/۱)

مه بند ـــــ مبند (مه یې تړه) (۸۹/۱)

مه رانش ـــــ مرانش (مه یې شړه) (۱۵۱/۱)

مه شمار ـــــ مشمار (مه یې شمېره) (۱۰۷/۱)

مه نه ـــــ مَنِه (مه یې بزده) (۹۹/۱)

مه بادا ـــــ مبادا (۹۰/۱)

کشمه کش ـ کشمکش (۹۰/۱)



د را نه لوستونکي په دې خبر دي چې په گلشن روه کې دشپاړسو کتابو چونډلي( منتخبات) راغلي دي. کله چې هانري جارج راورټي گلشن روه جوړ اوه،له دغو شپاړسو کتابوڅخه یوهم نه ؤ چاپ سوی. خو له اوو کتابو: علمخانهٔ دانش ،مخزن الاسلام ،فوائد الشریعت ، یوسف زلیخا، درحمان بابا اومیرزاخان اورسي ددیوانو او دبابو جان دنظمو نوله مجموعې څخه یې څه برخي پروفیسر برنهارډډورن الماني په Chresto mathy of the **Pushtu**... کي دگلشن روه ترچاپ دیرلس کاله پخوا چاپ کړي وې .

دگلشن روه عمر که څه هم یوسل اتلسو کالو ته ورسید،مگر له هغو شپاړسو کتابو څخه لا تر اوسه یوازي دوه کتابونه چې دبابوجان دنظمو نو مجموعه او علمخانهٔ دانش دي،خطي پاته دی او پښتنو یانو رچاپي د بشپړ چاپ توفیق

نه‌دي سوندلي،(۱۳۱)له پاتو خو رلسو کتابو څخه یې څلور یو واراو لس څو وار ه چاپ سو يدي ،په‌یو و ر اچا پ سو وکتا بو کې‌تاريخ مرصع ، گلدسته ،دخواجه محمد بنگښ‌اواشرف خا ن هجري‌د يو انو نه‌راځي .

دگلشن روه اخیستنې‌بر خې‌چې‌ساله اصل کتابو سره پر تله(مقابله) کړل د تاريخ مرصع‌او گلدستې يوه‌یوه چاپي او دعلم خانه دانش يوه خطی نسخه له ما سره وه ، د نورو د یرلسو کتا بو څو خطي او چا پي‌نسخې‌لاس‌ته را غلې‌او دگلشن روه دگډو ډو (مغشوشو ) او مشکوکو ځايو په سپړ نه کې مې کار ځينې و اخیست،ددې‌پر تلې‌په اغیزه ځينې‌تو پیرو نه راڅرگند سو ل چې درانه اومهم يې دادي :

الف- دگلشن روه ځينې غزلې د ا صل کتابو په ځينو نسخو کې نسته، لکه :

۱-دگلشن روه په ۲/۱۳ مخ کې‌درحمان بابا یوه نه بیتیزه غزله راغلې ده،چې‌مطلع او مقطع يې دادي :

په دنیا کی‌مخ دیار دی،نور څه نشته
هر چې‌دي‌دیار دیدار دی،نور څه نشته
خوار« رحما ن» که‌بې‌تاسینه‌په‌چاو کا
عين دقتل سزاوار دی ، نور څه نشته

۱۳۱-دعلم‌خانه‌دانش‌څوتسطه‌د پښور د پښتوا کاډیمی په مجله (پښتو) کی‌خپاره سويدي؛ په گلشن روه کی‌له‌علم‌خانهٔ‌دانش‌څخه‌اخیستنی‌برخه‌د پښتو‌مجلې د۱۹۷۰ع کال‌دا کتوبرله گڼی‌څخه‌د ۱۹۷۵ع کال‌دفروري تر گڼی‌پوری‌راغلی ده .

دغه غزله درحمان بابا ددیوان په ۳ چاپی او ۱۸ خطي نسخو کې پیدا نه سوه دوزارت اطلاعات و کلتورد خطي کتب خانې په دوهمه نسخه کې یې شپږ بیتونه راغلي دي، دگلشن روه دمهتمم ښاغلی زلمي هیوادمل د شخصی کتب خانې درحمان بابا ددیوان په هغه خطی نسخه کي چې په ۱۲۶۰ ه کال په کندهار کې کښل سوېده، دد غی غزلې نه بیته راغلي دی.

۲ — دګلشن روه په ۲/ ۱۸۹ مخ کي دعبدالقادرخان خټک یوه شپږ بیتیزه غزله کښلې ده، چې مطلع او مقطع یې دادي:

په تهمت کي که خپل یار پسندلی ما

د عالم تهمت پر سر منلی ما

سرمدی ژوندون حاصل عبدالقادر کا (۱۳۲)

دغمزې په تیغ چې دی وژلی ما

د عبدالقادرخان خټک ددیوان د کندهار او همېش خلیل په چاپونو کی ما دا غزله و نه موندله ـ خو د حدیقهٔ خټک په دوپنځوسم مخ کی سته.

۳ — دګلشن روه په ۲/ ۲۰۸ مخ کی دلوی احمد شاه بابا یوه دوولس بیتیزه غزله کښلې ده چې مطلع او مقطع یې دادي:

---

۱۳۲ — «سرمدي» کلمه په حدیقه خټک کی ابدي سوی ده.

(ها) که پرزړ کړمه ستا زلفی (ستا) خالونه
پر سخ بهجوړشی (زما) داو ښیو حصارونه
احمد [ شاهبابا ] په غم پسې ښادي وه
(دا) د خزان سخکه به بیاشی بوستانونه

دغه غزله دلوی احمد شاه بابادپښو رچاپ د یوان په ۳۷ مخ کې را غلې ده ، خو په کابل چاپ دیوان کی نسته.

۳ ـ دگلشن روه په ۲/ ۲۰۹ ـ ۲۱۰ مخو کې دلوی احمدشاه بابایوه یوولس بیتیزه غزله راغلې دهچې مطلع او مقطع یې دادي:

(هی هی) کهو وایم له یاره و ایمځه ؟
خپل (سي) نصیب دی، له روزگاردو ایمځه؟
احمد [شاه] کهدار دی هم گلزار دی
دار (سی) دیار گلزار [دی] له داره و ایمځه؟

د غه غزله د لوی احمد شاهبابا دپښو رچاپ دیوان په ۱۱۰ مخ کې راغلې ده خو په کابل چاپ دیوان کې نسته .

ب ـ دگلشن روه ځینې بیتونه داصل کتاب په ځینې نسخو کی نسته، لکه:

۱ ـ دگلشن روه په ۲/ ۱۸ مخ کې لو مړی بیت دادی:

که یقین دبد کردارو په کردار کړې
کښې دې ښه دبد کردار سړي پېغور

د ابیت د رحمان بابا په ۳ چاپي او ۱۵ خطي نسخو کی نسته مگر د وزارت

اطلاعات و کلتو ر د خطي کتب خانې په دو همه نسخه او د پښتو ا کاډیمۍ په چاپ کړي دیو ان کې د غه بیت ر اغلی دی او د گلشن رو ه له ضبط سره تو پیر لري.

۲ـ د گلشن رو ه په ۲/۲۶ مخ کې د دو همې غزل مقطع داده:

عبادت خو په ځواني کیږي « رحمانه »

په پیري کې به څه زهد کړې چې بلو ږ یې

دا بیت د رحمان بابا په مچاپې ا و ۰ ۱ خطي نسخو کې نسته ـ په یوه نسخه کې چې د وزارت اطلاعات و کلتور د خطي کتبخانې په لومړې نسخه ده، په هغې کې د غه بیت ر اغلی دی او د (بلو ږ) کلمه یې (ز و ږ) د ه.

۳ـ د گلشن رو ه د ۲/۹۳ مخ دو هم بیت د خو شال خان د دیو ان په در یو چاپي نسخو کې نسته، (۳۳۱) مگر د دیو ان خوشحال خان هوتي چاپ؟ په ۶۷ مخ کې ر اغلی دی، هغه بیت دا دی:

ز ه دې ستا په کوی کې و سر م شانه سازه!

گو ندې هم سي تو ر و زلفو ته شانې کړې

۴ـ د گلشن ر و ه د ۲/۳۵ مخ پنځم بیت د خو شحال خان په څلور و چاپي د یو انو کې نسته (۴۴۱)، هغه بیت دا دی:

---

۳۳۱ـ وگورئ: د خوشحال خان مرغلرې. ۴۱ مخ ـ کلیات خوشحال خان ختک ۱۱۹ مخ ارمغان خوشحال ۱۹۱ مخ .

۴۴۱ـ وگورئ: د خوشحال خان مرغلرې ۲۶۹ کلیات خوشحال خان ختک ۲۲۹ ـ ارمغان خوشحال ۴۷۲، د هوتي چاپ دیوان خوشحال خان ۱۵۹ مخ .

خوش صورته، خوش سیرته، خوش، خلقته، خوش خلقته

په طاعت په عبادت کې، دوفا په لاري تلېنه

۵- دګلشن روه د ۲/۱۰۰ مخ خو رلسم بیت دحمیدمو مند په هیڅ چاپي دېوان کې نسته(۱۳۵)، هغه بیت دادي :

ته چي د بل عیب ظاهر وي، خپل به ظاهر کړې

هیڅ پر وادې نشته، خو خپل ځان سمبال لره

د غه بیت دسر بوطي غزلي له وزنه سره هیڅ عروضي ارځ نه لګوي او دحمید په تول دېوان کې هیڅ ځای پر پېښ نه سوم.

۶- دګلشن روه د ۲/۱۰۱ مخ وروستی بیت دادی :

پتېيلي ما هاله دابېدلي وه (۱۳۶)

چي دي خال په دلداري راته راته

دغه بیت دحمیدمو مند په دوو چاپي دېوانو کي نسته(۱۳۷)خو د بمبی چاپ

---

۱۳۵- وګوریء: دحمید دېوان د بمبی چاپ ۱۰۷- دلاهور چاپ ۱۰۸ د کابل چاپ ۱۰۵ د پېښور چاپ دروسرجا ن ۸۶ مخ .

۱۳۶- «پتېيلي» کلمه په ګلشن روه کی پتېيلي دحمید د بمبی چاپ دېوان په ۱۰۹ مخ کې «بېسېتلي» دلاهور چاپ په ۱۱۱ کې «خو پتلهٔ ئی» کښلي ده، پتېيل په پښتو کې د يوی چاری په باب تېنګېدل اراده کول او پرځان باندې د هغې چاری د هر تاوان د منلو معنی لري.

۱۳۷- وګوریء! حمید د يوان د کابل چاپ ۱۲۲ مخ، د پېښور چاپ دروسرجان ۱۰۷ مخ

(۱۲۹۵ هـ ق) په ۱۰۹ مخ او دلاهور چاپ په ۱۱۱ مخ کي کښلي دی .

۷ـ دګلشن روه په ۲/۱۰۸ مخ کي نو لسم بیت دادی :

ذکر د کامل دخولي صیقل دی که دانا یې

راشه آئینه پرې د زړه صافه کړه له ګرده

دغه بیت سادخو اجه محمد بنګښ دديو ان په چاپي او خطي نسخه کي و نه موند.(۱۳۸)

۸ـ دګلشن روه د ۲/۳۰۲ مخ څلورم بیت دادی:

درست جهان دي سره ګو نګ کړ

ستالاخو له نه شي له بدآو از ه و چه(۱۳۹)

دغه بیت دلوی احمدشاه باباد کابل چاپ دیو ان په ۱۰۹ مخ کي په څه تغییر را غلی دی ـ خو د پیښو ر چاپ دیو ان په ۸۲ مخ کي نسته .

۹ـ دګلشن روه د ۲/۲۰۵ مخ پنځم بیت دادی :

چي دمخ خال بي په وړ انېري

پر مخ دي نه شي (هی) داو بیوتل بار انګله ( ۱۵۰ )

۱۰ـ دګلشن روه ۲/۲۰۵ مخ اتلسم بیت دادی:

---

۱۳۸ــ وګوری: دچاپي ۷۲ــ اود خطي نسخي ۳۵ مخ .

۱۳۹ـ ددغه بیت لومړی نیم بیتی دوه رکنیز او د و هم نیم بیتی دری رکنیز دی ، هر رکن یې (۷ـ۷۷ـ۷) عر وضي بڼه لري .

۱۵۰ـ ددی بیت لومړی نیم بیتی ۹ هجا یی او د وهم نیم بیتی ۱۳ هجا یی دی دلئه یو وزن لري .

ځکه دی شه بې آرامه

چې د زلفو بلا یو وړ

دا بیت د لوی احمدشاه بابا د پېښور چاپ دیوان په ۱۳۰ مخ کې راغلی دی، خو د کابل چاپ دیوان په ۲۰۷ مخ کې نسته .

۱۱- د گلشن روه د ۲/۲۰۷ مخ څلورم او پنځم بیتونه دادي:

د دنیا د لې پر ښېو (و) دی، بې وفاده سود یې نه وي چې وړه کیږي د رېغه د رېغه

که پیدا نه وای د یدن بېلتون به سر ؤ له دید نه خون بهیږي د رېغه د رېغه

دغه دوه بیته د لوی احمدشاه بابا د پېښور چاپ په ۱۲٦ کې راغلي دي- خو د کابل چاپ دیوان په ۲۲۳ مخ کی نسته .

۱۲- د گلشن روه د ۲/۲۰۷ مخ دیرلسم بیت دادی:

قافلې له دې دنیا قطار قطار ځي جهان خونه، ورانه کړه یم د فراق(۱۵۱)

دا بیت د لوی احمدشاه بابا د پېښور چاپ د دیوان ۵۵ مخ کی راغلی دی، خو د کابل چاپ په ۲۲۷ مخ کی نسته.

۱۳- د گلشن روه د ۲/۲۰۹ مخ کی پنځم شپږم، اتم او نهم بیتونه دادي:

دیدن دادالهی ؤ هسې نه چې یو جهت ؤ

په یوه نظر و یار ته فراسو ش له ماجنت ؤ

---

۱۵۱- د لته «یم» د د ریاب معنی لري .

| | |
|---|---|
| پېږي سر وي دچمن دی | زما يار ترې خو شرقاست ؤ |
| د ديدن سی کړه سيلو نه | شير ين يار لکه شر بت ؤ (۱۵۲) |

د غه خلو ر بيته دلوی احمد شاه باباد پېښو رچاپ ديو ان په ۹۹ مخ کي راغلي دی ـ خو د کابل چاپ په ۲۰۷ مخ کي نسته.

۱۴ ـ دگلشن روه په ۲/۱۱۲ مخ کی شپږ م او اتم بيتو نه دادي:

| | |
|---|---|
| په اختيار به سي خپلېږي | که شها نمرد اسمان دی |
| د خو دی حجاب له مخه | له هرچا کښه گر يان دی |

دغه دوه بيته دلوی احمدشاه باباد پېښو رچاپ دېو ان په ۱۵۸ مخ کی راغلي دي، خو د کابل چاپ په ۲۳۲ مخ کي نسته .

۱۵ ـ دگلشن روه د ۱۱۲ مخ ور وستی بيت او د ۱۱۲ مخ دوهم وخلورم بيتو نه دادي :

| | |
|---|---|
| و زلفا نـو و ته گو ری | عاشقان ترسيان کنا ر دي |
| که له کبر ه گو ز ار (و) کا | (خو ار) عاشق يې انتظار دی |
| جدايی ديار بلاده | په سر و ليو منت بار دی |

دغه درې بيته دلوی احمدشاه باباد پېښو رچاپ دېو ان په ۱۶۵-۱۶۶ مخو کي سته خو د کابل چا پ په ۳۴۸ مخ کي نسته .

ج ـ په اصل کتابو کي ځيني بيتو نه راغلي دي، چي هغه د گلشن روه په سر بو طو غز لو کي نسته، لکه :

---

۱۵۲ ـ سې=سي+يې

۱-دگلشن روه په ۱/۱۶۰ مخ کې تر یو ویشتمې لیکې (کرښې) ورو سته دارباعي پاته ده:

هغه چې ستا دې چې پې ساتل نه کړې و پره مې کېږي ، چې یې د بل نه کړې

که دا دې خوی او ، دا دې کردار وي خپل به پردې کړې ، پردې به خپل نه کړې

د ارباعي د چاپي گلدستې په ۱۸ کې راغلې ده.

۲ — د گلشن روه په ۲/۱۸ مخ کې تر اووم بیت وروسته دا بیت پاته دی:

د چا تاج زرین په سر ، تر ملا خنجر وي د چا پزې په سر ، په ملا تو بې لیلو ر (۱۵۳)

۳—دگلشن روه په ۲/۱۰۱ مخ کې تر خلورم بیت وروسته دا بیت پاته دی:

تار په تار د فقیر انو ږیرې مینې تریې ږیرخړو بوه چې خدای د ریاب کړې (۱۵۴)

۴-دگلشن روه په ۲/۱۹۲ مخ کې تر اتلسم بیت و روسته دا بیت پاته دی:

په خواري مو نده شي کام له ږیر زړ و نو په محنت سر مسر هز ر خپژی له کاڼه (۱۵۵)

۵-دگلشن روه په ۲/۲۰۷ مخ کې پس له و روستی بیته د د غې غزلې د اشپږ بیته پاته دي:

---

۱۵۳-وگورئ: د رحمان بابا د کابل چاپ د یوان ۶۶ مخ.

۱۵۴-وگورئ: دخواجه محمد بنگښ د چاپي د یو ان ۷۸ مخ او د خطي د یو ان ۹۳ مخ.

۱۵۵- وو گورئ: دعبدالقادر خان ختک د کندهار چاپ د یو ان ۵۹ مخ - د همېش خلیل د چاپ کړي د یو ان په ۱۰۵ - او دحدیقۀ ختک په ۱۲۵ مخ کې د «ږبرزړو» پر ځای «سنگدلانو» کښلی دی.

د پسر لي گلو نه ډېر دي په جهان کې — که بلبل غو ندي نو ا کړې ز مادله !
تو ر ه شپه به ر ڼا و رخ سي په تاباندي — لکه پتنګ چې ځان فنا کړې زمادله !
غنچه ګل به له هو سه پرې تا ز ه کړې — که یقین ابر دو فا کړې ز مادله !
د خز ان شپه به هیڅکله پاته نه سي — که اخلاص په داو ینا کړې زمادله !
همېشه به ته د یار په دیدن سو ر یې — چې تا ر یکه ز ړ ه ضیا کړې ز مادله !
احمدشاه بله د عاږه ز ده عارمه ! — په دیدن یې خو ا په خو ا کړې ز مادله

۶ ـ د ګلشن ر و ه په ۲/۸ ۰ ۲ مخ کې د لو سړی غز لي د ا مطلع نسته:

مینې خنګه ناټر ار کړې ز مادله ! — خو به ته ناري کو کار کړې ز مادله !

دغه مطلع دلوی احمدشاه باباد کابل چاپ دیو ان په ۲۳۲ او د پېښو ر چاپ دیو ان په ۱۳۳ مخ کي سته.

۷ ـ د ګلشن ر و ه په ۲/۰۱ ۲ مخ کې تر یو و یشتم بیت و ر و سته دابیت پاته دی:

خدای دي یار نه کا ملاله — زما غم د ز ړ ه اسان دی (۱۵۶)

د غه بیت دلوی احمد شاه باباد کابل چاپ دیو ان په ۲۳۳ اود پېښو ر چاپ دیو ان په ۱۵۸ مخ کې سته .

د ـ په ګلشن ر وه کې ځیني داسی کلمې لیدلي کیږي چې د اصل کتا بو له ځینو نسخو سره تو پیر لري او ما ته یې د ګلشن ر و ه ضبط سهی (صحیح) ا و غو ر ه ښکاري، لکه:

---

۱۵۶ ـ وګو رئ: دلوی احمدشاه باباد یوان د کابل چاپ ۲۳۳ مخ ـ د پېښو ر چاپ ۱۵۸ مخ .

۱ - دگلشن روه په ۲/۵ مخ کي راغلي دي:

چي د استاد عاشقي په تېغ اداشي د «رحمان» به هله غاړه شي ادا

درحمان بابا د کابل چاپ ديوان په ۱۷ مخ کې د لو مړي نيم بيتی په عروض کي راغلې (ادا) په (شهيد) بدله سوې ده په دغه بيت کې د (ادا) کلمه چي د ټپي (زخمي) معنی لري تر (شهيد) ځکه غوره ده چي يو خو بد يعی ښکلا لري او تام تجنيس يې ستـه او بل درحمان بابا دديوان په څو خطي نسخو کی هم د (شهيد) پر ځای (ادا) کلمه کښلي ده او اصالت لري.

۲ - دگلشن روه په ۲/۹۳ مخ کي راغلي دي:

ددولت لمن نيوه نه شي په زور ړوند که ستر گي په سرمه کالا پېغور

ددغه بيت دو هم نيم بيتی د خوشحال خان سر غلزي په ۵۰۱ او د کليات خوشحال خان ختـک په ۸۸ مخ کي داسی راغلی دی:

ړوند که ستر گي په وسمه کالا پېغور

د لته په (وسمه) کلمه کي د عقلي قياس مخالفت او د استدلال ضعف ستـه، ځکه چي (وسمه) څوک په ستر گو نه پوري کوي او د ستر گو د ښکلا او علاج لپاره سرمه (رانجه) کار ېږي.

دارمغان خوشحال دمؤلف پام دغي نکتې ته و راوښتی دی او د (ستر گی) کلمه يی په (ديره) اړولې ده دارمغان نيم بيتي داسې دی:

ړوند که ديره په وسمه کالا پېغور (۱۵۷)

---

۱۵۷ - وګورۍ: دارمغان خوشحال ۳۷ مخ.

زه باور لرم که ښاغلی سید رسول رسا په گلشن روه کي دغه نیم بیتي لیدلی وای د(ستر گي) کلمه به يې په(پيره)نه وای اړولې، بلکه(وسمه) به په(سرمه)الیشه کړې وای .

۳– دگلشن روه په ۲/۳۹ ... م مخ کي راغلي دي :

دگنده تټوي بد تټو پيد اشي

ښه آس نه دسیدان راوړي ښه سور (۱۰۸)

چي په کور کي مي اول تټوي راغلې

زمابخت ؤ لااول له ځايه تور

دخوشحال خان سرغلري په ٥ . ۱ – د کلیات خوشحال خان ختک په ۸۸ – او د ارمغان خوشحال په ۳۷ . مخ کي(تټوي) کلمې(چي د تټو سونث شکل دی)(تټو) سوی دی، خو د و ينا له سياقه څخه څرگنديږي چي خوشحال خان خپل زامن بهرام خان او عابد-خان ( چي په مقطع کي يې نومونه راغلي دي) دسيندو په کم اصلی غندي(۱۰۹) خان عراقی آس بولي او د بهرام او عابد سيندي له تټو سره تشبيه کوي ،وجه شبه يې کم اصلي او نه نجابت دی .

۴ – دگلشن روه په ۲/۳٥ مخ کي راغلي دي:

چي په درست عمر کي یو ځله تير دشي

نور اصیله توره نه غواړي پسان

---

۱۰۸ – په گلشن روه کي(سور) کلمه په چاپ کی هورسو بده .

۱۰۹ – دبهرام خان او عابدخان سيندي ببلی وې . د بهرام سورالک خپله څيني ختکه وه او دعابد خان سور کهتره وه .

ددغه بیت دقافیې کلمه د خوشحال خان سرغلري په ۲٦۰–د کلیات خوشحال خان ختټک په ۲۲۱–دارمغان خوشحال په ٥٦٣ -- او دهوتي چاپ دیوان خوشحال خان په ۳۰٥ مخ کې (ستان) کښلې ده، مګر ددغې غزلي دقافیې نوري کلمې انسان، یکسان، ناکسان، هراسان، خسان، کرګسان، مګسان، آسان اولسان دي، د (ستان) پرځای د(فسان) کلمه چې په ګلشن روه کې (پسان) سو یده(۱٦۰) ځکه غوره ده چې له یوې خوا قافیوی عیب له منځه ځي او له بلې خوا هغه معنوي ابتذال هم کمیږي چې د استدلال د کمزوري له پلوه د(ستان) کلمې په استعمال سره د بیت معنی ته ور پیښ دی.(۱٦۱)

٥– د ګلشن روه په ۲/ ۷۱ مخ کې دو هم بیت داسې کښلې دی:

په لښکر لښکر ناري شوموږ ته ستړې
دا کانه راته نه سرګ وایي نه جار

«سرګ» کلمه د خوشحال خان د کلیاتو په چاپي نسخو کې «سهیرک» سو یده.(۱٦۲)

٥ – د ګلشن روه په ۲/ ۹٥ مخ کې کښلې دي:

خو بدنام په داجمال، خدای خدر زي کړه
که نه هر چا ر په خلقو خپل اعمال کا

---

۱٦۰ فسان: دچړې کانې، باڼ، نوزی، برچې.

۱٦۱–دزیات تفصیل له پاره وګوری: دزیری د ۱۳٥٥ ش کال د سرغوسی په ۲۹ ګڼه کې د «ستان» که «فسان» – د پوهاندرشاد لیکنه.

۱٦۲– وګوری: د خوشحال خان سرغلري ۹۲۱– د کلیات خوشحال خان ۱۲٦ دارمغان خوشحال ۱۸ مخ– دیوان خوشحال خان (هوتی) چاپ ۸۸ مخ.

د حمید مو مند په دیوانونو کې ددغه بیت لومړی نیم بیتی یو راز نه دی — د بمبی چاپ (۱۲۹۵ ه ق) په ۷۶ مخ کې (خدر زي) کلمه (خـون ریزي) کښلې ده دلاهور چاپ په ۸۲ مخ کې دنیم بیتي مطلب اپو ته (معکوس) سوی دی ، او سلا عبدالغفار هو تک داسې نسخه کړ یدی :

« خو بد نام خدای دجمال په خون ریزي کړ »

د کابل چاپ دیوان په ۱۳۱ مخ کی دپو هاندر ښتین په برکت ددغه نیم بیتـي کبا (قبا) نوره هم په خونریزي رنگینه ښکاري:

«خو بدنام خدای دجمال په خون ریزي کړه »

زما خیال دادی چې دحمید ددیوان په دغو دریو چاپي نسخو کی «خون ریږي» او « خون ریزي» د «خدر یزی» بدل سوی شکل دی او دگلشن روه ضبط صحت او اصالت لري، داځکه چې پو رته لیکلی بیت دهغې قصیدې در و یشتم بیت دی چې حمید مو مند په ۱۲۲۳ ه ق کال دعیسی خان ماشو ال او نورو خدر یز یو مو مند و له لاسه دجمال خان مو سر یزي مو مند او دهغه دزوی جلال خان دو ژ ل کیدلو پیښه پکښې بیان کړ یده او پخپل دغه بیان کې د خدر یز یو پلوي کوي او جمال خـان مو سر یزی گر مښیي.(۱۶۳)

دحمیدددیوان دپیښور چاپ درو سر جان په ۶۹ مخ کې هم دغه کلمه« خدر یزی» کښلې ده .

---

۱۶۳ ـ ددې پیښې تفصیل دتاریخ مرصع په ۳۰۲ ـ ۱۲۶۲ ـ ا و «د رحمان بابا » نوسی کتاب په ۲ ـ ۵۸ ه مخو کی کتلای سیء .

٦ــ دگلشن روه په ۲/۲۰۱ مخ کې راغلي دي :

چې بل بولي دسپي زو یه هغه سپی دی
نه کا سپی سره نسبت زوی د سړی

دحبيددديوان دلاهور چاپ په ۲۱۱ مخ کی د«زوی»او د«هغه»ترمنځ (هم)
راغلی دی،نوربيت هيڅ توپير نه لري ــ خود کابل چاپ ديوان په ۳۸۱ مخ کي
د دو هم نيم بيتي پر معنوی نسخه سربيره دهغه عروضي جوړښت هم وران کړ
سوی دی، په دې ډول:

ںں ــ ں     ںں ــ ں     ںں ــ ں
چې بل بولي     دسپی زو یه     هغه سپی دی
نه کاسپی زوی     سره نبنته     زوی[د]سړی

په دې غزله کې ددو رونو وروستی رکن(عروض،ضرب)درې هجايي(ںں ــ)
راځي،نه څلور هجايي،سطلع يې وګورئ:

ںں ــ ں     ںں ــ ں     ںں ــ
چې مهتر کا     له کهتر ســــــــــــــــــره اړی
بدلوي له     ساده ګی شال     په شړی

پو هاندرښتين په کابل چاپ ديوان کې د ترخيږني لاندی بيت وروستـــی
ركن(ضرب)څلور هجايي كړی دی او فشاريې هم په زور سره له دريمی هجا
څخه څلورمې هجاته پوري وهلی دی ــ ددروسرجان ترتيبوونکی ډاکتــر ـ
انوارالحق هم دپيښور چاپ ديوان په ۳٦۱ مخ کې دپوهاند رښتين تيروتنـه

کړ يده‌او دگلشن‌روه او لاهورچاپ‌ديوان‌سهي(صحيح)ضبط ته‌يې نه‌دی پام‌سوی.

۷– دګلشن‌روه په ۲/۰۹ مخ کې‌نهم‌بيت‌داسي کښلی دی:

نن مو ليدلې،ښايسته‌سترګي خماري

زه‌په‌دوارو‌ه‌لاس‌تندی‌وهم،و همه‌ناري

داد يوې اوه بيتيزي غزلی مطلع ده اودخواجه‌محمدبنګښ‌دچاپي ديوان په ۳۸مخ کي په‌خورا مسخه سوې بڼه‌راغلې‌ده ددوا رونيم‌بيتيوزن‌دغزلی‌له‌نورو متحدالوزن نونيم بيتيو څخه‌بېل‌سوی دی—ددغه‌مطلع هرنيم‌بيتي‌دوولس‌هجايي‌اودغزلي نورنيم نور نيم‌بيتي‌څو ر لس‌هجايي‌دي،سر بيره پر دې‌يې‌دمطلع ددو هم نيم‌بيتي قافيه هم و رانه کړ يده‌په چاپي‌ديوان کي دمطلع‌و ران شکل دا دی:

نن‌مي‌و ليدې ،ښايسته سترګي خماري

زه‌په دو ار‌ه‌لاس تندی‌و همه‌ناو ري

۸ – دګلشن‌روه په ۲/۱۱۰ مخ کی کښلي‌دي :

شپه وورځ ثناصفت کړه‌له‌خالقه

چيري نه‌وي‌په‌لحظه کي‌ځان‌کر ياب کړي

«کر ياب » کلمه دخو اجه محمدبنګښ دچاپي‌ديو ان په۷۸مخ کي«ګر يان» سوې‌ده‌او دغز لي دقافيې له کلمو (صو اب،عذاب، ارباب، حساب ، خر اب.....) رديې په‌لوی‌لاس دا کفاء عيب و ربيښ کړ ی دی.

۹ـ دګلشن روه په ۱۵۲/۱ مخ کی کښلی دي :

چی هیڅري ته زما په مرا د را نه غلي
ز ه «خواجه» دی خه ګناه لرم آسمانه!

دخواجه محمد بنګښ دچاپی دیوان په ۱۰۸ مخ کی دشاعرنوم خواجه (محمد) راغلی دی او بیت ته ددوو یادر یو هجاوو خزم ورپیښ دی .

۱۰ ــ دګلشن روه په ۱۱۸/۲ مخ کی شلم بیت داسی کښلی دی :

هسي خوښ دتخت دپاسه خرم نه دی
چی عاشق داستا په درکی خوښ خرم دی

دخو اجه محمد بنګښ دچاپی د یوان په ۱۲۹ مخ کی دلومړی نیم بیتی متجانسه کلمه «خرم» په «حوره» بدله سوې ده اودد یوان دمرتب د ې ته نه دی پام سو ی چی له «خرم» کلمی څخه مراد ګورګانی پاچاشاه جهان (۱۰۳۷-۱۰۶۸ ه ق) دی ،چې دشاعرد ژوند په زمانه کی دشمالی هند وستان او کابل پاچا و، او ا صلی نوم یې «خرم» د ی .

۱۱ ــ دګلشن رو ه په ۱۲۹/۲ مخ کی کښلی دي :

ز ه حیران ودغه هسی ر نګ عالم ته
چی امید به د حباب په نو اره که

دوهم نیم بیتی دمیرزا خان اورسړ د لاهور چاپ دیوان په ۱۱۸ مخ کی داسی راغلی دی

چی امید دوی دحباب په ننداره که

په (ننداره) سره د (نو اره) کلمی اړول یوه تېروتنه ده، (نواره) د (ناو) مصغر شکل دی اودوړې کښتی معنی لري ــ په د غه بیت کي (حباب) مشبه او ( نو اره ) مشبه به ده .

دملا عبد الغفار کندهار ی په دغه تحر یف کي جلي ایطاء هم پیښ ده .

د میرزا خان اوورسړ د پېښورچاپ دیوان په ۱۳۱ مخ او د کابل چاپ په ۵۹ مخ کی د غه تحریف او ایطا نسته .

۱۲- د گلشن روه په ۲ /۱۵۱ مخ کښلي دي :

هو نبره نا زد زیبا مخ په حسن مه کړه

خزا ن گو ره ، ښکل هیڅ دگل صفا کا

د اشرف خان هجري دچاپي دیوان په ۲۳ مخ کې ( صفا ) کلمه (صبا) سو بده او د بیت مطلب ته یې تعقید پېښ کړ يد ی .

۱۳ — د گلشن روه په ۲/۱۵۱ مخ کښلي دي:

هغه کار چي یو نظر د جو نو کا ند ي

هسي کار ته هرا و ل نه دشه غول کا

د اشرف خان هجري د دیوان په ۲۵ مخ کې (شه) کلمه چي د ( شاه ) لنډ سوی شکل د ی په (ښه) اړول سو بد ه چي د پارسي (خوب) معنی لري په د غه بیت کي (هراول ) د سر لام ( مقدمة الجیش ) او (غول ـ قول ) د لښکر د زړه ( قلب الجیش ) په معنی د ی — په پخوا نیو جنگی صف بند یو کي دود ؤ چي پاچا یا د لښکر تر ټو لو مشر سر پر ست به د لښکر په غو ل ( زړه ) کي در ېد یء ، هر اول به دلښکر تر ټو لو وګړ ند ی او غو ل به د لښکر تر ټولو در نه او ښېټلی برخه وه .

۱۴ — د گلشن روه د ۲/۱۵۲ مخ ( خلش)او ( لټ پټ) کلمې داشرف خان هجري ددیوان په ۲۶ - ۲۸ مخو کې په ( خالش) او (پټ پټ) اوښتي د ي .

۱۵ - د گلشن روه په ۲/۱۵۳ مخ کي را غلي د ي :

خسته زړه مي تا زه نه شي په شراب

خشکه و نه باران نه کاندي په آ ب

د اشرف خا ن هجري ددېوان په ۳۲ مخ کې ( باران ) کلمه ( پهلا و )
سو ېد ه ، چې په هند ي ژ به کي د و د ي،او ېد لو اوپرا خېدلو معنی لري.
زما په خيال په دغه بيت کي شراب ا و بار ا ن ـ خسته ز ړه ا و خشکه و نه
سر ه تشبيه سو ي د ی ( په آ ب ) د تاز ه کېدلو ، آبدار ه کېد لو ، او مجازاً
ژ وند او ر و نق معنی لر ی .

۱٦ــ د گلشن ر و ه په ۲/۱۵۳ مخ کی کښلي د ی :

له هر چا طمعه په قد ر د هنر کـړ ه

په‌سنگل بەورطو طاشيدعقاب (۱٦٤)

د اشرف‌خان هجر ی د چاپي دېوان په ۳۲ مخ کي ددغه بيت دو هم نيم
بيتی داسي او ښتی د ی :

په منگل به و اطه نه‌شي دعقاب

ددوهم نيم بيتي په دغو دوو ډولونو کي‌ماته‌داسي‌ښکاري‌چي د گلشن ر و ه
ضبط به ا صل ته نژ د ې و ی .

ه ــ په گلشن رو ه کې ځينی غزلې يا قصيد ې‌يو له‌بله سره گډ ی سو ی‌دی ،
ددغو گډوډيو ( اختلاطاتو ) څو مثاله دا د ی :

۱ـ د گلشن روه په ۲/ه مخ کی‌د رحمان بابا يوه لس‌بيتيز ه غزله راغلې‌ده
چی مطلع او مقطع يې دا د ی :

که څوک يار په جهان غوا ړی يار د ی دا
يار د ی دا ، که دجها ن سينگا ر د ی دا

---

۱٦٤ــ کېدای سی چی (ور)په اصل کی (وړ) و ی .

چې د ستا د عاشقي په تيغ ا داشی
د « رحمان » په هله غارهٔ شی ادا

دد ې غزلي مطلع پرد ی ده او نور نه بيته يې د بلې غزلي ور پوري نښلول سوی دی — دغزلي خپله دا ده :

چي له تا سره په سر کا ندی سودا
بل به نه وی هسی ماغوندی شیدا

( د کابل چاپ ديوان ۱۶ مخ )

په پردی مطلع کي « دی دا » رديف او ( یار ) و ( سینګار ) د قافيې کلمې دی — او خپله مقطع يې داسي ده :

د مجنون صورت په زړه کړه « رحمان »ګوره
ستا په عشق کی هسي خوار و زارد ی دا

(د کابل چاپ ديوان ۱۶ مخ )

۲— د ګلشن روه په ۲/۱۰۵ مخ کی دخواجه محمد بنګښ يوه او لس بيتيزه قصيده را غلې ده، چی مطلع او مقطع يېدا دی :

یاره! ستا بېلتا نه هسي کړم بې تابه
خو شحالي را باندی نشته بې عذابه

زه خواجه محمد تمام په ګناه ډوب يم
مګر و مې کاږی خدای لهدې دریابه

دغه خطابي قصيده چې د ( یاره ! ) په کلمهپيل سو بده يوه داسيويرنه ( مرثيه ) ده چي شاعر د خپل پيرد ابدی بېلتا نه په غم کيويلیده (۱۶۵)

---

۱۶۵ — د خواجه محمد بنګښ پير شيخ عبدالرحيم چشتی دی.

پــه گلشن روه کې تر دوولسم بیته پورې د قصیدې سیاق د مرثیې دی او د مړه پیرد ستاینې و رمقام او دهغه په بېلتانه کې اراد تمند شاعر د ویره ژلی زړه انځور (تصویر) په ډېره ښه توګه کښېل سوی دی — مګر سمد ستی په دیرلسم بیت کې بې له کومه ګریزه څخه د وینا سیاق اپوته (معکوس) سوی دی او د هر یانې خبره لا دا ده چې د قصیدې و روستیو پنځو بیتو کې له غفلته څخه دراو ښېبدلو انتباه او له مرګه څخه د پېرو لو تحذیر هغه (یار) ته متوجه دی چې پــه تېرو دوولسو بیتو کې مستجا بـ الدعوا ة قبله، د ولیانو آ فتاب، د عرفان څپې و هونکی بحراو قطب الاقطاب بلل سوی دی او دده په مرګ دشاعر زړه پاره پاره او سینه کباب کباب ده.

د ګلشن روه په دې قصیده کې ددغه تنا قض د پېښېدلو سبب دا دی چې هانرې جارج راورتي د خواجه محمد دوه په وزن او قافیه کې سره برابر نظمونه (چې یو یې قصیده او بل یې غزله ده) سره ګډ کړي دي لوسړي دوولس بیته یې د مرثیې له شروعه اخیستني دي اووروستي پنځه بیته یې د یوې بلې تحزیري غزلې له پایه راوړي دي، مرثیه په قلمي دیوان کې یوو یشت بیته ده او پاته (نه) بېتونه یې (چې پیر کامل او هغه قطب الاقطاب یې مخاطب دی) دادي:

۱۳— وهیڅاته دي احوال دزړه ونه وې
کمالات دي حاصل کړي بې حسابه

۱۴— چې بیا ن به دې کا وه د معارفو
سلایک به دي عاجزشوه له جوابه

۱۵ — په هروقت چې به مشکل ورلره راغی
ملائکو به مدد غوښت ستاله بابه

۱۶ — په باطن سره سرغه د لامکان وې
په ظاهر دې محبت وله کتابه

۱۷ — آستانې ته دې هیڅوك رسیدای نشی
ته هر گوره یې بلندعالی جنابه

۱۸ — تادعشق په لار کې هسې لوی همت کړ
دوه سوه کم په دوه شپېته واره حجابه (؟)

۱۹ — زه هرگوره آرزمندستاددیدن یم
لاله مخ راته ښکاره کړه له ترابه

۲۰ — ترسایه لاندې دې خوښ په خواب اوده وم
په آفتاب دېلتا نه و یښ شوم له خوابه

۲۱ — ته چې و لاړې له ما زما پیره کاملهٔ!
دا د نیا شوه په خوا چه ځه خرابه

(دقلمي نسخې لسم مخ — اودچاپي نسخې ۳۵ مخ)

تحریری غزل چې په قلمي نسخه کې یوولس بیته ده، د سرشپږ بیتونه یې (چې ارباب یې مخاطب دی) په دې ډول دي:

۱ — چې مخونه یې روښان ؤ ترافتابه
او س یکسان شوه په لحد کې له ترابه

۲ — عاقبت دې ځای دتوروخاورو لاندی
په دنیا به خولو یې کوې اربابه !

۳ — دآخرت ودا نی وته د ي شا کړه (۱٦٥)
سازوې ته د د نیا خا نه خرا به
۴ — دا جل په نغاره به د ي بید ار که
اوس بیدار شه دغفلت له بده خوابه
٥ — ته‌دنفس ا ود شیطان پیر و ی وکړه
چری نه وی چی آخرنه شې بې آ به
٦ — هر سړی په نېکخو یی سره سړ ی دی
په‌بدخوی (به) سړ ی‌بدشی‌تر د و ا به
(دقلمي‌نسخې دوولسم مخ—دچاپي‌نسخې ۴ ٥مخ )

۳— د گلشن روه د ۲/۲۰۷ مخ ورو ستی اود ۲/۲۰۸ مخ دلو سړ ی غزلی چی ددواړو رد یف ( کړې زما د له ) د ی ، یوه غزله غوند ی ا یسې او د قافیو د کلمو بېلتون ته یې چې د یو ې ر وی( ا لف ) ا و د بلې روی(رې)د ه ، لېږ پا م او ړ ی دد ې گډو ډ ی سبب د ا د ی : د لو سړ ی غز لې مقطع ا و د دو همی غزلی مطلع چی دلو ی ( احمد شاه په د یو انونو کی ستړه) په گلشن ر و ه کي نه د ی ر ا غلی. (۱٦٦)

---

۱٦٥ — دغه نیم بیتی څه‌سکته لري که«ودانی» تر« دآخرت»دمخه کړوسکته له منځه ځی ، اونیم بیتی بایداصلاً داسی وي :

ودانی‌داخرت وته‌دي‌شا کړه

۱٦٦ — دغه پاته مقطع ا و مطلع ددی بحث په (خ) برخه کی د پاتو بیتونو تر عنوان لاندی ی ما را و ړ ی د ی .

«۵»

په ګلشن روه کې ځینې راغلي نظمونه څه عروضي وراني لري دا وراني پر دغو څلورو برخو ویشلې کېږي :

الف — خزم یعنې هغه هجاوې چې د بر بوط نظم تر عروضي وزن زیاتې وي، په ځینو بیتو کې چې خزم پېښ دی د هغو زیاتې هجاوې په [ ] کې ښو دلې کېږي، لکه :

۱ـ د ګلشن روه په ۱/۱۶۵ مخ کې کښلي دي :

صبر په زړه کې د عاشقانو

د نیا په لاس کې د آزادګانو

لکه اوبه په غلبېل کې نه درې

هسې قرارنه کا [اې] تجربه‌دانو

د چاپي ګلد ستې په ۸۸ مخ کې هم دغه خزم سته یعني [ای] کلمه تر وزن زیاته ده .

۲ـ دگلشن روه په ۱/۱٦٦ مخ کی کښلي دي :

پادشاهان‌چی له سپایانو ساتی زر

په‌تنګښه[ کښ] به‌یی‌سپایی‌وساتی‌سر

دچاپي ګلد ستي په ۷۹ مخ کی دغه خز م نسته یعنی تر « تنګښه » کلمی و روسته[ کښ] نه دی کښلي .

۳ـ دگلشن روه په ۱/۱٦۷ مخ کی کښلي دي :

د ملک پادشاهه ! که دی کشور بو یه

تخت د شا هیـه ، تـاج دی د سر بـو یه

شر م سا تو نی ، زرغـو رزو ونـی شه

[ له ] سپاهی نه سر بو یه ، له تانه زر بو یه

د ګلد ستې په ۹۰ مخ کی هم دغه‌خزم سته ، یعنی [له] ددوهم نیم بیتی په سر کی زیات دی .

۴ـ دگلشن روه په ۱/۱۷۲ مخ کی کښلي دي :

اول بو یه چـی حا صـله وسیله کـړی

له[هـــ]غه‌پسه په‌و ره ورشه د پاد شا ه

دغه خزم د ګلد ستې په ۹٦ مخ کی هم سته ، دوزن دسمون له پاره « هغه » کلمه باید په « غه » واوړی ، لکه په ډېرو بیتو نو کی ا وښتی د ه .

۵ـ دگلشن روه په ۱/۱۷۲ مخ کی کښلي دي :

پاس په سر زمونږه کښنه د ل نشین یسې
ستا نازونه به په‌ستر [ گو]وړو نازنین‌یی (۱٦۷)

دګلدستی په۷۹ مخ کی هم دابیت کټ مټ کښلی‌دی او ددو هم نیم بیتی یو ه هجاز یاته‌ده که(ستر گو) کلمه په (سر) واو ړی عروضی عیب(خزم) لەمنځه ځی.

٦ ـ دګلشن روپه۲/۳ مخ کی راغلی دی:

زه رحمان بی خپله یاره نور[خه] نه‌غواړم
که‌قبوله‌شی دخدای په‌در دعا زما

درحمان بابا کابل چاپ ددیوان په۲ مخ کی دنور پر ځای هیڅ کښلی‌دی [خه] نسته په‌دی ډول :

زه «رحمان» بی خپله یاره هیڅ نه غواړم

۷ـ دګلشن روه په ۲/۳ مخ کی یو ویشتم بیت داسی کښلی دی :

په خپل ځان ښېګنه وکړه [وو پر پره]
په ښېګنه [ غره مه شه ] دا دې اود ابسا

په دوهم نیم‌بیتی کي[ غره مه شه ] دقصید ی‌تر عروضي‌غوښتنی ( یوولسو هجاوو ) زیاته ده — په لومړی نیم بیتی کی اصلاً [ وو پر پره ] کلمه نسته او دغه ځای په [ غره مه شه ] ډک دی — درحمان بابا دکابل چاپ دیوان په ۳ مخ کی دبیت خپله بڼه دا ده :

---

۱٦۷ــ که د قافیی کلمه په دوو هجا ووسره Naz—Nin وویل سی نو د ستر گو کلمې خزم له منځه ځی .

پخپل ځان ښېگڼه وکړ ه، غره سه شه
په ښېگڼه د ا دې ا و د ا بـا (۱٦۸)

۸ — د گلشن روه په ۲/۵ مخ کې پنځلسم بیت داسې کښلی د ی :

جد ا یی به د [ هیڅ ـ آـری قبو له نه کړ م
خو سی نه د ی ر و ح ، کالبوت سره جد ا

په لو مړ ی نیم بیتی کی اتمه هجا ( ر ی ) زیاته ده — د ر حمان با با د کا بل چاپ دیوان په ۱٦ مخ کې دد رې هجا یې کلمې هیچری ځا ی په دوې هجایی کلمه هیڅ ر نگ ډک د ی او خز م له سنځه تللی د ی، په دې ډ و ل :

جدایی به د ی هیڅ ر نگ‌قبو له‌نکړ م

۹ — د گلشن ر و ه په ۱۵/۲ مخ کی لو مړ ی بیت داسې کښلی د ی:

دعشق ر ازچی هیڅا [ ک]نه‌د ی بیان کړ ی
ترو به ز ه‌له بې بیا نه‌وا یم څه ؟

د ر حمان بابا د کابل چاپ دیوان په ۱۳۱مخ د غه خزم نسته .

۱۰ — د گلشن ر و ه په ۳۷/۲ مخ کی‌او و ه‌لسم بیت دا سی راغلی د ی :

دعاشق د خاطر خیال لکه در یاب د ی
چی‌څپه‌یی کله‌لو ړ ه ( و ی ) کله‌پسته

د خو شال مر غلری په ۵۵ — د کلیات خو شحال خا ن خټک ۳۳ — د

---

۱٦۸ — دحمید د کابل چاپ په دیوان کی (ابا) کلمه (بابا) کښلی ده، او په خو خطی نسخوکی دغه کلمه ابا د ه.

ارمغان خوشحال په ۲۴۳ او د دیوان خوشحال خان ( هوتي چاپ ) په ۳۵ مخ کی دغه خزم نسته .

۱۱ــ د گلشن روه په ۸۲/۲ مخ کی کښلی دی :

چی یی څوک په تیگی پوه دی هغه نه کا

په بازار د[ د ي] دنیا سود و سودا هیڅ

په دو هم نیم بیتی کی [ د ي] کلمه ددورتر عروضی غوښتنی زیاته ده ددي غزلی د قافیه لرونکو نیم بیتیو عروضي بڼه داسي ده :

۱۱ — ںں ںں — ں ں ں ں — ں ںں

د حمید دیوان د لاهور چاپ په ۳۳ مخ — د کابل چاپ په ۲۵ — او دپېښور چاپ په ۴۲ مخ کی هم دغه خزم نسته .

۱۲ــ دگلشن روه په ۹۴/۲ مخ کی نهم بیت داسی کښلی دی :

هرقدم چی [ا] ږدم بی یاره دچمن په خیا بانونه

لورد لوره ښاخ د گلو راته ځان گواښی په سوک

د حمید ددیوان د بمبی چاپ په ۴۷ — د لاهورچاپ په ۸۰ —دکابل چاپ په ۷۸ — او د پېښور چاپ په ۵۵ مخ کي د غه خزم نسته .

۱۳- دگلشن روه په ۲/۴۶ مخ کی شلم بیت داسی کښلی دی :

که اوونی مقیش[ دو زی ]دی که سالودی(۱۶۹)

داهمه واړه ترسپین پروني جاردی

---

۱۶۹ــ مقیش: هغه تو کر یا جاسی ته وایی چی پلوو( څنډو) ته د گلابتونو اشی ولري . ز ردوزی جاسی هم مقیش بولی. ( وگوری د گلشن روه فر هنگ).

پەلوسړی نیم‌بیتی کی [دو زي] کلمه‌دنظم ترعروضی غوښتنی زیاته‌ده،دانیم‌بیتی دخوشال پەخلو رو چاپی دیوانو کی بی وزنه‌دی پەدې ډول :

کەاودنی‌مقیش دوز[ی] کەسالودی (١٧٠)

ښایی‌چې ددغوچاپی‌نسخو(دو) پەاصل کی (دی) وی اودبیت اصلی‌بڼه داسی‌وی:

کەاوډ نی‌مقیښد و[ زي ]کەسالو دی

١٤ــ دگلشن روه پە٢/ ١٠٧مخ کی اتم‌بیت داسی‌دی:

ترقیامته پەنور ځای لره رانه‌شی

(چی) تاخت پرې وشه‌دترکانو الغیاث

دخواجه‌محمد بنگښ دچاپی دیوان پە٩٦مخ کی دغه خزم نسته، اوپه خطی نسخه کی هم نه ؤ .

١٥ــ دگلشن روه پە ٢/ ١١٠مخ کی اتلسم‌بیت‌داسی دی :

ومقصودوته بەهله ور سېږي

سروسال چی‌ورته وارە [هم]ەفدای کړې

پەدوهم نیم‌بیتی کی‌نهمه هجا زیاته‌ده ،ددی‌نیم‌بیتی سهي(صحیح )بڼه‌بەداسی‌وې:

سروسال چی ورته وارە تەفد ای کړې

دخواجه محمددبو ان دچاپی نسخی پە٨٠مخ کی دگلشن روه د(همەفدای) پرځای (اساجای) کښلی‌دی(؟) .

١٦ــ دگلشن روه پە٢ /١١١مخ کی نهم‌بیت‌داسی‌دی :

---

١٧٠ــ وگوریء: هوتی‌چاپ‌دیوان خوشحال خان٩١٣مخ،سرغلری٥٠٧مخ — کلیات‌خوشحال‌خان٥٣٣ــاوارمغان خوشحال‌خان ٦٣٣ مخ .

زه خو اجه‌محمد دغم‌په‌دریاب گډیم
کسي وکاږي صاحبه[ته] له‌دې نیزه

دخواجه‌محمدبنګښ دچاپي‌دیوان په ۸۲مخ کی‌دغه‌خزم نسته - یعني‌تر«صاحبه» وروسته (ته) کلمه‌نه‌ده راغلی .

۱۷- دګلشن روه په۲/۱۱۱مخ کی یوولسم بیت داسی دی :

په‌غریب‌بی‌خلقی‌سره [طوفان]ی کړې
ډک‌له‌زهروګړ زوی دزروطاس

دخواجه‌محمد بنګښ دچاپي‌دیوان په۳۸مخ کی دغه خزم نسته ، په خطی نسخه‌کی هم دګلشن روه (طوفانی) کلمه (طوفان) کښلی‌ده .

۱۸—دګلشن روه‌په ۲/۱۱۳ مخ کی‌اوه‌لسم بیت داسی‌کښلی دی :

آخرتله دی‌له‌دنیا[نه] خواجه‌محمده!
بی له خدا یه ونور هیڅ ته‌مکړه میل

دخواجه‌محمددچاپي‌دیوان‌په ۲۱مخ کی‌دغه خزم‌نسته‌یعنی ترد نیاوروسته [نه] کلمه‌نه‌ده راغلې .

۱۹ —دګلشن روه‌په ۲/۱۱۵مخ کی‌دیرلسم بیت داسی‌کښلی دی :

طبیبان [یې] په ماخبر ، دارو (سی ) نه کا
په قیامت به یی ونیسم له ګریوان

دخواجه‌محمد دچاپی دیوان په ۱۰۸ مخ کی دغه‌بیت خزم اوخرمد واړه نه لري،لومړی‌نیم بیتی داسی‌کښلی دی :

طبیبان‌په ماخبر ، دارومی‌نه کا

۲۰— دګلشن روه‌په ۳/۱۱۶ مخ کی شوړم بیت داسي دی :

په هیڅ رنګ به خپسر خلاص نکړې له مرګه

که [ته ] کو تې ترڅان چا کړې اهنین

دخواجه محمد دچاپي دیوان په ۱۰۸ مخ کې دغه خزم نسته، مګر د خپسر کلمه په غلطي سره« شپه سر» سو یده .

۲۱—د ګلشن روه په ۲/۱۲۳ مخ کې اووم بیت داسې کښلی دی :

که هر څو دی په لو یی نها یت نشته

په [دا] وجود کې دی تمام وینم شجره!

دمیرزا خان او رسړد پېښور چاپ دیوان په ۳۵ مخ کې دغه خزم نسته او د لاهو ر چاپ په ۱۷۵ او کابل چاپ په ۱۳۱ مخ کې «په داوجود پرځای «په خپل ځا ن» کښلی دی ، دا هم کیدای سي چي په پورتني بیت کې د [دا] پرځای دو جو د کلمې (و) خ زم ولري ـ ځکه چي «جود» په پښتو کې دځان ا و بد ن معنی لري. (۱۷۱)

۲۲— دګلشن روه په ۲/۲۳۰ مخ کې د یرلسم بیت د اسې کښلی د ی :

[چي] حقیقي محبوب ه خرنګه صفت کړم

چي آحر بخري یې را و ړی ا و لیني

دمیر زا خان او رسړ دلاهو رچاپ دیوان په ۱۳۶ مخ ـ او د کا بل چاپ په ۳۵ ۲ مخ کې د غه خزم نسته ، خود پیښور چاب په ۱۷۲ کې د [چي] پرځای [د] ر اغلي او خ زم یې پیښ کړی د ی.

۲۲ ـ د ګلشن روه په ۲/۱۹۲ مخ کې نهم بیت داسې را غلی دی :

و لې له شیدا بلبل(ی) مخ جار باسې [ ای] ګله

ته په خوبیو هم دده نارو رسوا کړی

۱۷۱—: وګورىء ! د ګلشن روه په فرهنګ کې د«جود» کلمه .

دعبدالله درخان خټک د کابل چاپ دیوان په ۳۸۱ مخ کی دغه «خزم» او «خرم» دواړه نه لری او لومړی نیم بیتی داسی کښلی دی :

ولی له شیدا بلبلی مخ جار باسی گله ؟

۲۴-دگلشن روه په ۲۰۳ مخ کې داتم بیت وروستی نیم بیتی داسی دي:

د گمان [تیاره] خونه به سپینه کړی له گچه

د لوی احمدشاه بابا د کابل چاپ په ۱۹۱ مخ کی دغه خزم نسته په پیښو ر چاپ د «تیاره» کلمه نه ده راغلی .

۲۵-دگلشن روه په ۲/۲۰۵ مخ کی دریم بیت داسی کښلی دی :

[هغ]ه او سره چی د کرم او به یی نه وی

[هغ]ه اوره مه کړی په مخ ددی آسمان گله

دلوی احمدشاه بابا د پیښور چاپ دیوا ن په ۳۳ — او د کابل چاپ ۱۹۶ مخ کی دغه خزم نسته او د [هغه] پر ځای غه کلمه راغلی د ه ـ چی د هغه مخفف ده.

۲۶—د گلشن روه په ۲/۲۰۵ مخ کی ددوهمی غرلی شپږ بیته خز م لر ی ، داسی :

[چې] بڼاخ دخا ر کا سره گلو نه

دا [بڼه] قدرت د کردگا ر

دقدرت ا و به یی ور کړ ي

له وچ سخره [ثمرو] کاا شجا ر

هیڅ نشان د سمر نه د ی

له و چ و نی [خو رنگه] شی ا ظها ر

خونه و رنگ وروی [به] یې نه وی

به خوښان [بیرون] کامزه دا ر

له قدرته یی نا زیږ زم

[ بی او بو]لغر شجر کا میوه دار

احمدشاه شه[و] ورځ ثنا کړه

عقل دچا رسی په[ د ا ] کار

دلوی احمد شاه بابا دپېښور دیوان چاپ ۳۷ مخ کی فقط یو خزم [بی او بو ] پاته دی ، نور نسته .

۲۷- دگلشن روه په ۲ /۲۰۶ مخ کی لسم بیت داسی کښلی دی :

[دلبره ] ستا رنګ به ( بل بو ) نه وی په جهان کی

پلو واخله یار به مړ شی په ارمان کی

دلوی احمد شا بابا د کابل چاپ دیوان په ۲۱۲ مخ او دپېښور چاپ ۱۸۷ مخ کی د غه «خزم» او «خرم » نسته .

۲۸- دگلشن روه په ۲ /۲۰۶ مخ کی پنځلسم بیت داسی کښلی دی :

ستا دحسن له تاراجه زړه ژړا کا

[ لکه] بلبلی [دزره] ژړا کا په خزان کې

(چې)

دلوی احمدشاه بابا د کابل چاپ دیوان په ۲۱۳ مخ او پېښور چاپ ۱۸۷ مخ کی ورو ستی نیم بیتی داسی کښلی دی :

چې بلبلی هم ژړا کا په خزان کی

۲۹- دگلشن روه په ۲/۲۰۶ مخ کی نولسم بیت داسی دی:

شیرین عمر چی تېرېږي دریغه دریغه

[لکه] اوبه هسی بهېږی دریغه دریغه

دلوی احمدشاه بابا دکابل چاپ دیوان په ۲۲۲ - اودپېښور چاپ په ۲۲۵ مخ کی وروستی نیم بیتی داسی کښلی دی :

داوبو په څېر بهېږی دریغه دریغه

۳۰- دگلشن روه په ۲/۲۰۹ مخ کی اوه لسم بیت داسی دی:

نفس [و] شیطان راسره مله دی

نه شی یو کار عندالله

دلوی احمدشاه بابا دکابل چاپ دیوان په ۲۲۳ اودپېښور چاپ په ۹۷ ۱ مخ کی دغه خزم نسته .

۳۱- دگلشن روه په ۲/۲۱۱ مخ کی یوولسم بیت داسی دی :

دبهار وریځ وریږي

[مینـ]ـن بلبل په هوسېږي

دلوی احمدشاه بابا دپېښور چاپ دیوان په ۲۶۲ مخ کی هم دغه خزم سته - مگر دکابل چاپ په ۵۳۳ مخ کی د«مین» پرځای «خوار» راغلی دی او خزم نه لری.

۳۲- دگلشن روه په ۲/۲۱۱ مخ کی پنځلسم بیت داسی دی :

د آشنا دید یی سرهم دی

بې سر[ هم] کوم پرهار رغېږي

دلوی احمدشاه بابا دپېښور چاپ دیوان په ۲۶۱ مخ کی هم دغه خزم سته

مگر دکابل چاپ په ۵۳۳ مخ کی د«سرهم» پرځای «دي» کلمه راغلې ده اوخزم

یې له نسخه وړی دی .

۳۳ـ دګلشن روه په۲/۱۲۲ مخ کی لوړی بیت داسی دی.

پهخوځیرګوري کا ته کا

ګوره[و] چاته یې ګزارډی

دلوی احمدشاه بابا د کابل چاپ دیوان په۳۴۸ مخ کی دغه خرم نسته، مګر دپېښو ر

چا پ په۲۶ مخ کی «خرم»نه دی ایسته سوی.

۳۲ـ دګلشن روه په۲/۱۲۲ مخ کی د کتاب ترټولو وروستی بیت داسی کښلی دی:

سرپهعشق پرې کړه[ ې بویه] بی عشقه (۱۷۲)

سراحمده څهپه کار دی

دلوی احمدشاه بابا دپېښورچاپ په۲۶۱ مخ کی دغه خرم سته خود کابل چاپ دیوان

په۳۴۸ مخ کی خرم نسته اودبیت بڼه داډول دی :

سرپهعشق پرې کړه احمده !

سربی عشقه څه په کاردی

.........

ب — خرم : یعنی هغه هجاوې چې دمربوط نظم تر عروضی وزن کمې وي ،

دځینو بیتو دغه کمې هجاوې په (   ) کې په ټکو (نقطو) ښوولی کېږی :

یعنی دیوې کمی هجا پر ځای به یو ټکی ایښوو سوی وي ،(۱۷۳) په دې ډول:

---

۱۷۲ په ګلشن روه اودا حمدشاه باباد پېښور چاپ په دیوان کی بی عشقه توره په دوهم

نیم بیتی پوری تړلی ده .

۱۷۳ — هغه خرسو نه چې د کلمو په پای کی د کوم حرکت په کښلو

له منځه ځی ـ دلته نه څېړل کېږی، لکه :*

۱ــ د گلشن روه په ۱۵۷/۱ مخ کی کښلی د ي :

له اول ز یم دچیني په لړ څه بند شی

چې (٠) نم تر ا و ش کاله گل‌ولایه

دچاپی گلدستې په ۷۷ مخ کی دغه تشه هجا په «یې» ډکه سوې ده .

۲ــ د گلشن روه په ۱۶۰/۱ مخ کې کښلی د ی :

چی هنر مند و ی ، هغه حاسد لري

ا غز ی گلو نه رقیب شا هد لر ي

په‌خو به‌ښه‌یشی،دبوسو، زاغو (۱۷۳)

باز چی مسکن‌د(٠) شا ه ساعد لر ي

* ۱۶۲/۱ مخ — حاصل شول

۱۶۳/۱ مخ — هسی رنگ

۱۶۷/۱ مخ—پا د شا ه

۱/۳ ــ بی شر یک

۱/۲ له نیستی

۸/۲ ــ تر لغزش

۱۰/۲ ــ که هزار هزار پښتی

۱۱۷/۲ ــ سو نړ

۱۷۳ ــ ښه یشی ــ د کندهار په لهجی کی ښه ایسی‌وایی ــ په گلشن‌روه کی دغه کلمه « خو یشی » کښلی ده ــ مګر د گلد ستی‌په ۸۰ مخ کی«ښه‌یشی» د ه .

دچاپي گلد ستي په ۸۰ مخ کې هم دغه خرم ستنه ، زما خيال دا دی چې ددغي تشي هجا ځای به په ( پاد ) ډك ؤ او د « شاه » کلمه به په ا صل کې « پاد شاه » وه .

۳ــ د گلشن روه په ۱/۱۷۲ مخ کې کښلي د ی :

د مسند ليا قت نه لرم کمين يم

له کمينو څخه(.) ناست په زمين يم

د چاپي گلد ستي په ۹۷ مخ کې دغه تشه هجا په (ښه) ډکه سوې ده او و روستی نيم بيتی داسې کښلي د ی :

له کمينو سر ه ښه ناست په زمين يم

۴ــ د گلشن روه په ۲/۳ مخ کې دوهم بيت د اسې کښلي د ی :

همگی بز ر گوا را ن چې څو ك (.) وايي

تر همه و و بـز ر گـوا ر د ی رب ز مـا

د رحمان بابا د کابل چاپ ديوان په لو مړ ی مخ کې دد غی تشی هجا ځای په « يې » ډك د ی .

۵ــ د گلشن روه په ۲/۶۵ مخ کې نو لسم بيت داسې د ی:

د شهباز تر ځايه کله ما شی رسی

که راو ړ ی (.) له ځايه پر و بال دی

دد غی تشی هجا ځا ی په (يې) ډ کېږ ی .

۶ــ د گلشن روه په ۲/۵۷ مخ کې يوه غزله راغلې ده چې په څو بيتونو کې يې خرم ستنه ، په د ې ډول :

نن په بستر کو ورو څیو لهسا خوارزهدو تقوی وړه
نا زو غمزي و کړه عقل و صبر سی سبا وړه
تل چی عاشقان دی، پسی ئې لی رقیبان دی
نه چی عاشقی کړې دو کړي (٠) غوغا ئې وړه
سال دی کهسی ملک دی، خولامې نهیم ژوندی یم
هر چی ستا په خوا دي، هغه واړه (٠) پخوا وړه (۱۷۵)
ډیري دي نگاري، ښایستې پري رخسا ري
نورولره نور څه نه سي (٠) زړه په تنها وړه
تاویل خوشاله! یوکا لی بهله تا غوا ړم
زړه دی، نور څه نه دی، بنه ، در کړی (٠) و تا وړه (۱۷٦)

په دغو پښوبیتوکي دخلورو هجاوو ځایونه تش دي — د لوړي هجا ځای په «شور» ددوهمې هجا ځای په (لا) او د څلورمې هجا ځای په (سي) ډ کړی ددریمې تشې هجا سیخ ته دمفرد متکلم اضافي ضمیر «مي» پرځای (زما Zu—ma) لوړی چې دوې هجایي کلمه ده.(۱۷۷)

۷— دگلشن روه په ۲/۹۰ مخ کې کښلی دي:

چې سري که ، له سري ددنیا طمعه
سړیتوب (٠) بې سې توبشې په دا طمعه

۱۷۵ — هر چیرې هر څه چې په گلشن روه کې « هر څه » کښلی شوي .

۱۷٦ — د هوتي چاپ د دیوان خوشحال خان په ۲۱۸ مخ کې د بیت پر ځای شه کښلی شوی .

۱۷۷ — وگوری : د هوتي چاپ دیوان خوشحال خان ۱۲۸ — ۲۱۷ مخونه ... خوشحال مر ... کلیات خوشحال خان ... ۱۳۰ ... اورنگ ... خوشحال ... مخ .

ددغې تشې هجاځای په(ږه) ډ کېږي(۱۷۸)

۸—دګلشن روه په ۲/۹۵ مخ کې دوه ویشتم بیت داسې دی:

لەفلکه سوال د نس دپا ره مه کړه

در کوی(.) په کچکول کې اوږ سکه

ددغې تشې هجاځای په(که) ډ کېږي(۱۷۹)

۹- دګلشن روه په ۲/۱۰۸ مخ کې اتم بیت داسې کښلی دی:

که عاشق په صورت وو ږ(.) په زړه لوی دی

څه په کار دی بیهوده صورت دعاج

دد عې تشې هجاځای به(دی) ډ کوی(۱۸۰)

۱۰ — دګلشن روه په ۲/۱۰۸ مخ کې پنځلسم بیت داسې دی:

څو به دد نیا په حب کی(.) ګرزې نامرده!

وڅکه دعشق مستة پیاله شهد وشکرده

---

۱۷۸- وګوریء: دحمید دیوان دبمبۍ چاپ ۶۳ مخ- دلاهور چاپ ۷۰ — د کابل چاپ ۷۱- دپېښور چاپ ۶۳ مخ .

۱۷۹- وګوریء: دحمید دیوان دبمبۍ چاپ ۷۷ مخ — دلاهور چاپ ۸۲ کابل چاپ ۱۱۳ د پېښور چاپ ۹۷ مخ- دحمید بمبۍ چاپ (۱۲۹۵) دیوان کې دوهم نیم بیتی داسې کښل کړ چاپ سوی دی: در کوی عاشق په کچکو کښې اوږ لکه

۱۸۰- دخواجه محمد دچاپي دیوان — ۶ مخ کی دلوړی نیم بیتی نوه داسې ده:

که عاشق په صورت تورچالوئی

د دغی تشی هجاځای(ډوب) کلمه ډکوی.(۱۸۱)

۱۱ - دګلشن روه په ۲/۱۰۹ مخ کی کښلی دی:

نن می وایدلی ښایستی ستر ګی خماری
زه په دواړه لاس تندی و هم و همه ناری
(..)چی قرار، آرام یی وا ړله مایوو ړ
ځکه می پر مخ او ښی بهیږی لاری لاری

دد غو دووتشو هجاوو ځای(صبر) کلمه ډکوی اودو رپسی« چی » پر ځای او «راځی» .یا«چی قرار» «په کراری»اوړی .

۱۲ - دګلشن روه په ۲/۱۰۹ مخ کی شپاړسم بیت دا سی کښلی دی :

مکړه ډېری(..) اشنا ییه وته ، ګوره
نه وینی هجران تا ختونه کاندی لوردلوره

ددغودووتشو هجاوو ځای(سینی) ډکوی- که(سینه) مي ئنوصفت یی هم با ید «ډېره» وي (۱۸۳) دګلشن روه ددوهمی برخی په غلطنامه کی دا کنله وکړ نیم بیتی دا سی سم کړه سویدی:«مکړه ډېری اشنایی وچاته ورو ره » مګر د ا سمون معنوی انسجام نه لری .

---

۱۸۱ —وګوری:دخواجه محمدبنګښ دچاپی دیوان۷۲ مخ
۱۸۲— د خواجه محمد دچاپی دیوان په ۷۵مخ کی دغه نیم بیتی داسی کښلی دی:

صبر ،قراری،آرام یی واړه له سایوو ړ

۱۸۳—وګوری:دخواجه محمدبنګښ دچاپی دیوان ۷۵ مخ.

۱۳ ـ دگلشن روه په ۲/۱۱۱ مخ کی دریم بیت داسی کښلی دی:

خواخیستی غوښی واړه توپی نه کړي

ومقصود (و) ته بهونه رسی (.) کریزه (۱۸۳)

په دوهم نیم بیتی کی ددغی تشی هجا ځای نافیه (بې) ډکوی ـ ا و خلورمه هجا (و) یی غورځی (بی) دخواجه محمد په چاپی اوخطی دیوانو کی سته .

۱۴ ـ دگلشن روه په ۲/۱۱۳ مخ کی یوه اووه بیتیزه غزله راغلې ده ـ اوله مطلعه پرته نورو شپږ وبیتو کی خرم پېښ دی، په دې ډول :

ته سی له هر ی بلاوساتی خداحافظه !

چی بې له تانه هیڅوک نشته دی زماحافظه

ما (.) امو ر ددوار و کونودی پرتاسپا ر لی

چی د هر چاریې هم ددین هم ددنیاحافظه (۱۸۵)

(.) په هرلوری نفس شیطان درته (..) ولاړ دی

دخلاصید ولوری سی نشته بې له تاحافظه (۱۸۶)

د (.) د نیاله افتونو سی (.) وېرونشی

---

۱۸۳ ـ کریز Kurez کلمه څینی پښتانه یوه هجا یی Kwrez یا Krez وایی ـ دلته ددغه لغت لفظیوهجایی دی ـ دخواجه محمدبنگښ ددیوان په ۸۲ مخ کی دغه کلمه گریز کښلی ده چی په پارسی کی دتېښتی معنی لری .

۱۸۵ ـ دخواجه محمد دچاپی دیوان په ۹۱ مخ کی «چار» کلمه «چا» کښلی ده.

۱۸۶ ـ دخواجه محمد په چاپی دیوان کی دا نیم بیتی د ا سی کښلی د ی :

(.) دخلاصی لور سی (.) نشته بېله تاحافظه .

تەمی په سریې پەهر لوری‌له بلا حافظه

زه (.) چې تالره‌درځم ،زما دوړاندی‌تەشه

پەدغه لاری می‌نور نشته (.) اشناحافظ

پەهرسحردرته زاری کوم‌وصال(.) غواړم

(.)سحرقبوله کړه زما[دخولی] دعاحافظه

(.)گنهگار خواجه محمد لەخپاله مینەورکړه(۱۸۷)

چې همېشه وی‌ستا دذکردثنا حافظ

ددغی غزلی په شپږ وبیتو کی‌لس ځا یەخرم اودوه ځایه خزم پیښ دی - تش ځایونه په روڼ سره (علی الترتیب) پە(می )(دی)(پەځو) (دی)(هیڅ ) (خوار) (دی)(دي )(تەیو) (دا) ډ کیږی—دخواجەمحمدبنگښ‌دچاپی‌دیوان په ۱۹—۲۹ مخو کی هم لوسړی؛ دوهم،څلورم،شپږم،لسم خرمونەسته .

۱۵—دگلشن روەپە۲/۱۱۳ مخ کی دریمم بیت‌داسی کښلی‌دی :

تا چې هسی( . )با رو نه وتړل روا ن شوې

څرنگ بەتبریږې ستادوړاندي‌کو څه تنگه

دخواجه محمد دچاپی دیوان‌پە ۱۰۰ - اودخطی دیوان‌پە ۳۵ مخ کی د غەتش ځای پە(لوی)ډک دی اودوزن‌اومفهوم دواړو نقص لری‌سوی دی.

۱۶— د گلشن روه په ۱۱۵/۲ مخ کی دریم بیت داسي دی :

زه به (.) له یاره لیری پر هوا د شوم

په هیڅ رنگ د یا ری پت شلو لی نەشم

---

۱۸۷—دلته «لە» د«تە» پە معنی‌را غلی دی.

د خواجه محمد دچاپي دېوان په ۱۰۳ مخ کی دغه تش ځا ی په ( هم ) ډ ک د ی .

۱۷ — د گلشن روه په ۲/۱۱۷ مخ کی دخواجه محمد بنګښي‌یوه غزله‌راغلې ده ، څلور بیته یې خرم لر ي په د ې تو که :

خلق چي خښتن د و لا یت د خزا نو و و
اوس‌یې‌له‌دنیانه(..)ورك‌نام ونښان‌شو(۱۸۸)
هر چي فقیران و ر ته و لا ړلاس پرناسه و و
اوس‌پر ې‌دلحد کمر(.) پرېواته‌ویران‌شو(۱۸۹)
زړه مي په الما س دېېلتانه پسار ه پار ه د ی
وار په وار همه ( .. ) جد ا سین یا ر ا ن شو
تله د ی له دنیا [نه] خواجه‌محمد (.) څه‌امېد کا
لاندي چي تر خاوروښا یسته پیغمبران شو

په دغو څلورو بیتو کی څلور ځایه خر م پېښ د ی ، تش ځایونه په روڼ سره ( علی‌الترتیب) په (گو ر ه ) ( و نه ) ( لهما ) ( به ) ډ کېږ ي . (۱۹۰)

---

۱۸۸ — دخواجه‌محمد دخطی دیوان په ۸٦ مخ کی دا نیم بیتی داسی کښلی د ی : (اوس یې ددنیا له سرایه‌ورك نام و نښان شو . ) —په‌چاپی دیوان کی هم دغسی د ی .

۱۸۹ — دخواجه‌محمد دچاپی دیوان په ۱۱۳ مخ کی‌د ( کمر و نه ) پر ځا ی ( کو ر و نه ) کښلی د ی .

۱۹۰ —وگو رئ ! دخواجه‌محمد دچاپی‌دیوان۱۱۳—۱۱۴ - او دخطی‌دیوان۸٦مخ .

۱۸ — د گلشن روه په ۲/۱۱۸ مخ کې د وروستي غزلي دوهم او
څلورم بیتونه داسې کښلي دي :

د ښایست سخي دی نشته په جهان کسې
هرسړی چې (.)صفت نه کاندي گرم دی(۱۹۱)
هسې خوبش د تخت د پاسه خرم نه دي
چې عاشق (.) ستا په در کې خوش خرم دی

تش ځایونه لو سړی په (دي) او دوهم په (دا) ډکېږي — دوهم خرم
دخواجه محمد دچاپي دیوان په ۱۲۹ مخ کې هم سته .

۱۹ — د گلشن روه په ۲/۱۲۱ مخ کې لو سړی ، دریيم ، اتم او یوولسم
بیتونه خرم لري ، په دې ، ډول :

(.) هستي بې بې پایانه
په هر څه کې يې صفت دی
(.) طالب يې پوپنا که(۱۹۲)
له مطلو به يې غیرت دی
(.)میرزا په پښتو کړی
د یوه سولي صفت دی

۱۹۱ — دخواجه محمد دچاپي دیوان په ۱۲۹ مخ کې دغه تش ځای په (يې)
ډک دی او په لو سړی نیم بیتي کې هم د « دي» پر ځای«يې » کښلي دي.
۱۹۲ — د میرزا خان او رسړیه لاهورچاپ دیوان او یوه خطي نسخه کې
دغه نیم بیتي داسې کښلي د : « هر طالب چې د ی فا نی کړی » ـ ما ته
د غه نسخه بدل غوره ښکاري .

دغه د رې تش ځايونه دميرزا خان اورسړ دلاهورچاپ‌ديوان په ۳ مخ کې په ر و ڼ سر ه په (هم) او (هر) (نن) ډک دي ، خو د کابل چاپ په دوهم مخ کې يې يوائحې دريم خرم په «نن» ډک سوی د ی او د (هم) او (هر) ځايونه تش د ي — د پېښو ر چا پ په ۲۱۹ — ۲۲۰ مخونو کې د گلشن ر و ه په ځېر د ر ې سره خرمه سته .

۲۰— د گلشن روه په ۲/۲۲۱ مخ کې شپاړ سم بيت‌داسی کښلی د ی :

(.) په زمکه په اسما ن کې

هم محيط تر د غه ميا ن د ی

د ميرزا خان او ر سړ د لاهورچاپ ديوان په ٥ مخ کی تش ځا ی په (هم) ډک د ی خو د پېښور چاپ په ۲۲۰ مخ کی د گلشن ر و ه په ځېر خرم‌سته .

۲۱— د گلشن روه په ۲/۱۲۷ مخ کی دير لسم بيت داسی کښلی د ی :

بد ه طعمه د سترگ خو ړي په دو د ښو ر ې

(.) په ښه‌توکل يې‌خلاصه کړه له‌لچه (۱۹۳)

دميرزا خان اورسړ د لاهورچاپ ديوان په ۹۱ — او د کابل چاپ ديوان په ۱۲۰ مخ کی دغه تش ځا ی په (قد) ډک د ی — خود پېښو رچا پ په ۳٥ مخ کی د گلشن روه په ځېر دغه خرم سته .

۲۲— د گلشن ر و ه په ۲/۱۳۰ مخ کی يوولسم بيت داسی کښلی د ی :

---

۱۹۳ — « تو کل» کلمه په عربی کی دری هجايی «تو—کل» وايی . دغه نيم بيتی په کابل او لاهورچا پ ديو انو کی د ا سی کښلی د ی :

ته په‌ښه توکل خلاص کړ ه د و ی له لچه

یو (.) اصل داوبو دی، یود زمکې (۱۹۴)

او مېوې ځینی تر خې شوې، خوک شېرینی

دغه تش ځای په (یې) ډکېږي — د میرزا خان ا ورسړ د کابل چاپ دیوان په ۲۳۵ مخ — او د پېښور چاپ په ۱۷۲ مخ کی د غه خرم سته.

۲۳— د گلشن روه په ۱۰۵/۲ مخ کی اتلسم بیت داسی دی :

هرگز مه شه ستا لـه حبه زړه زمـا سر د

لکه نه شه (.) څو رونوخـا طـر ستا سر د

ددغی تشی هجا ځای ( له ) ډکوي. (۱۹۵)

د گلشن روه په ۱۸۹/۲ مخ یوولسم بیت داسی دی :

چې بې سواله ورکړه کا (.) منت نه ږدي

سخـــا وت دی د هـغـو پسنـد لــږ مـا

ددغی تشی هجا ځای ( ند ي ) ډکو لاسی چی له وړاندنی هجا سره په ( کاند ي ) لوستل کېږي او که تش ځای تر « منت » کلمې وروسته وتاکل سی نو په ( یې) ډکېږي — په حدیقهٔ ختیک کی د د غه بیت په عروض کی « منت په ځان ږدي» کښلی دی . (۱۹۶)

---

۱۹۴— دغه نیم بیتی دلاهورچاپ دیوان په ۱۳۶ مخ کی داسی کښلی دی : نه یې گوره یو باران او یوه زمکه

۱۹۵— وگوریءِ : داشرف خان هجری چاپی دیوان ۱۳ مخ.

۱۹۶— وگوریءِ : حدیقهٔ ختیک ۵۲ مخ .

۲٥—دگلشن روه په ۲/ ۳۰۲ مخ کی دلوی احمدشاه بابا یوه لسربیتیز مغز له کښلي ده ، په پنځوبیتو کی یې خرم ستة :

خدای دي ورک کړه [د] ناسوت مچه !

(..) خوله به پا ته‌نه وي ستا له مچه

(.) دمچ خوبونه مکړه (۱۹۷)

دابیناسترگی (.) خلاصی کړه له لچه

(.) باور درسره‌واخله (۱۹۸)

دگمان (تیار) خونه به سپینه کړي له گچه

(.) خپل اصل به [ ته ] بیا مومې

چی د کبرگردن وباسې له‌خر چه

[احمدشاه] دهمت‌توره د رواخله

نفس‌شیطان هند و(.) وباسه له کچه

دغه شپږ خایونه زما په خیال په‌رون سره (علی‌الترتیب) په (چي هیڅ) (ته) (دی) (ته) (غه= هغه) (د ي) ډکیږي .

دلوی احمدشاه‌بابا د کابل چاپ دیوان په ۱۹۱-۹۲ مخوکي داغزله په دغه عروضي وزن اوشکلی سکښت کی راغلي ده :

ںں- ں ا ں ں - ں ا — ںں—ں ا

ںں— ں ا ںں - ں ا—ںں - ں ا ا

---

۱۹۷ — په گلشن روه کی دصدرتشه هجا په (غافل) ډکه ده

۱۹۸ - « « ( یقین )

ځکه نوځوړلس ځایه خرم پېښ دي اوتش ځایونه په روڼ سره په (د غوټۍ) (چې هېڅ) (نو هغه به) (یوله بله) (هم خراب دی) (اې) (دا) (دي) (بل مه غواړه) (هم) (او هم) (هغه) (هله) (دي) ډک کړه سوي دي. (۱۹۹)

خو زه دلوی احمدشاه بابا ددغې غزلې عروضي سکښت دا سې بولم :

∪∪ — ∪، ∪∪، ـ ∪،

∪∪—∪، ∪∪ ـ ∪، ∪∪ — ∪،، (۲۰۰)

۲۶ـ دګلشن روه په ۲/۵۰۲ مخ کې دلوسړی غزلې په پنځو بیتو کې ظاهراً خرم پېښ دی، په دې ډول:

دبلبلو په ځای (.) مه وای زاغان ګڼه
په بوستان دګلو تل وای (.) یاران ګڼه
دیار مخ (.) لکه ګل خزان یه مه کړې
دا (.) ګل دې تل تازه وي په بوستان ګڼه
تار د زلفو چې یې پر یوازي (..)
بې له سره نه و ینمه بل تاوان ګڼه
چې د مخ (...) خال یې په ورانېږي
نه دې شي پر مخ داو ښیو تل باران ګڼه

---

۱۹۹ـــ دلوی احمدشاه بابا پېښور چاپ دیوان په ۲۸ مخ کې هم ددغې غزلې دوهم نیم بیتی د ولس هجایي سوي دی، مګر زه د بیت لومړنیم بیتی اته هجایي او دوهم نیم بیتی دولس هجایي بولم.

(۲۰۰) دا امکان سته چې د غزلې لومړی دوه هم دوولس هجایي وي.

(.) باد (..) دخزان چې گل پرېشان کا
کاشکي داباد (..) کړي په نارستان گډ

په دغو پنځو بيتو کې نه ځايه خرم پيښې دی، تش ځايونه زما په خيال په روڼ سره (هېڅ) (دا) (دی) (غه) (لهسره) (شايسته) (دا) (ونه) (ونه) ډکوي .

دلوی احمدشاه بابا د کابل چاپ دېوان په ۹۹ ۱-۰۰۲ مخو کې چې دغه غزله کښلې ده خرم نلري — د پيښورچاپ دېوان په ۳۰۳ مخ کي فقط شايسته ځای تش دی په دېوانو کې د (لهسره) پرځای (پر مخ باندی) او د (ونه) پرځايو (هر کله) او (سړی) کښلي دي.

۲۷ - د گلشن روه په ۲/۰۵۲ مخ کې ددوهمې غزلې په دوهم بيت کې خرم پيښ دی، په دې ډول :

(.) زړ (.) سی هو سېږي
بيا به گل کا د زړه خار

د دې بيت صدر دلوی احمدشاه باباد کابل چاپ په ۲۰۳ مخ کې (څه زړگی) او د پيښورچاپ په ۲۷۳ مخ کې (دازړ گی) کښلی دی .

۲۸ - د گلشن روه د ۲/۲۰۶ مخ په يوولسم بيت کې خرم پيښ دی.
همېشه سوی سينه د رپسی گرزم
(.) ستا ځای نه دی په زمکه په اسمان کې

د غه تش ځای په (چي) ډک دی. (۲۰۱)

۲۹ - د گلشن روه په ۲/۲۰۶ مخ کې اوولسم او اتلسم بيتونه خرم لري :

---

۲۰۱ - وگورۍ : دلوی احمدشاه باباد کابل چاپ دېوان ۲۱۲ او د پښورچاپ دېوان ۱۸۷ مخ.

دخلق هیڅ سلامت(..) پرځا ن نه پردي (۲۰۲)
په ناروعاشق ولاړپه داسیدان کي
(.) په جورو په جفا بې لاس وانه خلم
زه احمد (.) که جوړم په سامان کي (۲۰۳)

دغه درې تش ځایونه په روڼ سره په (ی به) هیڅ (پاد) ډکېږي .

۳۰— د گلشن روه په ۲۰۸/۲ مخ کي اووم بیت یوهجایي خړم لري :

احمدشاه بله د عا نه ز ده عالمه
په دیدن سي(.)و ز گار کړي زما دله

دغه تش ځای دلوی احمدشاه بابا د کابل چا پېد یوا ن په ۳۳۲ ـ او د پېښو ر چاپ په ۱۳۳ مخ کی په (بې) ډک دی .

---

۲۰۲—دا نیم بیتی دلوی احمدشاه بابا د کابل دیوان په ۱۱۲ مخ کی داسی کښلی دی :

«سلامت د خلقو هیڅ به پرځان نه پردی »

او د پېښور چاپ دیوان په ۸۷ ا مخ کی داسی دی:

«چی د خلقو سلامت به پرځان نه پر دی »

۲۰۳— دانیم بیتی د لوی احمد شاه بابا د کابل چاپ د یوان په ۲۱۳ مخ کی دا ډول دی:

«احمدشاهه که زه جوړوم په سامان کی»

او د پېښورچاپ دیوان په ۱۸۷ مخ کی دا راز دی :

«زه احمد که چېری جوړوم په سامان کی»

۱۳ـ دگلشن روه په ۲/۸۰۲ مخ کې دوه مه دوه وا لسمبیتیز ه غزل ده د اخر مو نه لري :

(۰) که پر زړه کړمه ستا زلفي (۰) خالو نه
پر مخ په جوړ شي (۰) داوښیو حصا رو نه
بېلتو ن دیار تو ره بلاده (۲۰۳)
خدای دې نه کا مبتلا دهېچا زړو نه (۲۰۵)
[که] یو دم (۰) زړه [بېغم کو م] بې غمه نشي
(۰) اندیښني یې لکه سار که گو زار و نه
(۰) زړه مي زو ړ شه ځوان په نه شي
(۰) دآشنا د غمې یو و ړه لوی بار و نه
[هـ گو ره] زړ ه (۰) نادان ورخبر نه و
(۰) بې خا په بېلتو ن کښې یو ست په تالو نه
پر یشان خاطر مي زړه پر یشان کړ
کل به ښکاره کړي (۰۰) ستر گي گلو نه (۲۰۶)
د بها ر گله مخ ښکار ه که (۲۰۷)
فر اق و هلی بلبل خو که هو سو نه

---

۲۰۳ د بېلتون ـــ کلمه په گلشن روه او د احمدشاه باباد پېښور چاپ دیوان کی «جدایی» کښلی ده.

۲۰۵ ـ خدا ی کلمه دلته دوې هجایی و یله کیږي . ددغې غزلی یوو لسم بیت په (ابتداء) رکن کې هم دخدای کلمه دوې هجایی راغلی ده.

۲۰۶ ـــ کل = کله

۲۰۷ـ په گلشن روه او د احمدشاه باباد پیښور چاپ دیوان په ۳۸۱ مخ کی دگله پر ځای «گل چې» کښلی دی .

کړه مي يار و ليده چي دادی (۲۰۸)
زړه په بهارشي د(..)په زېړ گلو نه
احمد[شاه بابا] غم پسی ښادي ده
(.)دخز ان محکه‌ په‌بياشي بو ستانو نه

په‌دغو نهو بيتو کې‌د و و لس خر سه پېښ دي تش‌ځا يو نه‌په‌ر ونښسر ه په(هی) ( ستا ) (زما ) ( مي ) ( هی ) (هی) (هی) (سي) (هی هی) (محبوبا) (ديدن) ( د ا )ډکوي .

دلوی احمدشاه بابا دپېښو رچاپ ديو ان په ۲۳۷مخ کي ز يار ايستل سوی دی چی دغي غزلي ته داعر وضي بڼه‌ور کړي :

ںں-ں اں ں-ںا ںں- ں ا
ںں-ں ا ںں-ں ا ںں-ں ا

د گلشن روه‌دضبط له مخي زما خيال دادی چي د غه غزله‌به

داعروضي سکښت و لری :

ںںں- ں ںں-ا ں (۲۰۹)
ںںں-اںںا -ںںں. ا ں

دگلشن ر وه په ۲۰۹-۲۱۰مخوکي دلوی احمدشابابا يوه غزله راغلی ده‌چي «وايمخه» يې رديف‌دی- داغزله هم کټ‌مټ په دغه سرنوشت‌اخته‌ده

۲۰۸– ښايي دادی په‌اصل کی «راغی »وی .
۲۰۹- د غزلی‌لوسړی دورد يرلس‌هجايی معلو ميږي .

۳۲ـ دگلشن روه په ۱۱۲ مخ کي ددير لسم بيت صدر «چي» له ليکلو پاتهسوی دی.

ج ـ اختلاط: يعنی په يوه غزله کي د دوو د اسی وزنونو گډول چي د هغو گډون سره روا نه وي ـ دد غسي گډوو د وزنونو د بېلولو له پاره دلنډي هجاله پاره (ں) داو ردې هجاله پاره (ـ) دو قفې له پاره (۱۱) او درکنونو دجلا کولو له پاره (۱) دعروضي نخښو په څېر کاروم، او د رحمان بابا د يوی غزلی عروضي گډوډي ښيم، دايو ولس بيتيزه غزله د گلشن روه په ۱۹/۲ مخ کي راغلې ده او مطلع يې داده:

گاهی ځان په غارمه سوځي، گهی ربړدي په سا ړه
کله سری له لوړی ښدي، کله سرتېه ډېر خوا ړه

ددې غزلی دوه ويشت نيم بيتی درې عروضي بڼې لري:

۱ـ لوسړی، دوهم او څلورم نيم بيتی يې چي پنځلس هجايی دي او په دي وزن کي دي:

ںـں ا ںـں اںـںا ںں ـ

۲ـ دريم، پنځم، اووم، نهم، يوولسم، ديرلسم، پنځلسم، اولسم، نولسم او يوويشتم نيم بيتی يې چي څورلس هجايي دي او په دې وزن کي دي:

ـںںں اـںںا ـںںا ـ

۳ـ شپږم، اتم، لسم، دوولسم، څورلسم، شپاړسم، اتلسم، شلم او دوه ويشتم نيم بيتی يې چي ديرلس هجايی دي او په دي وزن کي دي:

ـ ںں ا ـںںا ـںںا ـ

په دغو درو وزنو نوکي د دوهم او دریم وزنو ګډون دعروضي قواعدو له مخه رواکاردی او دا په عروضو کي جائز الاختلاط وزنونه بلل کیږي ـ مګر لومړی، وزن له دغو دوو جائز الاختلاطو وزنونو سره هیڅ اړخ نه لګوي او داهغه عروضي ګډوډي ده چي دجواز له پاره په عروضي (قتاواوو) کي حکم نه موندل کیږي .

درحمان باباد ډېرو خطي او چاپي نسخو له مقابلي څخه معلومه سوې ده چي دګلشن روه ددغي غزلي دلومړی وزن دریم نیم بیتی بایدداعروضی بڼه ولري :

— ∪∪ ا —∪∪ ا —∪∪ ا —

ګاه په غرمه سوځي ګهي رېږدي په ساړه

کله سری له لوږی کله سری په ډېرخوړه

نه یې هغه ژړی په قراردی قراردی نه دساړه

د — تیر و بیر : کله کله د کوم نیم بیتی دهجاوو شمېر د سربوط نظم لـــه عروضي غوښته سره برابر وي، خو وزن یې دسربوط نظم له عروضي وزن سره اړخ نه لګوي — ددې یو سبب دادی چي دنیم بیتي کلمي له څپله ځایه بې ځایـه سوي او فشار لري نکي او بې فشاره هجاوي یې تیري بیري راغلي وي ، په ګلشن روه کي ددغي پیښي څو مثاله دادي :

۱ — دګلشن روه په ۲/۳مخ کی درحمان بابا یو بیت داسي کښلي دی:

کهسي هر ده ینادر [و]سر غلري شي

لالایق دغو ډو نه ګنې وینا زما

په لو مړی نیم بیتي کی بې‌و زني‌له‌دې پیښه‌ده چې«شي » کلمه‌تر «مر غلري »
و ر و سته سوې ده‌دنیم بیتي دلفظو نو او ډنه‌باید داسي‌وي :

کەسی هر ەو ینادر شي‌مر غلري

دغه‌او ډنه دو زارت اطلاعات‌و کلتو ر د خطی کتب‌خانې درحمان‌بابادیو ان
له لو مړی نسخې سر ەسمه‌دەسگر د کابل چاپ‌د دیوان‌په شلم‌مخ کې‌د «مر غلری»
ځای«یاگو هر شي»ډ ک کړی‌دی .

۲ — دگلشن ر و ه‌په ۲/۱۲ مخ کې‌د رحمان‌بابادیوې‌غز لي‌مطلع‌داسي کښلې‌ده :

ستاپه مخ کي‌دجمال خه‌حساب نشته

ځکه‌ساځخه دصبر مجال‌نشته

دلته‌په لو مړی‌نیم‌بیتي کی«دجمال»بایدتر «خه‌حساب»و ر و سته سی.

۳— دگلشن ر و ه په ۲/۱۳ مخ کی‌دخو اجه‌محمدبنگښ یو بیت کښلی‌دی :

دغه لار هر گو ر ه ده‌بار یکه سخته

که عاشق‌یې ته‌د هري‌بلاسپر شه

په‌لومړي‌نیم بیتي کي که‌او و سی هجاء (ده)ته‌مصنو عي فشارو ر کړ و دنیم
بیتي و زن سمیږي—خو که‌يې‌په طبیعی فشار سر ەو و ایو دنیم‌بیتي‌و زن و ر ان
دی—دغه بې‌و زني‌له‌دی پیښه‌ده‌چي«سخته» کلمه‌باید‌تر «ده‌بار یکه»دمخه کښلې
و ای او نیم‌بیتی به‌داسي جوړ ؤ:

دغه‌لار هر گو ر ه سخته ده‌بار یکه

دانیم‌بیتي دخو اجه‌محمدبنگښ دچاپی دیو ان‌په ۸٦مخ کی‌هم‌دغه ر ا ز
ر ا غلی دی .

۳ — دګلشن روه په ۲/۱۱۲مخ کی دلوی احمدشاه بابا یو بیت راغلی دی:

دزمکی سر په تازه کا (۲۱۰)

زړه یې ګل په زرغونیږي

په لومړی نیم بیتی کی یې وزن له دې پیښه ده چې«دزمکی» تر «سر» وړاندې

سوې ده، دنیم بیتی سم او موزون شکل داسې دی:

سر دزمکی په تازه کا

۴— دګلشن روه په ۲/۱۱۲مخ کې ددوهمې غزلې مقطع داسې کښلې ده:

باد دیار لەلور [ی]

که راشي احمدشاه پرې تازه کیږي

د لته دلومړي نیم بیتي« که راشي»توته لەدوهم نیم بیتي سره اشتباهاً کښــــل

سوېده— دبیت اصلی شکل داسې دی:

باد دیار له لوره که راشي

احمد شاه پرې تازه کیږي

---

۲۱۰ — دګلشن روه په متن کی دز مکی کلمه«زمکل» کښلی ده خوپه سمون لیک

کی یې سمه کړید.

«٦»

دگلشن روه کو موتېر وتنو (غلطیو) ته چې دمؤلف یامهتمم پام‌سوی دی هغه
یې د« فهرست دغلطیو »ترعنوان لاندي دلو سړی‌او دو همي‌برخي‌په شروع کي
راوړي دي— په‌دغو فهرستو کي‌دلو سړی برخي فقط څو رلس تېرو تنې — او د
دو همي برخي‌او ه‌لس‌تیرو تني‌دي‌چي‌په‌یو ه‌یو ه‌مخ کي‌ځای سوی‌دي.
سا چې‌گلشن‌روه‌و کوت پر ډیرو داسي‌تیرو تنو پېښ‌سوم چې‌په سمون‌لیکت
کي نه‌دي‌راغلي او دمتنو نو په‌لوست‌او دمعناو و په‌پوهېدو کي‌گراني پېښوي— د
درنو لوستونکو دسو .اني په‌نیامت(قصد)مي ځیني‌مهمي نا ښو ولي تیرو تنـــي
راټولي کړی‌او پر دغو څلو رو برخوسي‌و و یشلی:

---

*هغه املایی غلطۍ‌چې ډېری څرگندي دی لکه، زولال (زلال)تسیلم (تسلیم)
چا پېر (چارپېر) زنند ان (زندان) نشا( نشه ) ترخنجه(تر څنګه) ډگ (ډک) آجر
(آخر) شفکتن (شگفتن) ترا وت ( طراوت) گرم( کرم) گړ( کړ)ملازست(ملازمت)
ازان (ازن)سباط(انبساط)څړودلور( څورو تور ) زړه( ذره) چړي (چوی- چېری) شرح رر
( سرخ رو )شړی(سړی) هغه به‌لوستو نکی‌پخپله‌سمی کړ ی .

الف— هغه تیروتنې چې گلشن روه او ماخذونو کې مشترکې دي:

۱ — دگلشن روه په ۱/۳۳ مخ او تاریخ مرصع په ۲۰۲ — ۲۰۳ مخونو کې دکابل د هغه گورگاني صوبه‌دار (والي) نوم چې احد ادرو شانې بې په جنگ کې وژلی سوی دی «مظفر خان» کښلی دی — دغه‌نوم د بایزید روښان په ۱۳ — ۲۳ مخو کې هم دغسې غلط نقل سوی دی — دکابل د دغه والي لقب ظفرخان ؤ نه مظفرخان.( ۲۱۱ )

د دغه لقب په باب پخپله ظفرخان په میخانه راز کې ویلي دي :

بعهد جهانگیر فرمان روا
نهالم چنین یافت نشو و نما
ز اخلاص و خدمت شدم سر فراز
مراد ادز ابنای جنس امتیاز
عطا کرد شاهم ز روی کرم
خطاب ظفر خان و طبل و علم
به کابلستانم فرستاد شاه
که دارم رعیت ز دشمن نگاه

---

۲۱۱ — د ظفر خان اصلي نوم محمدرضا و، ده ویلی دی :

مرا چون پدرم کرد نذر امام
ازآن نم محمد رضا گشت نام

جهانگیر پاچا (م ۱۰۱۴ — ۱۰۳۷ ه ق) په خلور کلنی کی احسن الله نوم پری کښیښود تخلص یې احسن و. په ۱۰۱۳ ه ق کال زیږیدلی او په ۱۰۷۳ ه ف کال مړدی میخانه راز. جاوهٔ تاز. هفت منزل مثنوی گانې ده کښلي دي، د یوان هم لري .

دتزکڼ جهانگیري په ۳۰۴مخ کې هم دغه لقب«ظفر خان» کښلی دی .

ظفر خان له۱۰۳۳ ه ق څخه تر ۱۰۳۸ ه ق پورې دپلار په نیابت دکابل والي ؤ، دپارسي ژبې ناستو شاعر میرزا صائب تبریزی(۱۰۸۰ ه ق مړ )له ده سره دوه کاله په کابل کې و اوسیدیء، صائب هم ددغه والي نوم ظفرخان راوړی دی نه مظفر خان په دې ډول :

کلاه گوشه بخورشیدو ماه‌می شکنم

باین غرور که مدحت‌گر ظفر خانم

۲— دگلشن روه په ۱۵۹/۱مخ کې دیوه پاچانوم «اغلم» کښلی دی،د چاپي گلدستي په ۹۷مخ کې هم دغه نوم«اغلم»راغلی دی،خو دسعدی دگلستان کوم چاپی نسخه‌چې زماسره سته دهغې په ۳۴مخ کې دغه نوم«اغلمش» کښلی دی .

۳— دگلشن روه په ۱۶۵/۱مخ کې کښلي دي: «دبادشاهانود طبیعت شامل لازم دي.»دچاپي گلدستي په ۸۸مخ کې هم دغه جمله کټ مټ کښلې ده—« شامل» کلمه دجملې له کلماتو سره اړخ نه لگوي او زماخیال دادی‌چې د«شامل» پرځای به په‌اصل کې«ساتل» کښلي وي .

۴— دگلشن روه په ۶۶/۲مخ کې کښلي دي :

که‌دگل پاڼي(یې)خط کړی‌لا به هم‌باندي‌خر خیري

داناز کڼ بدن‌چې‌ستادی، دچانه‌دی بدن هسي

«خط» کلمه دخوشحال‌خان سرغلري‌په ۶۲۵مخ—د کلیات خوشحال خان په ۶۲۴—دارمغان‌خوشحال ۶۴۷—په(طاء) کښلې ده— زماخیال‌دادي چي دا کلمه باید«خت»وي‌چې د کمیس معنی ولري.دوست‌محمد کامل هم د کلیات خوشحال‌خان د ۶۲۴مخ په حاشیه کې‌دغه‌مطلب‌ته اشاره کړیده .

٥— دګلشن روه په ٢/ ٩١ مخ کي ښکلي دي :

روښنايي د چاد مخ وي کله خوښه

دانصاف په تو روسترګو لیچن خلق

دغه بیت دحمید د دیوان دبمبی چاپ په ٧٨ —دلاهور چاپ په ٧٥— دکابل چاپ په ٧٥—ددر و مرجان په ١٥ مخ کی کټ مټ ښکلی دی— مګر ماته لومړی نیم بیتي داسي ښه ښکاري:

روښنايي دچاد مخ خوښوي کله

٦— دګلشن روه په ٢/ ١٣٦ مخ کی ښکلی دی :

لوی راحت دی ستادجورګزندونه

لکه نیش هسي دي نوش لري خوندونه

دابیت دکاظم خان شیداد کابل چاپ دیوان په ١٩ مخ کي کټ مټ ښکلی دی. خود همیش خلیل دچاپ کړي دیوان په ٣٩ مخ کي وروستی نیم بیتي داسي راغلی دی :

لکه نیش هسي دنوش لري خوندونه

زما خیال دادی: په دغه نیم بیتي کی بايد نیش او نوش ګلمې یو دبل ځای تـه ولاړې سي او نیم بیتي په داسي وي:

لکه نوش هسي دي نیش لری خوندونه

ب- هغه تېروتنې چې د ناسم لوست (غلط قرائت) څخه منځ ته راغلي دي :

۳/۱ ۳ د سگ یوه لوره کالی نوسېده — دسگ یوه لوروه گگی (گاگی) نـ وسیده...

گگیانې له هغې پیدا شه — گگیانې له هغې پیدا شته

(چاپي تاریخ مـ.صع ۲۳۱ مخ

او کلید افغاني ۲۰۷ مخ)

۱۲/۱ ۱۸ چې ښځوئې سریوته په سرونیول — چې ښځوېې سریونه په سر وونیول

(چاپي تاریخ مرصع ۲۲۷ مخ — کلید افغانی ۲۲۱ مخ)

۱۷/۱ ۱۹ زین خان د کنر په لار... — زین خان د کونړ په لاري...

(چاپي تاریخ مرصع ۲۳۱ مخ)

۱۹/۱ ۱۱ اته‌صوه — نه‌سوه (۲۱۲)

۲۲/۱ ۲۲-۲۳ اته‌صوه — نه‌سوه

۲۳/۱ ۲ اته‌صوه — نه‌سوه

۲۰/۱ ۱۵ خوشنگه شراب — خوخیگه شراب (خوږیه شراب)

(د تاریخ مرصع ۲۳۳ مخ)

۲۲/۱ ۵ «بهره» ته لاړ — «بهیره» ته لاړ (بهېره په پنجاب کې د یوه ځای نوم دی)

(د تاریخ مرصع ۲۳۳ مخ)

۲۵/۱ ۳ په بله ته روان شه — په بله لاروکابل ته روان شه

(تاریخ مرصع ۲۳۶)

---

۲۱۲ کېدای شي چې دغه تېروتنه د تاریخ مرصع د اقتباس په څېنو نورو نسخو کې هم وي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۲۵/۱ | ۳ | اویه کس تترتروسړل | او یا کسه له تندي تري وسړل |
| | | | (دچاپي تاريخ سرصع-۲۳۶ مخ کی ترتندي دمخه بې آبی هم کښلې د ه) |
| ۲۵/۱ | ۱۵ | کابل ته په پښوناست دی | کا بل ته په خو ناست دی |
| | | | (کابل ته په خزه کي ناست دی) |
| | | | (تاريخ سرصع ۲۳۷) |
| ۳۶/۱ | ۱۳ | نه صواته اتیا | نه سوه نه اتیا |
| | | | (تاريخ سرصع ۲۳۸) |
| ۲۷/۱ | ۱ | خای سړ، شوسه کړه طیاره | خان سړ، شوسه کړه تیا ره (؟) |
| | | | (دتاريخ سرصع په ۲۳۸ مخ کی هم دغسی کښلي ده) |
| ۲۹/۱ | ۱۵ | چي له قوم اوغتراد قلی بیگ دقزلباشو وو | او اعتزاد قلی افشارچي له قوم دقز لباشو و |
| | | | (دتاريخ سرصع ۲۵۰ مخ) |
| ۲۹/۱ | | بل ستوره ... | بل سوره... |
| | | | (تاريخ سرصع ۲۵۰) |
| ۳۱/۱ | ۸ | داسماعیل زوپه وطن چي واغوزو | داسماعیل زوپه وطن (چي) واغ زو |
| | | سم يې نوي.... | سم يې بولي |
| | | | (تاريخ سرصع ۲۵۱ مخ) |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱/۳۱ | ۲۳ | چبوتره | خوتره |
| | | | (تاريخ سرصع ۱۳٦ |
| ۱/۳۸ | ۱۳-۱۳ | انو | انهو (تاريخ سر صع ۲۰٦ |
| ۱/۲۸ | ۱۵ | رجز | رجز (تاريخ سرصع ۲۰٦) |
| ۱/۳۸ | ۱٦ | چيني | ښيني (سيني) |
| ۱/٦٦ | ۳ | سره زر انعام | سر و رانعام (خطی فوائدالشرييعت) |
| ۱/۹۳ | ۹ | مردانست که نامش به نيکولي برند | مرد هآنست که نامش به نيکويي نبرند |

ج - هغه تېروتني چې له طباعتي بې پروايیو څخه په پيدا سوي وي :

| مخ | ليکه | ناسم | سم |
|---|---|---|---|
| ۱/۳ | ۳ | نيك تدبير شوی دی | نېك بد تېر شوي دي |
| ۱/۵ | ۲۲ | مو يش | مو يشي |
| ۱/۷ | ۷ | بيوه بل ته راغلل | په يوه بل ځای راغی (۲۳۳ چاپي تاريخ مرصع) |
| ۱/۱۲ | ۳ | مندر | مندړ (منډ ن) |
| ۱/۸ | ۸ | سازوار | ساده‌وار (د چاپي تاريخ مرصع په ۲۳۳ مخ کی ساده کښلی دی) |
| ۱/۷ | ۲ | بابر | با بر (ظهيرالدين) |
| ۱/۲۰ | ۲۳ | با بر | بابر (ظهير الدين) |
| ۱/۱۹ | ۷ | با بر | بابر (ظهير الد ين) |
| ۱/۱۲ | ۳ | دکاټ کلی په کلی | د کاټ ګلی په کلی (۲۳۷ چاپي تاريخ سر صع) |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۲۰/۱ | ۳ | بابا قرا | په چشمه د با با قرا ( ۲۳۳ تا ریخ مر صع ) اوس دغه ځای بابو قره بولي |
| ۲۵/۱ | ۲۳ | آب بهست | آب بهت (۲۳۸ تار یخ مرصع ) |
| ۲۷/۱ | ۹ | حیکم ابو الفتح | حکیم ابو الفتح |
| ۳۰/۱ | ۸ | معر که | مر که ( ۲۵۰ تا ر یخ مرصع ) |
| ۳۳/۱ | ۵ | شاد ماني | شادیاني ( ۲۵۲ تار یخ مرصع ) |
| ۳۳/۱ | ۳۳ | کر د یر | گر د بز ( ۲۵۳ تار یخ مرصع) |
| ۳۳/۱ | ۱۸ | ز د | زدو برد ( ۲۵۳ تار یخ مرصع ) |
| ۳۴/۱ | ٦ | موسم شه | ( د و ړ ي ) مو سم شه |
| ۳٦/۱ | ۳ | لاو بد ی | لا بد ي |
| ۳٦/۱ | ۱۳ | ما | ا ما |
| ۳٦/۱ | ۲۳ | عمرخلیل، احمدخلیل | عمر خېل ، احمد خېل (تا ریخ مر صع ۲۵۵) |
| ۳۷/۱ | ۱۰ | عیسی | عیسی خېل (۲۵۵تاریخ مرصع) |
| ۳۷/۱ | ۱۱ | تل دینو | تل دینو ن (۲۵٦تار یخ مرصع ) |
| ۳۹/۱ | ۱ | کښي | گو ښي |
| ۴۱/۱ | ۲ | الاچي | لاچي(۲٦۳تاریخ مر صع ) |
| ۴۱/۱ | ۹-۱۰ | ذیره چیره بوره‌چیره | توره څېره (۲٦۴تاریخ مرصع ) |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱/۱۳ | ۱۰ | پتیه خیل | پتیه خیل ( ۳۶۲ تاریخ مرصع ) |
| ۱/۱۳ | ۲۱ | دماغ آوان | دباغ آوان ( ۳۶۲ مخ |
| ۱/۳۳ | ۱۹ | غوا سو یشي | غواښي ( ۲۶۹ مخ ) |
| ۱/۳۳ | ۲۲ | اوم خان | آدم خان |
| ۱/۵۰ | ۱۸ | حیض | حیز ( هیز ) |
| ۱/۵۱ | ۱۵ | پر کړي | پر کړی |
| ۱/۵۲ | ۲۲ | تهیدل | تهٔ دل |
| ۱/۵۷ | ۲ | یادزهم | یاز دهم |
| ۱/۶۰ | ۱۸ | څپله | خپله |
| ۱/۶۰ | ۲۲ | احیا | احیا ( العلوم ) |
| ۶۷ // | ۱۹ | هنمبرد | هوسره |
| ۷۷ // | ۱۱ | تقوی | — |
| ۱/۸۳ | ۱۳ | قرمایی | فرسریی |
| ۱/۸۸ | ۶ | خنیاک | ښیاک |
| » | ۱۳ | باوخود | باوجود |
| ۱/۸۹ | ۲۰ | د آمد | در آمد |
| ۱/۹۱ | ۱۳ | د سند | د سنه |
| ۱/۹۳ | ۳ | تکک واهد | تکک واهه |
| ۹۳/ | ۱۲ | نصب | نسب |
| ۱/۹۷ | ۱۵ | یاغرق شدن گهری آوردن | یاغرق شدن یا گهری آوردن |
| ۱/۱۰۰ | ۱۱–۲۱ | دوه کاره | دري کاره |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱۰۱/۱ | ۲۲ | کله غشی به کارشی کله گزونه | کله غشي به کاربري کله گز و نه(۹۶۶ خو شال سرغلري) |
| ۱۰۲/۱ | ۱ | کنځلي | کو نځلي ( کنجد ) |
| ۱۰۳/۱ | ۲۳ | اگر کوهی شوی گاهی نه پرزی | اگر کوهی شوی کاهی نیرزي |
| ۱۰۷/۱ | ۱۲ | دشاه باز نظر د سیورپه خور نگئ | دشهباز نظرد سیور پهخونکي ( دخو شال خان سرغلري ۱۸۸ مخ ) |
| ۱۰۸/۱ | ۱۸ | باو رچي | باو رچي |
| ۱۱۲/۱ | ۱۷ | کمالی مهربانی | کمال مهر بانی |
| ۱۱۵/۱ | ۳ | نه یا قت | نیا فت |
| ۱۲۲/۱ | ۲۲ | بر پا یه | با یه |
| ۱۲۳/۱ | ۲۳ | سنگر پز | سپنگېر |
| ۱۲۳/۱ | ۵ | غزا | عزی ( عزا ) |
| ۱۲۳/۱ | ۶ | هما یو ن | ها مان |
| ۱۲۴/۱ | ۱ | تنبو ل | رنتبو ل ( ر نتهبو ر ) |
| ۱۲۴/۱ | ۳ | پو د ه شي | پو ر ه شي |
| ۱۲۹/۱ | ۱ | خط | نمط |
| ۱۲۹/۱ | ۱۵ | صفا | صفاهان ( اصفهان ) |
| ۱۳۰/۱ | ۱۱ | سیب | سیب ( سیب ) |
| ۱۲۳/۱ | ۲ | خداهي | خدایی |
| ۱۳۱/۱ | ۱۵ | دشواره | د و خاره (د با بو جان د نظمونو خطي نسخه ) |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱۳۶/۱ | ۲۱ | سر فه | صر فه |
| ۱۴۰-۱۳۹-۱۳۸/۱ | | علمان | عالمانو |
| ۱۴۳/۱ | ۳ | پیرو ن | بیرو ن |
| ۱۴۸-۱۴۵-۱۴۳/۱ | ۹ | انسیان | انیسانو(مخزن پېښورچاپ ۵۳ مخ) |
| ۱۴۸/۱ | ۱۷ | ښول | ښوول(دمخزن دپېښورچاپ په ۵۵ مخ او د ډهلي په ۱۰۰ مخ کی دغه کلمه « کښوایل » راغلېده ) |
| ۱۴۹/۱ | ۱۱ | شو رتو | سو رتو |
| ۱۵۵/۱ | ۱ | نظر کاند | نظر نظر کاندي( دچاپي گلدستې ۷۳ مخ ) |
| ۱۹۵/۱ | ۲۱ | حسد به پیدا کړ | حسد رخه پیدا کړه (۸۰ گلد سته) |
| ۱۶۰/۱ | ۱ | خو یشي | ښه ایشی(شه ایسی)(۸۱ گلد سته) |
| ۱۶۰/۱ | ۱۵ | او ګډ | او ړ د |
| ۱۶۰/۱ | ۱۹ | شتا | ستا |
| ۱۶۳/۱ | ۱۸ | ته وی ستا سهیم | نه وی ستا سهیم |
| ۱۶۷/۱ | ۱۰ | خو بد و | ښو بد و |
| ۱۶۹/۱ | ۲۳ | خو بد و | ښو بد و |
| ۱۷۱/۱ | ۱۱ | منصوب | منسوب |
| ۱۷۱/۱ | ۲۰ | کنگخړ سړه | کنگخړ سره |
| ۱۷۶/۱ | ۸ | اثره | اسر د |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱۷۹/۱ | ۸ | سشنوی | رباعی (۵۰۱ گلد ستة) |
| ۱۸۰/۱ | ۴ | د نورو وساته | دنورو ؤوساته |
| | | لهمانه هېرشي | لهمانهو پرشي |
| ۱۸۰/۱ | ۱۴ | ښکاره | ښکاره شوه |
| ۱۸۶/۱ | ۷ | وينو | ونيو |
| ۶/۲ | ۲۰ | پهخهحلوا | پخهحلوا |
| ۱۳/۲ | ۲۴ | کهتر سلو | کهلهسلو |
| ۱۴/۲ | ۱۳ | تېرتر‌سروماليم | تېرترسروماله |
| | | | (۱۵ رحمانبابا کابل چاپ ديوان) |
| ۱۵/۲ | ۱۹ | هس‌سپخم | هسی پېخمه |
| ۱۷/۲ | ۱۵ | څوکڅويني | څوکڅويني |
| ۱۷/۲ | ۲۲ | خرسور | خمسور(۵۶ رحمانبابا ديوان) |
| ۲۰/۲ | ۹ | غزاوهشي | غزاوشوه(۴۵ رحمانبابا ديوان) |
| » | ۱۱ | خښای شي | خښي‌شي » |
| » | ۱۲ | اروپدشي | اور پدی‌شي » |
| » | ۱۴ | د زرسوی شي | زرهپری‌سوی شي » |
| ۲۱/۲ | ۱۱ | زپيا | دپيا (۳۰ رحمان بابا ديوان) |
| ۲۲/۲ | ۲ | سړیهو بن | سړی‌توب (۵۰۱ د رحمان بابا ديوان ـ د رحمان گل چاپ) |

(په کابل چاپ ديوان کی هم دغسې دی
د پېښوربه نورود ريو چاپونو کی هم سړيتوب کښلی دی)

۲/۲۳ ۳ خونیانو خا نانو

۲/۳۰ کوټه کوټ (د رحمان بابا د دیوان د کابل چاپ په ۱۹۰
مخ کوټ کښلی دی)

۲/۳۳ ۲ چه عجب څه عجب

۲/۳۴ ۱ الاالا الالا

۲/۳۵ ۳ نرو تر و

۲/۳۵ ۲۴ تری سړی

(۱۱ مخ د خوشحال خان مرغلری؟)

۲/۳۶ ۱۹ ونه غوښته دنیا غوښته (۱۰۵ « »)

۲/۳۸ ۱۱ د سنبل د پانی د سنبلو پانی (۷۵ «« »)

۲/۳۹ ۳ د تیر تر نخښه و تیر ته نخښه

۲/۳۹ ۲۴ ښه هور ښه سور

۲/۴۰ ۲ نازیکی تا زی ګی

(۸۸ کلیات خوشحال ختک)

» ۵ مه کړی زده څه نور مه ګرزوه نور

(۱۰۶ خوشحال مرغلری- ۸۸ کلیات خوشحال خان— ۳۷۰-ارمغان)

۲/۴۳ ۱۰ تخته تخته یی

۲/۴۴ ۶ دښا دی او وی په زړو پړدی تل ترتله دښا دیه بوی پری زوړدی تل ترتله

چی په زړه یی ستادغم ښیښی شی سر چی په زړه یی ستادغم شیتی شی سر ی

(۱۱۷ خوشحال مرغلری ۹۹ کلیات خوشحال خان ۳۸۷ ارمغان )

۲/۴۶ په حیا په شجاعت و کړه شا باش په حیا په شجاعت یی و کړه ښاباش

(۱۷۸ خوشحال مرغلری ۳۴ کلیات خوشحال خان ۸۰۲— ارمغان)

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۲/۴۹ | ۲ | تربل | تر پله |
| ۲/۵۰ | ۱۳ | ګریابو | ګریابو |
| ۲/۵۳ | ۲ | جړن | ( خیرنه ۶۸ ۲ خوشحال سرغلری) |
| » | ۶ | زړګی | زړه ګی |
| » | ۱۶ | دهور | دوړ جولا |
| » | ۱۶ | زردوزو | زر بفته |
| ۲/۵ | ۱۳ | چی یی ځای زما سره ونیو په ګلو | چی یی ځای د پاسه ونیو د ګلو (۲۷۷ د خوشحال سرغلری) |
| ۲/۵۶ | ۱۷ | اویه | او یا (۷۰) |
| ۲/۵۷ | ۱ | دوهان | د وهه |

(۲۳۶ خوشحال سرغلری. . ۲ کلیات خوشحال خان

دارمغان په ۲۷۵ مخ کی دونهی کښلی ده )

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۲/۵۸ | ۲۱ | یک لحظه یک لخته( ۱۶۳ خوشحال سرغاری) | |
| ۲/۵۹ | ۸ | غبنم | (غم ۳۵۷ » ») |
| ۲/۶۰ | ۲۲ | جنبال ګل | جنبا ګل |
| ۲/۶۲ | ۳ | حی | هی |
| ۲/۶۶ | ۱۶ | طم | تم |
| ۲/۶۸-۸۶ | ۸-۱۲ | شنډی | شندی (۶۳۳ خوشحال سرغلری) |

۷۱/۲ ۳ گاه‌په‌گاه‌دگل گاه په کام دگل
» » (۹۳ ه خوشحال‌سرغلري)
۷۵/۲ ۳ که‌سي‌نازکا‌یارپه‌ویاردورووسترگو که‌سي‌نازسوي‌ي‌په‌ویاردوروسترگو
(۲ مخ دحمید دیوان بمبی چاپ
دحمید په نوروچاپي دیوانوکي‌ویار کلمه‌ویار کښلي ده)
» » دادعشق سي د عشق
» ۷ وکړه‌له‌زړه لري کړه‌له‌زړه‌نه لري
» ۸ محرمي محرم
» ۱۶ گیینه گیینی
۷۸/۲ ۲۰ که‌ښیښتن یي دخپل فضل په میزسپك کا که‌ښیښتن یي پخپل فضل
روسنغ نه کا
دانیم بیتي دحمید دبمبي چاپ دیوان په ۳۸ مخ کي هم دغسي کښلي دي)
دحمید د دیوان کابل چاپ . ۳۸ مخ ـ په ځینوخطي نسخوکي
د روسنغ پرځاي درنې کلمه کښلي ده .
۷۹/۲ ۱۵ نارازه ناراضه، ناخوښه
۸۰/۲ ۲۱ داوریځ له او بو ډېر کانی‌اور یږي
له‌اوریځ تراوبوډېر کاڼي وریږي
(دانیم بیتي دحمید دبمبي چاپ دیوان په ۱ ۲ مخ کي دغسي کښلي دي )
(د ر سرجان ۸۲ دحمید د کابل چاپ دیوان ۱۰۱ مخ )
۸۱/۲ ۲ د ستونه و ستونه
د( ۱ ۲ دحمید د بمبي چاپ دیوان ، خطي نسخه)
دحمید د کابل چاپ دیوان په ۱۰۱ دلاهورچاپ په ۳ ۲ اود ردمرجان په ۸۲ مخ کی
(دو ستونه پرځای ختونه کښلي دي)

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۸۱/۲ | ۲۲ | بل هوسي | بوالهوسي |
| ۸۲/۲ | ۱۷ | محبت لکه مېږزی دماتی ووزي — محبت لکه موږزی دماتی ووزي | (د«ووزي» کلمه دحمېدد کابل چاپ دیوان په ۵ دبمبي چاپ په ۹ ۲-دروسرجان ۷ ۲ مخ کې «وړی» کښلی دی) |
| ۸۲/۲ | ۱۸ | زنگوي هسې ماران | زنگوي هسې یاران |
| ۸۳/۲ | ۱۳ | خه غره یې دریا | خه‌غر د و ر یا (۳۲ دحمیددبمبي چاپ دیوان ۵۸ ۳۰ لاهور چاپ — ۱۲۶ درسرجان) |
| » | ۲۲ | په‌وله | پوله (۵۳ دحمید دبمبي چاپ دیوان) |
| ۸۴/۲ | ۱۳ | دسهر دوی ولاړ | دسهر خوی لاړ /۵۳ دحمید لاهور چاپ ۳۲ درسرجان) |
| » | ۱۴ | بتابو | بتانو |
| » | ۱۵ | چې‌مې نو که تر کوتې سوی په‌سوی لاړ | چې له‌تو که نرکو تې‌سې سوی په سوی‌لاړ |
| » | ۹۶ | روح ور کا | روح و کا |
| » | ۱۶ | همه‌دوی لاړ | هغه‌دوی لاړ |
| ۸۷/۲ | ۱۴ | کا ثیر | کا سیر |
| » | ۱۶ | دسرپټ ویړی | دسړی پېټی (۱۵ دحمیدبمبي چاپ دیوان ۵۸ دلاهور چاپ، سگرپه کابل چاپ اودرسر جان کې پېژوري سوی دی) |

۸۸/۲ ۲ آبو ادب دأب واد ب

۸۸/۲ ۲ در دونه دو دونه

۹۱/۲ ۱٦ وا ړ اندی و ړاندی

۹۱/۲ ۱۷ خوپه‌لعلوپسی‌سری‌لاس‌پمن‌خلق خه‌په‌لعلو پسي‌سوډي‌یمن‌خلق

(د یمن کلمه په‌درسرجا ن په‌۷۵ مخ کی هم یمن کښلی‌ده )

(د کابل چاپ‌حمیددیوان۷۵—

لاهور چاپ‌٦۸بمبی‌چا پ)

۹۲/۲ ۳ دعوي اوریښتینی کا دعوی دریښنینی کا

(دحمیدبمبی‌چاپ دیوان ٦۵

در ومرجان ۵۲ مخ دکاپل چاپ ۷۵ مخ

۹۲/۲ ۲۲ چی پرناحق بروس چی‌په‌نرناحقه بروس

گر زيږهو کښپو کښ گرزيږهو کښپو کښ(۷٦—د حمید

کابل چاپ‌دیوان‌در ومرجان۹ ۵

۹٦/۲ ۹ ړ نگښ زنگه

( ۷۸ دحمید دبمبي چاپ دیوان ۸۳ دحمید دلاهور

چاپ دیوان‌۱۰۱ کابل‌چاپ۹۷ درسرجان

۹۷/۲ ۲۰ کار چا ر

۹۷/۲ ۲۱ نه‌یرزن ددین ره‌زنه (۹۸ د حمید
دد یوان‌لاهورچاپ درسرجان۳۰ ۱مخ)

۹۸/۲ ۱۷ نه‌سومنده نه‌سونده

۹۸/۲ ۱۸ په‌خرپو خو صبر زهد بخترپوش دصبر زهد
(۹۸ دحمیدديوان بمبي‌چاپ)

۹۹/۲ ۱۰ په‌ښو بخښو
(د کابل چاپ دیوان په ۲۹ ـ اود ر وسرجان
۷۲مخ کی دبخښوپرځای خرخښوراغلی دی )
(۹۹ دحمید دبمبي چاپ دیو ان
۱۰۱ دلاهورچاپ)

۹۹/۲ ۳ کړی نه‌شم کړای‌نه‌شم

۹۹/۲ ۳ کچکول په لاس پا س و نیو کچکول پاس په‌راس ونیو
(۱۰۰ دحمیدبمبي چاپ‌دیوان ۱۰۳
لاهور چاپ ـ ددر وسرجان‌په۳۷ اود کابل
چاپ په‌۴۹مخ کی«کچکول پاس‌په‌لاس ونیو» کښلی دی)

۹۹/۲ ۱۸ دمخ سبز دمخ ښهر

۱۰۰/۲ ۱۰ دادسیني نتیجه دهچی ژاړېږی دادسینی‌نتیجه‌ده‌چی رارسی
( ۱۰۵ دحمید دد یوان
بمبی چاپ )

۱۰۱/۲ فضل و مهینه فصل و مهینه
(۱۱۰ دحمید دلاهورچاپ دیو ان) (۱۰۹ دحمید دبمبي‌چاپ ۱۲۱
د کابل چاپ دیوان ۱۰۵ د روسرجان)

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱۰۵/۲ | ۲۱ | وته نه‌شم | وتای نه شم |
| ۱۱۱/۲ | ۱۴ | په‌غیزه | په‌قیزه «کیزه» |
| ۱۱۲/۲ | ۸ | دغه باز | دغا باز |
| ۱۱۲/۱ | ۱۶ | دزړه له‌خوشه | دزړه له جوشه |
| ۱۱۴/۲ | ۲۳ | ویلی نه‌شم | وتلی نه شم |
| | | | ( ۱۰۳ دخواجه‌محمد بنګښ چاپی دیوان) |
| ۱۱۷/۲ | ۳ | دهان بسته وو | دهان پسته وو |
| ۱۲۲/۲ | ۲۰ | پد کثرت | په کثرت |
| ۱۲۵/۲ | ۴ | له‌ازله‌یې سورسور دی‌پلی‌پلی | له‌ازله‌یې‌سور سور کړپلی‌پلی(متل) |
| | | | ( ۲۲۳ دمرزاخان دپېښور چاپ دیوان) |
| | | | ( ۴۴ دمیرزاخان اورسړ دلاهور چاپ ) |
| ۱۲۵/۲ | ۲۲ | وړی نه‌شی | وړلای نه شو |
| ۱۲۷/۲ | ۱۶ | دوشریر کړبدل په کهتری کړی | داشریر کبربدل په کهتری کړه |
| | | | ( ۲۰۱ــ دمیرزاخان کابل چاپ دیوان ) |
| ۱۲۷/۲ | ۱۸ | چی‌په کهتری‌اقرارشوه کمچ | چی‌په‌خپله کهتری‌اقرارشوه کچه |
| ۱۳۸/۲ | ۸ | نوخطی | نو خطی |
| ۱۴۱/۲ | ۶ | خخو نظر کړم | خه‌خونظر کړم |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱۴۴/۲ | ۳ | خمنه‌ابرو | خمواېرو (۸۵ دشیدا کابل چاپ د یوان ۸۶ د همیش خلیل چاپ) |
| ۱۴۶/۲ | ۵ | نېزکه | ننځکه (ننزکه) ( دشیدا د کابل دیوان په ۸۰ ـ او د همیش خلیل دچاپ په ۸۱ مخ کی لنزکه راغلې ده .) |
| ۱۵۲/۲ | ۱۹ | سردمغل | سره مغل |
| ۱۵۸/۲ | ۸ | استمال | استملال (۳۸ د هجری د پېښورچاپ د یوان) |
| ۱۵۹/۲ | ۱۵ | په‌ځای | په ځان (د هجری دد یوان په ۷۸ مخ کی دغه کلمه جال کښلی ده) . |
| ۱۷۷/۲ | ۷ | حراب | خرب (۱۳۶ ـ یوسف‌زلیخا دلاهور چاپ) |
| ۱۸۹/۲ | ۲ | رید | بید ( ۱ مخ د عبدالقادرخان کندهار چاپ د یوان ـ ۱۳ مخ حدیقهٔ ختهك ـ ۹ د همیش خلیل چاپ) |
| ۱۹۰/۲ | ۹ | قهرغصه مه‌گنه | قهر غصه مه کوه |

د ــ ځینې کلمې په گلشن روه او ما خذونو کې څه تو پیرلري او دا ماته‌نه را معلومېږي چې کوم یو به یې غوره وي ، لکه :

| مخ | لیکنه | په گلشن روه کي | په ماء خذ کي |
|---|---|---|---|
| ۱/۹ | ۲۲ | خلو | جلو (چاپی تاریخ مرصع ۲۳۵ مخ) |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱/۱۱ | ۱۳ | غلی اسماعیل زی | علی اسماعیل زی (تاریخ مرصع ۲۳٦) |
| ۲/۳۳ | ۱۳ | داوړ یو خوارږي | واوره دخوارږي (۱۳۹ خوشحال سرغلري ۱۱۹ کلیات خوشحال خان ۳۹۰ ارمغان خوشحال) |
| ۲/۳۷ | ۲۳ | خو پهعلم | خهپهعلم (۱۸۱ خوشحال سرغلری) |
| ۲/۵۳ | ۱۵ | نور رخصت ور کړی<br>وخوړ په زړه خوږ ینی | نور رخصت ور کړی<br>خوږ (.) په زړه خوږ ینی (۲۳۹ خوشحال سرغلری ۲۱۳ کلیات خوشحال خان ۳۵۹— ارمغان خوشحال) |
| ۳/۵۸ | ۵ | رنددي د کي پيالی اخلي | زه به د کې پيا لې اخلم (۳۰۳ خوشحال سرغلری) |
| ۲/۵۹ | ۲۰ | وله داد کان ونغاره | دل داد کان و نغاره (۳۰۲ خوشحال سرغلری) |
| ۲/٦۸ | ۲ | خلق پرې خوار بوي خدايه<br>دایو خه جنجال دی | خاق پرې خوا ربوي<br>شهوت خه عظیم جنجال دی (۳۷۵ خوشحال سرغلري) |
| ۲/٦۸ | ۱۳ | دخپل قام له لاسه خوږ<br>خوشحال ختك دی | دخپل قام له لاسه وزکك<br>خوشحال ختك دی (٦۳۳ خوشحال سرغلری) |
| ۲/۷٦ | ۳ | پاتوشونې له هرچاده دادنیا | پاتې شوې له هرچاده دا دنیا (۳۲ دحمید د کابل چاپ دیوان) |

۲/۷۶ ۱۷ چې یې پیاسونده ښادي گوښه تنها چې یې پیاموند ه ښادی
(۹ د حمید د لاهور چاپ دیوان) گوښې تنها (۳۳ د حمید د کابل
چاپ دیوان ـ ۳ د رو سرجان )

۲/۷۶ ۲۱ چرته روغ وجوړ سړی چرته روغ رمټ سړی
( ۳۳ د حمید د کابل چاپ دیوان)
مه یې وینم، یمن څه کوم بې تا زه عقیق دیمن څه کوم بې تا
(۹ د حمید د بمبې چاپ دیوان)(۲۱۳ ) ( ۳۷ د حمید د کابل
چاپ د یوان ـ ۱ د لاهور چاپ ـ
۹ د روسرجان )

۲/۸۲ ۱۱ کهنوی کهوي
( ۲۹ د حمید بمبی چاپ دیوان ـ
۳۶ لاهور چاپ (......)

۲/۸۳ ۳ دم قدم د رهبر ژغوره دم قدم بې رهبر ژغوره(۱۰۶ ـ
(۱۳ د حمید بمبی چاپ د یوان) د حمید کابل چاپ د یوان
۹۳ د حمید لاهور چاپ د یوان ـ
د روسرجان ۸۸ مخ )
د حمید د مراد دور کې خبر ژغوره د حمید د مراد دی زړه
کې خبر ژغوره (۱۰۶/ د
حمید کابل چاپ دیوان د رسرجان ۸۱)

---

۲۱۳ ـ دغه نیم بیتی له لوسړی نیم بیتی سره ښه اړخ لگوی .

| | | |
|---|---|---|
| ۲/۸۹ | ۱۲ | خو چې درشې ای حمیده! خو درځي عبدالحمیده ! (۶۵ د حمید لاهور چاپ دېوان ـ د کابل چاپ ۱۳۳ د روسرجان ۱۳۱ د بمبۍ چاپ په ۵۸ مخ کې: « خو درشي عبدالحمیده») |
| ۲/۱۲۷ | ۱۳ | هچه — سچه ( ۶۱ د سېرزاد لاهور چاپ دېوان) تچه ( ۱۲۰ کابل چاپ ۳۵ پېښور چاپ ) |

«۷»

په ګلشن روه کې چې د کومو پښتو متنونو اقتباسات راغلي دي د هغو د لیکنې زماني زموږ له وخته څو سوه کاله وړاندې دي. له دغه امله نو د ګلشن روه ځینو لغتونو ته زماني غرابت ور پېښ دی او معنا وې یې ښه روښانه نه دي، د دغې ګرانۍ د آسانولو له پاره ما د ګلشن روه یو فرهنګوټی ولیکه، چې د دغه کتاب په پای کې چاپېږي په دغو فرهنګوټي کې تقریباً یوولس سوه لغتونه څېړل سوي دي، زما خیال دا دی چې دغه فرهنګوټی به د ګلشن روه د لغوي غوټو په خلاصون کې له درنو لوستونکو سره مرسته وکړي.

پوهاند عبدالشکور رشاد

۱۳۵۶/۴/۱۵

۱۹۴

# گلشنِ روه

## یوه مجموعه د گلو

## د نثر و نظم په ژبه د پښتو

تالیف د

راورتي صاحب بهادر کپتان د دریم پلټن د بمبئي ح

له فوجَ د ملیکهٔ زمان

۱۴

د سوسن ژبه حیرت کړه سرمه سایه
چه شیدا په دا بهار کښې سخن گوي شه

چهاپ شوي په مطبع کښې د ستیون آستین صاحب
په ښهر د هرتفرد سنه ۱۸۶۰ عیسوي

## دیباچه

زاړه کتابونه د پښتو په دي زمانه کښي ډیر کم یاب دي بلکه په مې
کښ د پښتنو هم چه ویونکي د دي ژبي دي سبب ئې دا دي چه
هغه وقتَ چه زهمنو د پاینده خان بارکزيِ لاس د تسلّط پر بادشاه خپ
موندلي وه زلزلي د فساد په دغه ملك کښِ پله پسي لویدلي دي ځک
محاورهِ او ریاضت د ژبي د پښتو په دغه وقت په نسبت و پخوانیو وق
نه کم شوي دي هم له دي سببَ که کوم کتاب له اتفاقً په لاس کښیوز
له ډیري غلطیا قابل د لوستو نه وي ولي چه کاتبان تول مکر ځني ځن
له دي ژبي بالکل نا واقف دي بلکه پښتانه هم نه دي ځکه چه پښتا
اکثر له خوش نویسيِ بیګانه دي نور کتاب دپارهِ د نقل و خوش نویس
د بل قوم ورکړَي نقل کوي

پرته له ځنو مشهورو کتابو چه په کتاب خانه کښِ د سرکار کمپني بهاد
په معمورهِ کښِ د لندن شته نور دباندِ تر افغانستان کتابونه د پښتو په لاس
راوړل نادر دي له دي جهته ؤ پوهیدم چه یو کتاب جمع شوي له متفرقو کتا
نه تصنیف شوي د هو هو مصنفانو په صحي عبارت او له ځو نورو ناد
کتابو ځحه چه په دي زمانه کښِ ډیر کم یاب دي چه په ګمان سره
زیات تر یوه دوي نسخي نه وي مطلوب او مقصود به ؤ شمیرهِ شي خصو
هغه وقت چه چهاپ شوي په حرفو سرهِ وي چه په صفائي او خوش نما

سیال نه په لیکلو او نه په چهاپ کښې لري او په قیمت سره چه کم دي تر مزدورۍ د کوم بد خط او نا واقف کاتب

مگر لوي مراد له تصنیف د دي کتاب آسانول د دې ژبې او باعثول د هوا خواهانو ئې وه تا چه په هدایت د دې کتاب باعث شوي په څو ورځو کښې ژبه د پښتو حاصله کړي له څو سببو چه په دیباچه کښې د پښتو لغت مې په تفصیل بیان شوي دي

له مدد د دي کتاب سره له دوو نورو یعني تعلیم نامه د قاعدو د پښتو ژبې او لغت چه ذکر ئې شوي دي چه درو سرو یو ځاي اجري موندلي ده اهل علم د نمر ختو فرنگستان توانیږي چه پخپل کور کښې واقفیت حاصل کړي په لانبو کښې د دریاب د یوي ژبې چه مرغلري آبداري او جواهر قیمت بها لري او بي مدد د ملاح او بي منت د ناخدا په کښتۍ د مطالعي د دي کتاب وښندوه ته د زده کړي د پښتو ژبې ځان ورسوي

پسندول او جمع کول له کتابو متفرقو څخه مشکل کار دي په نظر د انصاف په نسبت و مصنفانو ته مگر کوښښ مي وکړ دپاره د واضح کولو د نموني د عبارت او اصطلاح د هر یوه له مصنفانو له هر باب یا د نثر یا د نظم دپاره د دي چه په کار د شاگردانو په زده کړه کښې د ژبې د پښتو هم راشي

په دي کتاب کښې مي حصي له لسو کتابو د نظم او شپږو کتابو د نثر درجي کړي دي شروع شوي له زاړه ترین کتاب څخه چه په دي وقت کښې مونده کیږي یعني مخزن الاسرار د آخوند درویزه تصنیف شوي په بادشاهي کښې د اکبر بادشاه د مغلو ته کتاب پوري د ورستي.د شاعرانو چه لائق د

دیباچه

ـسین دي یعني در و مرجان د عبدالحمید ـ که آخر د شاعرانو دي مګر ق
ورو کم نه دي ـ چه په زمانه کښ د تیمور شاه ځوي د احمد شاه باني
دشاهئ د اودلو وه

دا واړه په نظرِ دقیق او فکرِ عمیق سره مقابله شوي دي له څو زړو نسخ
ـوړ چه دشهوري دي او له نورو کتابو سره چه په لاس مي اتفاقاً راغلي
چه که نوم ئي آرویده کیږي مګر په نظر نه راځي لکه تواریخِ مرصّع
ژبه د پښتو تصنیف د محمّد افضل خان ځوي د اشرف خان ځوي د ملل
خوشحال خان ختك او علم خانهٔ دانش چه محمّد افضل خان مذک
کلیله و دمنه تصنیف د ابو الفضل وزیر د اکبر بادشاه ترجمه کړه
دیوان د محمّد کاظم خان تخلص شیدا ځوي د محمّد افضل خان مذک
چه یکانه نسخه د دي وقت ده او چه خپلوانو ئي اګرچه نوم د دیو
آرویدلي وه مګر سترګي ئي په سیاهي د هغه نه وي روښانه کړي څو ما
ښکاره نه کړ

ترجمه د څو ښو غزلو په انګریزي چه اکثر په دي کتاب کښِ درج د
هم تیاره کړي مي ده او امید لرم چه په دي کال کښِ ګهنه د چها
واغندي

# فهرست

## نثر

١ تاريخ مرصع د محمد افضل خان ختك
٢ فوائد الشريعه د آخوند محمد قاسم
٣ كليله و دمنه يا علم خانهٔ دانش د محمد افضل خان ختك
٤ كتاب د بابو جان
٥ مخزن الاسرار د آخوند درويزه
٦ گلدسته د عبدالقادر خان ختك ترجمه د گلستان د سعدي

## نظم

١ ديوان د ملا عبدالرحمان
٢ ديوان د خوشحال خان ختك
٣ ديوان د ملا عبدالحميد
٤ ديوان د خواجه محمد
٥ ديوان د ميرزا خان انصاري
٦ ديوان د محمد كاظم خان شيدا
٧ ديوان د اشرف خان ختك
٨ يوسف و زليخا د عبدالقادر خان ترجمه د كتاب د جامي
٩ ديوان د عبدالقادر خان ختك
١٠ ديوان د احمد شاه ابدالي

200

# فهرست د غلطو

| نسخه | صفحه | سطر | غلط | صحیح | PAGE. |
|---|---|---|---|---|---|
| تاریخ مرصّع | ۳۵ | ۱۵ | په دا امینځ | په دا مینځ | 35 |
| فوائد الشریعه | ۷ | ۹ | حشم | حشم | 61 |
| | ۱۷ | ۶ | زره | ذره | 71 |
| کلیله و دمنه | ۵ | ۱۲ | باشاه | بادشاه | 85 |
| | ۲۲ | ۱۳ | کوئي | کوئِ | 102 |
| | ۳۳ | ۱۳ | د پاره | دپاره | 113 |
| بابو جان | ۹ | ۱ | زړه مینه د | د زړه مینه دِ | 125 |
| | ,, | ۲۴ | په وو له دِ به ویره | به وو له دِ په ویره | ,, |
| | ۱۶ | ۹ | مصلحتي ده | مصلحتي د ده | 132 |
| مخزن پښتو | ۵ | ۲۰ | مذهب د حلولي | مذهب د الهامیه | 137 |
| گل دسته | ۵ | ۲۰ | زنهر | زنهار | 155 |
| | ۱۶ | ۱۶ | په نگهباني ملک | په نگهباني د ملک | 166 |
| | ۱۹ | ۲۱ | بي نکَ | بي رنگَ | 169 |
| | ۳۱ | ۲۲ | زیروزبر | زیر و زبر | 181 |

## تاریخ مرصّع

دفتر پنځم په بیان د غري و خشي کرلانړي راتلل له قندهار د کابل و صوبي ته او دا ملك د پېښاور و غیره نیول په دا وخت چه څه واقعات د نیك تدبیر شوي دي او بعضي تواریخ د خپل اُلس احوال او د خانانو د هغو او خپل سرگذشت بیانول

نقل دي چه آخوند درویزه په خپل کتاب کښي چه تذکرة الابرار باله شي لیکلي دي چه شیربون نومیده د قندهار په لوري پښتون وه د ده دوه زوي وو یو کند یو زمند نومیده له کنده نه دوه زوي پیدا شول یو خشي دویم غري د غري څلور زوي وو یو دولت یار چه مهمند او داودزي د ده له نسل دي دویم خلیل دریم زیران څلورم جمکني وائي چه څلورو وارو ورونو یو مړ حلال کړي وه پوخ کړي وه یو تر بله ئي وویشه دا یو ورور چه جمکني نومیده دا ئي د ښوروا له ویشه هېر کړ ښوروا ئي د ده بخره ور نه کړه دي آزرده شه د دري وارو ورونو له مېنځه جدا شه تر اوس پوري څني جدا دي متفرق په هر ځاي میشت دي زیراني هم له ورونو جدا شوي دي د ننگهار په تاجیک ماجیک کښي میشت دي اکثر خلق چه تر خبر نه دي ور ته وائي چه تاجیک دي اما دوي ښه خلق دي د خشي دري زوي وو یو مندي دویم مك دریم ترك وائي چه د خشي آرتینه وه مرجانه نومیده چه مندي او مك د دي د نسه دي او د مرجانې خور وه بسو نومیده بي دیانته وه هغه

هم د خشي کړه ننه وته لکه د پښتنو دستور دي ور پسي متيزه شوه په هغه آوان چه دين داري په کښي کمه وه له هغي نه ترک پيدا شه ترک لانړي د هغي اولاد دي تر اوسه پوري په دوي کښي متيزي ډيري کيږي اما نور ديندارې خو اوس لږي د مکځ يوه لور وه کالي نوميده خپل شپانه ته ئي واده کړه بزرکي يا زيرکي نوميده ګکياني له هغي پيدا شه د مکځ نور اولاد ؤ نه شه ګکياني ئي بولي او د مند دوه زوي وؤ يو عمر يو يوسف دا عمر ډير مرد با ديانت وه ښهرونو ته لاړ يوه ښځه ئي د هغي زماني د ساداتو په نکاح کړه يو زوي ځني پيدا شه مندړ نوميده دي هم په هغه ملک کښي وفات شه پس له يوه مدت يوسف د ده ورور په طلب د ده د اهل و عيال ؤ رغي چه را ئي ولي اما هغي ارتيني د ده سره تلل قبول نه کړه ور ته ئي و چه ستاسي رسم دي چه د ورور ارتينه او مال چه له وروره پاتو شي په زور ئي غصب کوئي د ما رضا ده چه په يوه نکاح باند بل نکاح په ما ثابت نه شي لکه په حديث کښي راغلي دي چه هره ښځه چه په اول نکاح باند اکتفا ؤکا ثابته پاتو شي فرداي قيامت به د نورو ښځو شفاعت کا اما ډير عهد سوګند ئي ور سره ؤ کړ را روانه ئي کړه او د يوسف ښځه زوي وؤ يو په کښي اريا نوميده از بس چه ډير متکبر او مغرور وه بادي به ئي بالله اوس ئي هم اولاد ته بادي خيل وائي دويم عيسي دريم موسي چه د الياس پلار وه څلورم ملي پنځم اکو نقل دي چه په هغه آوان په پښتنو کښي دا رسم هم وه چه زامن به ئي په حد د بلاغت ؤ رسيدل د پلار د مور مال به ئي يو تر بله قسمت کړ و پلار مور ته به ئي هم برخه برابره ور کړه القصه د يوسف زامنو چه مال سره ويشه مور ئي ور ته ؤ ويل چه د ما برخه هم بيله کانړئي هغه نور ورونړه ئي لا خاموش وؤ هغه بادي کم بخت و اندام نهايي ته اشارت ؤ کړ چه دا واخله مور ئي ور ته بدعا ؤ کړه چه ستا لولاد تر ديارلسو کسو زيات به شه تر اوسه پوري اولاد تر ديارلسو کسو نه

زیاتیږي یو څوکس په چغرزیو کښې شته دي د الیاس څلور زوي وو اول نسو بیا تاجي پلار د ګدائي دریم سالار څلورم مي ښځه د عایشي چه اوس ئي عاشي‌زي بولي د اکو شپږ زوي وو څلور له یوي ارتیني وو چه ګوهره نومیده اول خواجو دویم بازید دریم ابا څلورم شاوك او دوه ئي له بلي ارتیني وو اول حلیم دویم اتمان د مولي څلور زوي وو دوه د یوي ارتیني چه وتۍ نومیده اول دولت دویم چغر دوه ئي له بلي ارتیني وو چه نورۍ نومیده یو ابا دویم ایسوري او د عیسي یوولس زوي وو یوه ورځ د آسونو ګله د مندر مغلو په تاراج بوته عیسي له نو زویو سره پسي سوور شه تراولس وراند پسي وُ رغي واړه د مغلو د لاسه شهید شول مسله ده چه په خپل مال پسي وُ مري شهید شي له هغو جمله‌وُ دوه زوي د ده پاتو شول یو حسن دویم یعقوب چه عیسي مړ ارتینه ئي حامله پاتو وه زوي وُ شه نوم ئي اکا کښې یښ د مندر څلور زوي وو اول مامو دویم خدر دریم رجړ څلورم مندو القصه پښتنو ملك د قندهار یو تر بله قسمت کړي وه حصه د ترینو په منځ کښې د کند او د زمند واقع شوي وه یو تر بله د دواړو ورونو حمایت نه رسیده په استوګه خشي تر غري و ترین ته نژدي وه چه بحره ئي د ارغسان واله وه او هغه واله نژدي و ترینو ته وه د ترین او د خشي تر مینځ عداوت پیدا شه ترین پر غالب شه بعضي خشي ئي مړه کړه بعضي ئي بي ځایه کړه هیڅ زمند او غري په حمایت د دوي وُ نه رسیده آخر رجوع ئي و غري ته وُ کړه یوه زمکه ئي ور کړه چه نابوده وه بود ئي هیڅ نه وه وائي چه د قندهار په زمکه چه وخت د بهار شي بارانونه ووري انواع سبزه زار او علف زار پر باند وُ شي چه ګرمي د اهاړ پر ښکاره شي هغه سابه وابه په زمکه وُ رژیږي ته کال پوري هغه ګیا په زمکه ریژیدلي مال مویش خوري ساعت پر تیره وي او که په دا میان کښې د پشکال باران پرو شي هغه ګیا واړه سیلاب یوسي و مال مویشي ته ئي سختي پیښه شي قضا هغه کال باران د پشکال وُ شه د غري مال ته سختي پیښه

شود هغه زمکه چه ئې و خشي ور کړي وه په زور په جنګ په جدل ئې له خشي را نیوه خشي له هغه ځایه بې ځایه شه بیوه بل ته راغلل اتمان خیل د تک د ګومل د لوریه د خشي سره یو ځاي راغي او همیشه به د خشي سره په حمایت په مدد مل وه تر اوس پوري او مهمندزي له زمندو نه دي په سبب له خپلو ورونو آزرده شه له خشي سره روان شه تر اوسه پوري روزګار ئې د خشي سره دي اما خشي د ده سره نیکي نه کا

راتلل د خشي و پېښاور ته له کابل په حادثات

نقل دي چه ځو کال خشي په فراغت په کابل تیر کړه دولت مند شول مال ئې ډیر شه اولاد ئې ډیر شه دا دستور دي چه په ښه ملك دولت حاصلیږي وائي چه په هغه آوان کابل د میرزا الغ بیګ په تصرف کښې وه چه دِ میرزا امیر تیمور له اولادَ وه په سن اته سو یوولس شاه رخ سلطان چه د امیر تیمور زوي وه په هرات کښې د خراسان بادشاهي کوله میرزا خلیل نمسي د امیر تیمور په ځاي د میران شاه چه زوي د امیر تیمور وه په سمرقند کښې د ماورالنهر بادشاهي کوله د خپلو امرایانو دِ لاسه په سمرقند کښې په قید شه هر کاد چه شاه رخ سلطان په هرات کښې دا واوریده لښکر ئې وُ کړ په سمرقند داخل شه میرزا خلیل چه د امرایانو دِ لاسه په قلعه شاه رخیه کښې په قید وه له سختئي دا غزل شاه رخ سلطان ته وُ کویښ چه سر ئې دا دي "یا واهِبُ الْعَطِیهٌ یَا مُقضِيُ الْمُرادَ - ما طاقت فراق نه داریم زین زیاد" شاه رخ سلطان چه د دهٔ تره وه له حبس ئې خلاص کړ ور سره ئې هرات ته بوت ډیره مهرباني پر وُ کړه او سلطنت او حکومت ئې د تخت سمرقند په خلف الصدق د امیرزادد الغ بیګ وُ سپاره روان شه چه په جیحون پوري ووت خدا داد جسته بردي بیګ چه میرزا خلیل ئې په قید کړي وه له سمرقند فراري شول شاه رخ سلطان میرزا چه سمرقند د دهٔ په تصرف کښې کړي وه آخوند درویزه نوم

د هغه شاه زاده علي قلي کښلي دي شايد زوي د ميرزا الغ دي دا مقدمه پښوا د بابر بادشاه د راتلو له ولايت فرغانه نه وه چه بابر بادشاه کابل له ذوالنون ارغون له زويه چه مقيم ارغون نوميده واخست او په خپل تصرف ئي راوړ پښتانه دا ملك د پيښاور وارہ نيولي وه ځاي په ځاي پري ميشت وه هرکله چه درست خشي و کابل ته راغي يو مدت ئي په کابل تير شه مال مويشي دولت فراغت ئي روزي شه او په دولت په فراغت سره اولاد ډيريږي خصوصاً يوسفـزي او مندر ډير شه فساد ئي آغاز کړ د کابل عالم به ئي ډير ډير آزاراوه مالونه به ئي را نيول نامناسب کارونه به ئي کول نور پښتانه به ئي په نظر کښي نه راوړل او له شاه زاده مرزا علي قلي بيګ به ئي ويره نه کړه هيڅ حجاب به ئي ځني نه کاوه بلکه د ده سړي به ئي هم آزاره‌ول د ده په ديوان خانه کښي به کښيناستيدل نالايقي خبري به ئي کړي از راه ضرورئي مرزا په دا پله را ووست چه د دوي سره جنګ و جدل او دښمني وُ کا يو څو ئي ځني مړه کړل بعضي ئي ځني تاخت کړه القصه چه پښتانه فرار شول د کابل د غرونو به درو ننوتل په هغه آوان د پښتنو دري شيخان نامدار وُ دوه ورونه وُ يو مداد دويم مدد دا دواړه د عيسي‌زي د قبيله نه وُ بل شيخ عثمان مولي‌زي وه دا درست اُلس مداد او مدد ته تول شه چه تاسي موږ له علم غيب خبر کانړئي چه د اُلس به څه حال شي او تاسو له دي واقعي چه تيرہ شوہ ولي موږ خبر نه کړوُ چه فکر او سرانجام مه د خپل کار کړي وي چه موږ ته دا هونبرہ زيان پيښ مه وي دوي دواړو ور ته وُ ويل چه اول تاسو شيخ عثمان مولي‌زي مړ کانړئي پس له هغه به موږ جواب وُ کړوُ چه هميشه ئي له اُلس انعام او اکرام مونده ولي اُلس ئي له دي واقعي نه خبراوہ يا دا اُلس نذر نياز ده ته ور وانئي يا موږ ته آخر د شيخ عثمان په مرګ خبر شول شيخ عثمان ور ته وُ وي چه پښوا هم له دي واقعي آګاه وم اما لاس مي د خداي په کړه نه رسيده اوس

نه دي به هم تاسو خبر کړم که ما نه وژنئ چه له مرګ ئې خلاصي بیاموندده ور ته ئې وُ ویل چه ستاسو به له میرزا سره عظیم جنګ وُ شي اما فتح به ستاسو وي مداد او مدد هم دا رنګ ور ته وُ وي اما د پیادهوو سردار دِ له موږه نه یو وي پس د جنګ په ورځ د پیادهوو سردار هم له دوي وه هم هغه هسي وُ شول پس له هغه به پښتانه له هغه غره راتلل رعایا به ئې تاخت تاراج کول مرزا بله چاره بي له صلح وُ نه لیده سري ئې تر میان کړه را وُ ئې بلل ...مونه او سرو پایونه ئې ور کړه ور ته ئې وُ ویل چه د ما کور هم ستاسو خپل دي پښتانه چه په عقل کښي سازوار دي ښکه ډیر نفساني دي په لږ سود مقصود ډیر بهبود تر شا کوي ورځ په ورځ به کدخدایانو د الس مرزا ته آمد و رفت کاوه یوه ورځ اته صو کس وُ رغلل همګي بي وصلي یو محمود د محمد چغرزي زوي یوه چړوکۍ په خپل ازار کښي وړي وه چه ور ننوتل د میرزا بد نیتي ئې وُ لیده هغه دي نورو و ته وُ وي چه که وائئ زه به مرزا مړ کړم هغو نورو منع کړ چه حق نمك ساتلي بویه شاید د موږ سره بد نه کا دا چغلي جنګا ګګیاني کړي وه چه دا هونبرد ډیر به یو ځای بیا نه مومي او له دوي نه به په نیکي خلاص نه شي دا وخت غنیمت وُ ګڼه او وارِد قتل کړه واړه ئې وُ تړل یو یو ئې وژي په هغه وخت د دوي دِ لویو ملکانو سلطان شاه ود د مرزا په خدمت ئې عرض وُ کړ چه دود التماس آرزو لرم که قبول شي مرزا وُ وي چه قبول دي اول ئې دا وُ وي چه وراره ځما ملك احمد له دي قید خلاص شي بادشاد ئې خون معاف کا بل دِ د الس بند د اطفال وُ نه شي بلك پریږدي هر لور ته چه دروِمي مرزا قبول کړه مرزا ور ته وُ وي چه ځما ګمان دا وه چه ته به خپل سر غواړي یا به صل دود صو کس ځوانان نور غواړي دد ور ته وُ وي چه تر دي واړو اول زد ښه یم او چه دا هونبرد عزیزان مي مري زه به خپل سر په ځو خلاصوم لکه ګمان په ملك احمد باند ود هسي کارونه د دد د لاسه وُ شول القصه پس له هغه باقي

مانده اُلس د يوسفزيو به معهٔ توابع و لواحق و ننګهار ته راغي تپه د ترک لانئ په لمغان کښي متوطنه شوه يو مدت په دا تير شه د يوسفزيو د محمدزيو تر ميانځ عداوت پيدا شه په موضع حصارک ئې يو تر بله عظيم جنګ وُکړ آخر الامر فتح د يوسفزيو شوه آخر پس له يوه مدتٰ يوسفزي له ننګهارٰ کوچ وُکړ ننګهار ئې و محمدزيو ته پرېښ او تپه د ګګياني په باسول کښي پاتو شوه يوسفزي بعضي عالم وائي چه باجوړ لرهٔ راغلل يو حد دوي د باجوړ وُ نيو لږ دير جنګ ئې د باجوړ د عالم سره وُ کړ يا ئې باجوړ خوښ نه شه يا ئې توان نه ليده څني وُ جاروتل ملکان ئې راغلل د دلازاکو سره ئې په سفيد سنګ جرګه وُ کړه زمکه ئې څني وُ غوښته دلازاکو زمکه ور کړه پس له يوه مدتٰ د يوسفزيو د دلازاکو سره عداوت وُ شه لکه پخوا ئې بيان شوي دي اما په قول د آخوند درويزه يو شان روايت دا دي چه له دلازاکو سره ئې جنګ وُ کړ دير يوسفزي وُ مړل له هغه نه د يوسفزيو اُلس د تحترو او د شلمانيو په غرهٔ راغلل له هغه نه ئې د دلازاکو سره صلح وُ کړه په حدود د پېښاور ننوتل دلازاکو د دوي سره دير لطف او احسان وُ کړ بعضي عالم وائي چه د خيبر په لارِ پېښاور ته را ننوتل جوي بربري له شلمانيو وُ غوښت شلمانيو د دلازاکو په قوت منع کړه چه د دلازاکو الفت او برادري د شلمانيو سره وه پخوا ئې پېښاور نيولي وه لکه ذکر ئې شوي دي بيا د شلمانيو او اُلس د يوسفزيو سره عداوت وُ شه سره ئې جنګ وُ کړ فتح يوسفزيو وُ کړه کوچ ئې وُ کړ دوآبي ته راغي له دلازاکو نه جدا شه بعضي دلازاکو د يوسفزيو سره عداوت واخست په هغه سبب طاقت ئې د پېښاور د استوګي نه وه پس د يوه مدتٰ ئې د اشنغر د شلمانيو سرهِ عداوت وُ شه سره ئې جنګ وُ کړ فتح يوسفزيو بيامونده خلو نام شلماني چه سردار د شلمانيو وه هغه ئې مړ کړ باقي الس ئې له اشنغره وُ شاړه و سواد ته لاړل د سواد سلطان دوي لرهٔ ځاي ورکړ په الله ډند باند ئې واچول نقل دي له

آخوند درویزه چه له یوه چغرزي نه ئې نقل کړي دي چه د خلو شلماني په مرګ زه حاضر وم چه سر ئې د ده پر کړ هونبره ډیره بوره ئې ښبلي وه چه د مري تر وینو نه ئې بوره ډیره را تویه شوه "نَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ ذَالِكَ" یو مدت الس د یوسفزیو په اشنغر کښي متوطن شه

## راتلل د غوریه خیل له قندهاره

نقل کا چه په یوه سبب یا د هزاره وو له میرخئ تنګ شول یا د مغل له بدئ د قندهار له ملك متفرقه تپه تپه را رواني وي په کابل په ننګهار ئې مکان و نیوه چه جمعیت ئې و شه خانه کوچ پېښاور لره راغله په پېښاور باند دلازاك وه مناقشه ئې سره و شوه د سلطان پوري په کلي چه اوس ئې هم عالم د جنګ وري بولي جنګ سره و کړ دلازاکو شکست بیاموند څه په تیغ مړه شه بعضي ډیر عالم د هزار خاني نالي غرق کړ چه تیزندي کنده ئې بولي د جنګ په وخت یو پرچه د اورو را ښکاره شوه باران په سر حد د نالي ود شه ناله راغله او کنه خپل قوت د اوبو د هغي نالي نشته هسي نقل کا چه نغه زمان باران په هیڅ ځاي نه وه مګر په سر حد د هغي نالي سُبْحَانَ اللّٰهِ

بیت

چو در لشکر دشمن آري رحیل  به مرغان کشي فیل اصحاب فیل

فتح له جانب د ده وه مدد له طرف د ده ویلي دي حق تعالي "وَ مَارَمَیْتَ اِذْ رَمَیْتَ وَ لٰکِنَّ اللّٰهَ رَمیٰ" دلازاك له پېښاوره بي پایه شه بیا د یوسفزیو تر سیند پور شه په لنګر کوټ په سمه په کلپاني ئې واړول یو مدت په دا تیر نه بیا د یوسفزیو د دلازاکو سره میرخي شوه یوسفزي په درست خشي و زیدد ور سره ئې مل کړ د دلازاکو سره ډیر جنګونه و شول له کلپاني ئې لازاك بي پایه کړ نقل دي له آخوند درویزه چه دلازاك په هغه آوان په یره د لنګر کوټ استوګه وه د یوسفزیو په اشنغر وه او په دا سبب چه

ذلازاکو د لنګر کوټ ګرد نواحي میرۀ نیولي وه چه به د یوسفزیو مال مویشي و میږي ته په چرا ګاه ؤ رغي تاخت و تاراج به ئي کړ که څوك به ئي په سود په سودا ؤ رغي هم به ئي آزاره‌وه همیشه به د دلازاکو دِ لاسه په تنګ وه ملك احمد مصلحت ؤکړ چه بویه رجوع و خشي ته ؤکړوُ اګرچه که د مهمندزیو سرۀ یو تر بله ئي وژلي ووُ اما چه دا ننواتي ؤ رغلل شرط ئي د برادرۍ د ملکیرۍ ور سرۀ په ځاي راوړ اما ګکیانیو ؤ ویل چه ملك د دوآبي څما مهمندزیو ؤ ویل چه ملك د اشنغر څما یو ترکلاني ور سرۀ ملکیري ؤ نه کړه ولي اتمان خیل ور سرۀ ووُ دلازاك سرۀ په دا جنګونو ښه تردد ؤکړ وائي چه اتمان خیلو د غواؤ میښو څرمني سازي کړي وي د جنګ په وخت به ئي په مخ کښي وړي چه غشیو به پرِ کار نه کاوه تمام خشي د کډو سرۀ را ؤ لیښ د ګدر په رود ئي واړول بله ورځ دلازاك د لنګر کوټ له لورِ په قصد د جنګ را ؤ وتل جنګ ئي سرۀ یو تر بله ؤکړ د دلازاکو د لوریه به ډیر د غشیو ګذارونَ کیدل ډیر خشي ؤ مړ آخر په جنګ د تورو سرۀ ؤ رغلل اول څوك چه د ګدر په رود پورِ شه زوي د زنګي دلازاك مړ کړ بشیر زوي د غلي اسمعیل‌زي وه پس د هغه د یوسفزیو قصد د سوات د آخستو ؤ شه پس د یوه مدتَ ملك احمد او شیخ ملي مصلحت دا ؤ کړ چه د سوات په لورِخانه کوچ کوچ کړي یوبه واړو په اتفاق سرۀ کوچ ؤ کړ د شاه کوټ د غاښي په خوا کښي واړول یو څو ورځي هغه ځاي تیرِ کړي سواتیو به شب و روز د هغه غاښي چوکۍ درله او له نورو غافل شول یوه شپه یوسفزیو سرۀ مصلحت ؤ کړ ښځو ته ئي ؤ ویل چه سندري آغازي کړۍ او په سندرو کښي به ئي د خپلو مردانو صفت کاوه او د سواتیو به ئي ذم کاوه په دا مضمون چه سواتیو خبردار شئ صبا به در سرۀ جنګ وي سواتي ؤ پوهیدل چه صبا به دوي هم په دا غاښي جنګ راوړي اما بقیه لښکر چه ئي څه وه هغه ئي هم و شاه کوټ غاښي ته جمع کړ یوسفزیو په شپه یلغر ؤ کړ د ملاکند په غاښي و

سوات ته واوښتل هره ورځ به ئې په سوات کښې جنګ کاوه په منځ کښې ملك به ئې لاند کاوه تلل تمام په دولس کال کښې درست سوات ؤ نيو د تالاش د باجوړ په جنګ و جدل مشغول شول تر هغه ملك ئې هم ؤ نيو نقل دي چه د تالاش په جنګ د کاټ کلي په کلي برمزيد نوميده مندر وه آس په دښمن ؤ زغلاوه دولس نيم ګزد ئې تر کنده توپ ؤ کړ دښمن ئې په نيزه ؤ واهه مړ ئې کړ پس له هغه ښه ملکونه د يوسفزيو په لاس کښيوتل په فراغت په آرام ئې ساعت په کښې تيراوه اګرچه عالمان په کښې کم وؤ په هر حال په متابعت نبوي کښې ګذران کاوه دوي هم الله تعالي ښه ساتل او بل ملکان سرداران د دوي د بادشاهانو د ديوان خاني منع نه وؤ آمد و رفت به ئې کاوه لکه ملك احمد به اکثر له سوات و کابل ته ؤ رغي هره خدمت ګاري به ئې د بادشاه په خاي راوړه تر هغه پوري چه نوبت د خانئي په خان کجو راغي بيا د يوسفزيو د غوريه خيلو سره په شيخ پتور باند عظيم جنګ واقع شه نقل دي چه دولس زره سواره د غوريه خيلو په هغه آوان کښې وؤ تير صو سواره ابلق سوار يو د خليلو په تپه کښې وؤ په دا جنګ کښې اکثر پريوتل نقل دي له آخوند درويزه چه د يوه سواره د آس په زير بند باند په هغه جنګ کښې دوه لس غشيه لك وؤ د خليلو تپه په غوريه خيلو کښې له هغه ورځي کم قوت پاتو شوه وائي چه اکثر ؤ مړل او بعضي کورونه هسي خالي شول چه ښځو ئې مړيو ته په سر ؤ نيول يو نيم څه څوك د غوريه خيلو ژوندي د يوسفزيو په لاس کښيووت يوسفزيو د نامه د پاره په برڅولي خرڅ کړ پس له هغه غرور او نخوت د يوسفزيو دير شه دينونه مذهبونه مخالف په کښې پيدا شول څوك د ملنګانو سره عيسي ئې شول څوك په مذهب د پير روښان شول چه پير تاريك ئې بولي

ر مشتمل په احوال د پير روښان او د ده د اولاد چه په دا ملك د كابل د
صوبي څه نيك و بد د ده او د ده د اولاد په سبب واقع شوي دي

نقل دي د آخوند درويزه نه چه په مخزن كښي كښلي دي چه عبدالله
ښيده اورمړ وه د كانړي كرم په اورمړو كښي علم او صلاحيت ئ ډير وه او له
لادَ د صالحانو وه زوي ئ پيدا شه نوم ئ بازيد كښي يښ په علم ئ كښيناوه
صيل ئ وُكړ او په طاعت په عبادت ئ جد و جهد وُ كړ اما پس له هغه
چه څه نقد په لاس راغلل سمرقند ته په سوداګري د آسونو روان شه دوه
سونه ئ واخستل هندوستان ته روان شه په موضع د كلنجر وُ رغي هور ته
اتفاق د صحبت د ملا سليمان سره پيښ شه له هغه نه ئ علم تناسخ
رويده عقيده ئ تناسخي شوه چه بازيد له كلنجره را روان شه وكانړي كرم
ه راغي فساد ئ آغاز كړ اما پلار د ده چه عبدالله وه ډير ديندار با ديانت
ه بازيد ئ په سبب د فساد په چړي وُ واهه زخمي ئ كړ نور بازيد له هغه
ايه و ننګهار ته راغي په مهمندو كښي د ملك سلطان احمد كره ئ مسكن
نيو يو مدت ئ هور ته تير كړ اما ننګهاري تابع د عالمانو وُ اطاعت او
روي ئ د ده قبوله نه كړه له هغه ځايه بازيد را روان شه پښاور ته راغي
ه غوريه خيلُ كښي قرار وُ نيو هركاه چه په پښتنو كښي په هغه وخت علم
م وه اكثر تابع د ده شول او ده خپل شهرت په پيري او په پيشوائي كړي
ه او عوام الناس ته به ئ وي چه بي پيره كاملَ و خداي ته لار نشته راځئ
ه پير كامل يم چه هدايت او رهنمائي در ته وُكړم پښتانه ئ په سبب د كم
لمئ په دا فريفته كړه په دا خبر نه وُ چه په تفسير بيضاوي و غيره كښي
ب راوړي دي چه لويه وسيله و خداي ته قرآن كره په دا خبر نه وُ چه د
عرفت اختيارول او طاعت او عبادت او ترك د عصيان او د ګناه بي له
ستقامت د شريعت غرا او ملت بيضا و خداي ته لار نشته

۲۱۶

بیت

محال ست سعدي که راه صفا توان رفت جز در پي مصطفی

القصه څو رسالي ده په هغه وخت تصنيف کړي وي آيت او احاديث دواړه ئي خپل سندونه کړي وو اما په هغه وخت علما نه وو چه د ده سره ئي مباحثۀ علمي کړي وي چه آيت او حديث په موقع دي يا غير موقع هرچه ده ويل مريدانو ئي هغه کړل آخرالامر تپه د خليلُ ډير د ده مريدان شول بيا مهمندزي د اشنغر وُ رغلل دي ئي و اشنغر ته را وُ وست هرچه په پښتانه کښي جاهل تر هغه د ده معتقد تر د اشنغر په کله ډير کښي ځاي ورکړ په هر لوري د هغه وخت و علماو ته ئي جواب واستاوه چه راځئ زه پير کامل يم تاسو به په مراتب اعلي رسوم ځان ئي په پير روښان ملقب کړ شايد په هغه وخت آخوند درويزه چه په هغه وخت لوي ملا هم دي وه راغي مباحثه ئي ور سره وُ کړه اما په هغه وخت غلبه د حکامُ هم په دا ملك نه وه معامله ئي سره فيصل نه شوه دا دستور دي چه په هغه ملك کښي د حاکم زور نه وي هيڅ معامله انفصال ته نه رسي

قطعه

چه عزت د عالمانو په کښي نه وي هغه ملك فسق و فساد شي
چه حرمت د درويشانو په کښي نه وي هغه ملك په بلا ياد شي
چه خالي شي د حاکم له سياست په غه ملك پيدا عناد شي
چه خلل د خيل خاني په مخ کښي پاځي که دولت ئي د بادشاه وي هم برباد شي

لس شل جاهلان په يوه پسي شل په بل پسي شي نه دا د هغه دفع کوي نه هغه د ده دفع کوي دنيا کارخانۀ الهي ده هر سړي چه ئي يوه کار ته ملا وُ تړي له مددگارو به خالي نه شي اما تقويت او استحکام د هر کار په زور موقوف دي لکه چه اول آيت "لَكُمْ دِيْنُكُمْ وَلِيَ دِيْنِ" راغلي وه بيا د

"اُقْتُلوُاالْمُشْرِکِیْنَ کَافَةً" راغي القصه دا حقيقت په سمع د محسن خان چه د کابل صوبه‌دار وه او په کابل کښي د اکبر بادشاه د لوريه وه وُ رسيده له کابل ئي يلغر وُ کړ دست بسته ئي له اشنغر و کابل ته بوت څو مدت په قيد وه بيا خلاص شه چه له کابل راغي و اشنغر ته ياران او مريدان ئي خپل جمع کړه د توتي په غره ننووت بيا له توتي و تيراه ته راغي افريدي ورکزي دا عالم ئي هم مريد شوُ داعيه ئي د مغل سره د بدئي وُ شوه ويل به ئي چه مغل ظلم پيشه دي په دا پښتنو باند ظلم تر حد زيات کا په هغه آوان په تيراه کښي وه اتمان خيل هم په ځنګ د څټ ور ته ميشته وو اول دي په چوره راغي په هغه وخت وصله په هغه عالم کښي کمه وه د چوره درمي په سختي مشهوري دي مريدانو ته ئي وُ ويل چه دا درمي پري کوئي سرونه ئي تيره‌وئي جنګ ئي وُ کړ د مغلو سره نقل کا چه هغو درمو به د نيزو کار کاوه تيراهي عالم شايد ظاهر د ده سره وه او باطن ئي د مغل سره رويه درسته وه هغو ته ئي وُ ويل چه تاسو په باطن د مغل سره ياستئي ځما له طريقي مردود طريقه شوئي اوس بويه چه واړه لاسونه پخپل وُ ترئي رايشئي چه ستاسو توبه هم دغه ده هغو يا له اعتقادَ چه په ده وه يا له ويري تير صو کسُ لاسونه وُ ترل ور لره راغلل تير صو واړه ئي جدا جدا مړه کړه يو د بله خبر نه ِشول هغه باقي ئي تاراج کړه تيراه له تيراهي خالي کړ افريدي ورکزي وُ نيو بيا اتمان خيل د افريديو سره دښمني وُ کړه اتمان خيل کم زوري شه تيراه ئي پرېښ و افريدي ته اړهنګ برهنګ ته د باجوړ لاړ شه هور ئي ځاي وُ نيو پير روښان هغه خلق افريدي ورکزي تمام مريد کړ کتاب ئي خپل خير البيان کړي دي د ده په مريدانو کښي شهرت لري په تبرک ئي ساتي القصه افريدي ورکزي تمام مطيع او فرمان بردار ئي شه بيا ئي لښکر جمع کړ په ننګهار وُ رغي دير کلي ئي تاخت تاراج کړ په هغه غره کښي ئي استقامت وُ نيوه محسن خان له جلال‌آباد شبيخون پر وُ کړ سره ئي جنګ وُ کړ په قول د آخوند درويزه د

پیر روښان عالمو شکست بیاموندہ څه ئې تري مړه کړه څه تري په غره ؤ ختل له هغه نه بیا و اشنغر ته راغي بیمار شه ؤ مړ په اشنغر کښي ئې کښي ییښ د ده پنځه روي ووُ یو شیخ عمر دویم نورالدین دریم خیرالدین څلورم کمال‌الدین پنځم جلال‌الدین شیخ عمر د ده په مصله کښیناست هرچه د ده مریدان او یاران ووُ په اعتقاد خاص په شیخ عمر باند جمع شول پس له یوه مدتَ د یوسفـزیو سره ئې څه مخالفت پیدا شه یوسفـزي پر جمع شول د آب سند په غاړه شیخ عمرئې د څو یارانو سره مړ کړ دوه تنَ ئې په اور کښي ؤ سه او خیرالدین د ده ورور ئې هم مړ کړ او نورالدین له هغه ؤ تښ په اشنغر کښي ګجرو مړ کړ او جلال‌الدین د یوسفـزیو په بند کښیووت پس له هغه اکبر بادشاه خبر شه جلال‌الدین او درسته خیل خانه ئې د دوي د یوسفـزیو د بنده خلاصه کړه پس له یوه مدت دِ اکبر بادشاه نه لاړ وفا ئې ؤ نه کړه په تیراه ننووت رهزني اختیاره کړه بیا کمال الدین د اکبر بادشاه په بند کښیووت څو په بند کښي مړ شه بیا جلال‌الدین د هزارهوُ له لاس په غزني کښي مړ شه هزارهوُ د ده سر و اکبر بادشاه ته ور ستاوه بیا احداد چه د پیر روښان نمسي وه د شیخ عمر زوي په ځاي د هغو کښیناست په یوسفـزیو کښي دینونه مذهبونه هم مختلف کډ شول ډیري ناهمواريِ ئې په لاس واخستي رهزني مردم آزاري ئې کړي

بیت

تا دل خلق خدا ناید به درد　　هیچ قومي را خدا رسوا نه کرد

نقل دي له آخوند درویزه چه اکبر بادشاه له هندوستانَ کشمیر ته را روان شه د یوسفـزیو ملاحظه په خاطر کښي وه په دا وخت کښي میان عیسي و سردارانو ته د یوسفـزیو ؤ کښل چه که صراح کتاب د ملا شاه خاني سواتي له کتاب خاني ما لره راستوئي دا ملك د تاسو د اکبر بادشاه نه خلاص کړم یوسفـزیو هغه کتاب په زور نه ډیر اکراه له ملا فیض الله واخست ور

ئي ستاوه آخوند درویزه وائي چه ما ورته وُ وي چه دا کتاب په تاسو کښې برکت وه دا مه ډیر بد وُ کړل چه له دي عالمَ مه غضب کړ ور مه ستاوه په دا شومي به تاسو خراب شئي آخرالامر الله تعالي قحط په دوي نازل کړ په غضب ئي د بادشاهِ گرفتار کړل تر هسي حدَ قحط پر نازل شه چه سمه بونیر دوارهِ څني خالي شول واړه و سوات ته تول شول نقل دي له آخوند درویزه نه چه په سوات کښې به هره ورځ هونبره مړدگان له کلیو وتل چه چا ښخول او مړدارهِ چه به ئي بیاموندده لکه حلاله هسي به ئي خوړهِ بلك غښي به ئي د مړدگانو خوړي دا به ئي نه موندلِ نور مړد ښځي ئي سره جدا شول لوي هلك ئي سره بیل شول یو تر بله به ئي سره له لوږي هلکان پټ کړل بل څاي به ئي خرڅول مالونه به ئي سره پټول خوړل به ئي تر هسي حده چه تمام ملك د دوي له دست وُ ووت په طبقات اکبري کښې راوړي دي په ورځ د شنبې شپږم د جمادالثاني سن د هجرت زر وه خبر و اکبر بادشاه ته وُ رسیده چه جلال‌الدین چه په تیښته و عبدالله خان ازبك ته لاړ وه بیا راغي بنیاد ئي د فساد او د فتني آغاز کړ راه‌زني او قطاع طریقي کا په ورځ د نو روز ئي جعفر بیك چه بخشي وه رخصت کړ چه په اتفاق د محمد قاسم خان چه حاکم د کابل وه مهم د جلال‌الدین وُ کا او په آخر د شعبان په سن مذکور زین خان کوکه ئي په آباداني د سوات او باجوړ او په استیصال او تنبیه د پښتنو او په وهل د جلال الدین رخصت کړ زین خان د کنبړ په لارِ د هندوراج په غاښي باجوړ لره وُ رغي تهانه ئي په باجوړ کښې پرېښوه نور و سوات ته د تري په لارِ روان شه یوسف‌زیو تري ور ته وُ نیوه یو څو مدت په دا تیر شه. چا ور ته وُ ویل چه د اختر په ورځ به دوي کور ته لاړ شي یورش وُ کړه تیر شه د اختر په ورځ یوسف‌زي اکثر گور ته لاړ زین خان فرصت غنیمت وُ گانه هله ئي پر وُ کړه و سوات ته تیر شه سوات ئي وُ نیوه ډیر بند زندان تاراج د یوسف‌زیو په کښې وُ شه مغلو قلعه

د دمغار سازه کړه هر لور ته به ئې په يوسفزيو تاختونه کړه بند به ئې را ووست او برده کول به ئې نقل دي له آخوند درويزه نه چه زه هم د يوسفزيو سره په سردرو د سوات لاړم په هغه ځاي را باند په شپه هسي ږلي او باران ؤ وريده چه تر صباح پور مُه اميد د زندګانئي نه وه آخرالامر پس د دِ بدي سختئي او هلاکت مغل ته ئې رجوع راوړه مغل يکبارګي و اشنغر و پښاور ته را کوز کړل په ګګياني په مهمندزي په غوريه خيل ئې ځاي په ځاي متفرق کړه هسي حال ور پيښ شه چه خداي تعالي دِ دا حال و مسلمان ته پيښ نه کا اما محمد خان د پاره د جمعيت د الس سره د هندوراج په غره مخ ؤ نيو پنجکوري د سيند په غاړه چه کفار وؤ هغه لور به ئې خالي کاوه وړاند به ته مطلب ئې دا وه چه که و قاشقار ته واوړم هغه هم د کفارو دِ لاسه شهيد شه بيا هغه الس غازي خان موليزي په خپل سر بادشاه ئې ؤ نيوه هغه هم د کفارو دِ لاسه شهيد شه هغه عالم هم د زين خان په لاس کښيووت خانه کوچ ئې و پښاور ته را وستل يوه واله ئې د پښاور په والو کښي دوي ته ور کړه د کر وکيلي طاقت ئې هم نه وه او نه ئې طاقت د قلبي وه اولس هم ور څخه تفرقه وه معلوم شول چه د بد افعالانو او د بدانو د صحبتونو دا نتيجه ور ؤ رسيده آخرالامر د خپلو افعالونو تايب شول د مغلُ په صلاح سره ئې ملك د سمي ؤ نيو ورځ په ورځ ئې اولس جمع کيده يو مدت ئې په آرام په سمه کښي زيست کاوه مال واجبي به ئې د بادشاه ور کاوه په هغه آوان کښي زر روپي واجبي د يوسفزيو وي پنځه توري شپږ توري به د کاله په سر يا د قلبي په سر په موافق د قسمت به په دوي ور تلي او ملك د سوات د بنير په دا کش مکش کښي په زور د مغلُ د متفرق عالم په لاس کښيووت لکه سمه چه د آب سند په غاړه ده دلازاکو ؤ نيوه سوات سواتي بنير بنيروال چمله چمله وال ؤ نيوه او باجوړ ننګ نهاريو ؤ نيو زين خان چه د سوات له بند و بسته خاطر جمع کړ ځاي په ځاي تهاني

کښېنولي دي په حضور د اکبر بادشاه ؤ رغي نقل دي د آخوند درویزه نه چه دا واړه په هغه آوان په اعتقاد سنیه کښې نه وؤ علماوو چه به چا ته نصیحت کاوه بد به ئې منل بعضي علما تابع د دوي شول بعضي خاموش شول بي یوه ما چه نصیحت مي به و هر چا ته کاوه یوهِ ورځ مي د یوه سواتي سره بحث ؤ شه را ته ئې ؤ وي چه سوات مي در ځني رانیوه ما ور ته ؤ وي له ما دِ نه دي آخستي له یوسفزیو دِ واخست په هغه وخت چه یوسفزي فرمان بردار او تابع د دین محمدي وؤ بابر غند بادشاه په دوي راغي بي یوه د شاه منصور لور چه دا ئې یووړهِ نور ئې هیڅ ځني یو نه وړه چه ستاسو په لارِ شول دا حال ور پیښ شه زر دي چه تاسو هم خراب شئِ

په هغه وخت چه بابر بادشاه په سوات راغلي وه ورځ د دوشنبي غره د محرم سن د هجرت اتصو پنځه ویشت وه ځور لسم کال د بابر د کابل د فتح وه په تسخیر د باجور راغي چه په نچول راغي نیمه کړئي عظیمه زلزله واقع شوه صبا ئې کوچ ؤ کړ چه قلعه د باجور فتح کا نیژدي قلعي ته واړول او سرداران ئې د دلازاکو باجوړ ته واستول چه و سردار ته د باجوړیو ؤ وائِي چه اطاعت د بابر قبول کا او قلعه د ده په عالم ؤ سپارئِي هرکاه چه ملکان د دلازاکو ؤ رغلل حقیقت ئې ور ته ظاهر کړ دوي اطاعت د بابر قبول نه کړ سخت ځوابونه ئې ور ته راستول بابر حکم ؤ کړ چه لښکر دِ متوجه په آخستل د قلعي شي په ورځ د پنځ شنبي څلورم د محرم په سن مذکور لښکر باعث په جنګ شه کم و بیش دوه صو پیاده له قلعي جنګ ته را ؤ وتل جنګ ئې په قدر د خپل استعداد ؤ کړ اما تاب ئې را نه وړ هغه ورځ شپیته اویا کس باجوړي په توپك ؤ مړل شپه شوه د بابر لښکر ځاي په ځاي قرار ؤ نیوه صبا د وخته په ورځ د جمعي پنځم د محرم حکم ئې ؤ کړ نغاره ئې ؤ کړه لښکر متوجه په قلعه شه جنګ ئې آغاز کړ رفته رفته قلعي ته ؤ رغلل قلعه ئې ماته کړه په دا مینځ کښې دېره ژوبله قتل کشتن ؤ شه

آخر ئې قلعه ماته کړه فتح ئې وُ کړه باجوړي ډير وُ مړل قتل عام وُ شه اهل او عيال ئې مغلو بند کړه تخميناً تر زرو کسو زيات وُ مړل پس له فتح قلعه په خواجه کلان وُ سپارله خواجه کلان شايد د ده يار وفادار مصاحب وه کمک ئې هم وُ خواجه کلان ته پرېښ صبا ئې کوچ وُ کړ په باباقرا واړول ځو بنديان باجوړي چه ور سره ووُ په سفارش ئې د خواجه کلان له اهل عيال سره آزاد کړه بعضي سرداران چه سر کښ ووُ په لاس ئې راغلي ووُ مړه ئې کړه سرونه ئې د دوي او خبر د فتح و کابل او قندهار او بدخشان ته واستول او فتح نامي ئې هم د سرونو سره واستولي په دا ورځو کښې شاه منصور يوسفزي له يوسفزيو ور ته راغلي وه په دا قتل عام کښې حاضر وه سر و پا ئې ورکړ فرمانونه ئې د سياست و يوسفزيو ته وُ کښل شاه منصور ته ئې ور کړه رخصت ئې کړ له مهم ئې د باجوړ خاطر جمع کړ په ورځ د سه شنبي اتم د محرم په سن مذکور ښوا کښې د تري په يوه بلند ځاي کله منار سازکړ په ورځ د چهارشنبي په لسم د محرم په طريق د سير سور شه و قلعي ته د باجوړ راغي د خواجه کلان کره مجلس د شرابو ترتيب شه کافرانو د باجوړ د نواحي ځو ځنګ شراب راوړي ووُ شراب او ميوه باجوړ ته اکثر له کافرستان راځي شپه ئې هور ته تيره کړه صبا ئې کوچ وُ کړ په رود ئې د چندول واړول حکم ئې وُ کړ هرچه کمک تعينات د باجوړ دي رخصت دِ شي په ورځ د يک شنبي ځلورم د محرم خواجه کلان ته ئې طغ عنايت کړ وُ باجوړ ته ئې رخصت کړ پس له دوه دري ورځو ئې دا قطعه و خواجه کلان ته وُ کښه

"قرار و عهد به ياراين چنين نه‌بود مرا  که زير هجر مرا کرد بي قرار آخر
به عشوه‌هاي زمانه چه چاره سازد کس  به جور کرد جدا يار را ز يار آخر"

په ورځ د جهارشنبي اوولسم د محرم سلطان علاؤ الدين سواتي چه مدعي او معارض د سلطان ويس سواتي وه راغي ملاذمت ئې د بابر وُ کړ

په ورځ د پنج شنبي اتهِلسم د محرم په ښکار روان شه پنجکوري څخه ئي
واړول په دا منزل اتفاقاً ديري واوري پري ؤ وريدي په اتفاق د سلطان ويس
سواتي د کهراج په عالم ئي څلور زره خرواره شولي مقرر کړي په تحصيل ئي
د دي غلي سلطان ويس سواتي تعين کړ عالم روستائي کوهي، وه دا کار ور ته
دشوار ښکاره شه ځايونه ئي پريښول ويراني ئي ؤ کړه تار پتار شول په ورځ د
سه شنبي درويشتم د محرم لښکر ئي تعين کړ چه تاخت په پنجکوره ؤ کا
عالم د پنجکوري ؤ تښتيده مال مويشي غله ئي تار پتار شوه په دا ميان کښي
شاه منصور زوي د ملك سليمان يوسفـزي په طريق د دولت خواهي ور ته
راغي از راه مصلحت او بند و بست د يوسفـزيو لور د شاه منصور بابر خان
ته ؤ غوښته په اتهويشتم د محرم له دري د کهراج را ؤ ووت په دا ميان
کښي ورور د شاه منصور هم ور ته راغي او بهسوت ئي هم په استحکام د
باجوړ د قلعي خانه کوچ باجوړ ته روان کړه په ورځ د جمعي په دريم د
صفر په هغه ځاي چه سيند د باجوړ او د پنجکوري جمع کيږي واړول له
دي منزل بيا باجوړ ته روان شه په ورځ د سه شنبي په اووم د صفر خپل
امراکان او سرداران د دلازاکو مصلحت ته ؤ بلل قرار داد په دا ؤ شه چه
اوس وخت د فصل تير شه سال آينده به په هسي وخت رايشؤ چه فصل
ئي لاند کړؤ چه فکر بر اصل ئي ؤ شي نور ئي د شاه منصور تره تر خپل را
جاروتو چه سال آينده ئي قرار داد کړي وه په باجوړ کښي پري ښو صبا ئي
کوچ ؤ کړ تر خواجه خضر تير شه بيا ئي کوچ ؤ کړ تر بنير را تير شه نماز ديگر
ئي په بانه پالي واړول له هغه نه کاتلنگ ته راغي له هغه نه په شهباز کړه
راغي قبر د شهباز قلندر په بلند ځاي وه چا ور ته ؤ وي چه دا قبر د ملحد
دي لکه زمکه هسي هموار کړ ديرش کال پخوا شاه باز قلندر مړ وه صبا
ئي کوچ ؤ کړ په مقام ئي ديره ؤ نيوه القصه بابر له باجوړ په قصد د هندوستان
د يورش را ؤ جاروت او دا يورش د ده مدام په خاطر وه اما په سبب د

بعضي موانع ور ته نه میسر کیده په مقام باند چه دیره شه بعضي دولت خواهانو ور ته ؤ وي چه بعضي لښکر په کابل بعضي په باجوړ څه په لمغان پاتو شه نن ورځ دا یورش مناسب نه دي لیکن بابر په دا خبرو اګرچه مصلحت پزیر ئي وي نظر ؤ نه کړ کوچ ئي په طرف د آبسند ؤ کړ په ګدر د نیلاب راغي پوري شه کوچ په کوچ بهره ته لاړ عمل ئي په بهره په خوشاب په دغه نواحي جاري کړ نور ئي بیا په لور د کابل کوچ ؤ کړ د نیلاب تر ګدر ئي کوز وا ړول کشتي ئي د نیلاب لاهو کړي را پوري شه د آبسند دِ غاړي نه چه ئي کوچ ؤ کړ ناګاه مزري پیدا شه آواز ئي ؤ کړ زلزله په آسونه ګډه شوه لور د لوره ئي په غشیو په تورو په نیزو ؤ واهه بابر خود هم یو غشي ؤ ویشت په سیند ګډ شه له سینده ئي را ؤ کیښ له هغه نه ئي کوچ ؤ کړ بکرام یعني پېښاور ته راغي د ګورکتري ننداره ئي ؤ کړه شپږ کسَ سرداران د دلازاکو ور سره ووُ هر یوه ته ئي صل صل مثقال سپین زر یوه یوه میښه چه سوغات د هندوستان وه ور کړه چه په علي مسجد ؤ رغي معروف نومیده دلازاك وه یعقوب خیل وه لس مړونه لس خرواره وریژي اته اوښان د بابر تر نظر تیر کړه الغرض په کابل داخل شه په دا آوان شاه منصور یوسفـزي د بابر خسر له سوات د پنځو شپږو کتخدایانو سره د یوسفـزیو ؤ رغي بابر ئي په کابل ؤ لیده واړو ته ئي خلعتونه ور کړه شاه منصور ته ئي تکمه داره جامه ور کړه نورُ ته بي تکمه دا ئي ور سره مقرر کړه چه تر ابوهي د پاسه په سواد دخل مه کانئي او هرچه تر ابوهي را کوز دي ملك اختیار ستاسي بل رعایا له میانَ را ؤ باسئي بل هرچه پښتانه ګرد نواحي د باجوړ استوکه لري او ملك د باجوړ کري شپږ زره خرواره شولي دِ په سرکار بادشاهي داخلوي سن اتصو اته وه بابر د دؤ لسو کالو وه ولایت ئي د فرغانه واخست بیا سن اتصو لس وه چه کابل ئي د مقیم ارغون نه چه زوي د ذالنون ارغون وه رانیو ذالنون ارغون په قندهار مقیم ارغون په کابل دواړه له طرفَ د سلطان حسین چه

بادشاه خراسان وه ناست وۇ بيا سن اته صو پنځه ويشت وه چه قلعه د باجوړ فتح کړه بيا سن اته صو دو ديرش وه چه بادشاهي د هندوستان له سلطان ابراهيم نه رانيوه يو ويشت کال بابر په کابل تير کړه ډير کش مکش ئي د پښتنو سره تير کړي دي اما غرض تمامه قصه نه وه مختصره ۇ کښه شوه پښتانه تر بابر پخوا په دا ملك وۇ

القصه پس له هغه يوسفزيو په دلازاکو لښکر ۇ کړ تر سيند ئي پوري کړل بيا د کټر د يوسفزيو سره ميرځي شوه د اکبر بادشاه په وخت د کټرو ډير زور وه نيلاب ئي نيهر وه چه يو لك کورونه ئي په نيلاب کښي وۇ گدر هم دغه وه لار هم په خوړه په سونياله و پښاور ته چليده د کټرو عالم په هغه آوان کښي مغضوب سلطاني شوي وۇ د اکبر د لوريه هم پسي مهم وه يوسفزيو ډير په تنگ ۇ رسول هسي چه يوسفزيو لښکر ۇ کړ ۇ رغلل د سيند په غاړه چه فتح پور ئي بولي جنگ ئي سره ۇ کړ يوسفزي را مات کړل تر شير والي پوري چه مفاصله اته يا نه کروه لري شکست ئي ۇ شه ډير عالم د يوسفزيو مړ شه

نقل دي په هغه آوان چه اکبر بادشاه په مهم د مرزا حکيم له هندوستان په اتک راغي قلعه ئي د اتک سازه کړه او مرزا سليم ئي په اتك له لښکره سره پريښ اکبر بادشاه خود جريده ۇ کابل ته لاړ کابل ئي بيا په مرزا حکيم ۇ سپاره بيا را ۇ جارووت دلازاك ئي له هزاري خانه کوچ کړه و هندوستان ته واستول په دا آوان په دلازاکو هسي خواري راغله چه بيان ئي نه شي نقل دي په هغه آوان اکبر بادشاه له کابل و هندوستان ته ۇ جارووت مان سنگه راجا ئي په اتك پريښ پس له هغه په سوات کښي د لغمانيو له باجوړيو او له سواتيو سره خصومت پيدا شه يوسفزيو وخت غنيمت ۇ گانه طرف داري د لغمانيو ۇ کړه لښکر کشي پس ۇ کړه سواتي ئي خاك سياه کړه د باجوړ عالم ئي هم خراب کړ په دا وخت يوسفزيو علي اصغر خپل سردار

نیولي وه څو ئي بیخ او بنیاد د سواتیو ؤ کیښ بند او تاراج او قتل ئي کړه القصه هیڅ یو سردار له دي الُس علي اصغر غند فتح کړي نه وه چه له ابتدا د ملك احمد او د خان کجو تر اوسن پوري هیچا ملك د تونول آخستي نه دي اما علي اصغر جد و جهد ؤکړ په اتفاق د ملك هندال اکوزي او ملك یاما ملي زي او ملك مته خان او ملا ابراهیم الیاس زي او ملك ترکي مندر اوغیره دا ملك په خپل تصرف راوړ

په طبقات اکبري کښي راوړي دي چه په شپږ ویشتم کال د اکبر د جلوس په ورځ د یک شنبي په پنځه لسم د صفر سن د هجرت نه صو نوي وه خبر راغي چه مرزا محمد حکیم په عرضداشت د معصوم کابلي او معصوم فرنخودي چه د هرات وه او په اغوا د فریدون چه نوي د مرزا محمد حکیم وه له کابل په عزیمت د هندوستان د تسخیر را روان شه او شادمان چه د ده نوکر وه په طریق د هراولي په نیلاب را پوري شه کنور مان سنگه مقابله شه جنگ ئي ؤ کړ مړ شه شادمان او مرزا محمد حکیم په نیلاب را پوري شه په پرگني د سید پور ئي واړول بادشاه په دا شورش له هندوستان را روان شه پس له هغه خبر راغي چه مرزا محمد حکیم د بادشاه د راتلو په طرف د پنجاب وارویدل د لاهور په سیند په ستنه پوري شه په لور د کابل روان شه بادشاه کوچ په کوچ راته نیلاب ته راغي په سن مذکور ئي قلعه د اتك سازه کړه مسمي په اتك بنارس کړه نور متوجه په طرف د کابل شه یوه هفته ئي په کابل تیره کړه بیا متوجه په طرف د هندوستان شه

په طبقات اکبري کښي راوړي دي چه په دیرشم کال د اکبر د جلوس په ورځ د جمعي اته ویشتم د ربیع الاول سن د هجرت نه صو څلور نوي وه عرضداشت د کنور مان سنگه او د خواجه شمس الدین محمد له اتکه راغي چه مرزا محمد حکیم سخت بیمار دي او فریدون په بدرقه د کاروان له

پېښوره متوجه د کابل وه په خیبر کښې د پښتنو سره جنګ وُکړ شکست
ئې بیا موند پستنه پېښور ته راغي اتفاقاً اور دننه په قلعه کښې وُ لګیده زر
بارونه د اوښانو وُ سول فریدون څه له دي واقعي نجات بیاموند په بله ته
روان شه په لار کښې اویه کسَ تتر تر وُ مړل هم په دا ورځو کښې خبر د
مرزا حکیم د فوت راغي مرزا حکیم اګرچه که د ده سکه ورور نه وه اما ده ته
تر سکه ورور ډیر تیر وه ډیر ځله مرزا حکیم بي ارائي او بي ادبئ وُکړ اما ده
نظر په صله رحمي تقصیرات ئې د ده درګذر کړه لکه حق د ورورئ وي
هغه رنګ ورورې او مهرباني به ئې پر وُکړه او څو ځله ئې لوي امراګان په
کمک د ده تعین کړه کابل ئې بي ځاره خنده ده ته تفویض کړ پس د مرزا
حکیم دِ مرګ اکبر بادشاه ته فکر د کابل او د غزني د محافظت وُ لاړ شه
مرضي ئې په دا وَه چه په دستور سابق کابل و فرزندانو ته د مرزا حکیم
تفویض شي اما وزیرانو دا کار صلاح دولت او مطابق د فرزندانو د ده دا
مضمون نه لیده بیت

"رعیت نوازي و سر لشکري نه کاریست بازیچه و سر سري"

او عبدالله خان ازبک بدخشان واخست کابل ته په پښو ناست دي په
دا سبب اکبر مخ په پنجاب را روان شه هرګاه په دهلي راغي زیارت ئې د
پلار او د نورو بزرګانو وُکړ فقیران او مسکینان ئې په خیر او په خیرات ممنون
کړه او هم په دهلي کښې د اختر میاشت وُ لیده صبا ورځ د پنځ شنبي وَه د
اختر نمونځ ئې وُګذاره له دهلي نه ئې کوچ وُکړ په نولسمَ د شوال و غاړي
ته د آب ستلج راغي په دي مقام خبر راغي چه کنور مان سنګه خپل عالم
په نیلاب پورِ کړ پېښور ته ئې وا ستاوه او شه بیک نوکر د مرزا محمد حکیم
په آرویدل د دي خبر فرار وُکړ کابل ته لاړ په ورځ د چهار شنبي دیارلسمَ د
ذوالقعده و غاړي ته د چناب راغي او په اته ویشتمَ د ذوالقعده و غاړي ته
د آب بهست راغي را پوري شه په دا منزل عرضداشت د کنور مان سنګه

مشتمل په اخلاص او په اطاعت د کابل د خلقُ او فتح د دي شاه ته راغي
هرګاه چه کنور مان سنګه په کابل داخل شه فريدون او فرزندان د مرزا
محمد حکيم له څانَ سره و کنور مان سنګه ته راغي ملاقات ئي وُکړ کنور مان
سنګه واړه په عنايت او التفات د بادشاه اميدوار کړه خپل زوي د خواجه
شمس‌الدين سره په کابل پريښ او خود متوجه له فرزندانو سره د مرزا محمد
حکيم په ملازمت د اکبر شه په پنځه ويشتم تاريخ د ذوالحجه په قصبه د راول
پنډي چه په ميان د رهتاس او دَ اټک واقع ده کنور مان سنګه فرزندان د
مرزا محمد حکيم په شرف د ملازمت مشرف کړه بادشاه ډيره مهرباني مبذوله
کړهٔ هر يوَ ته ئي لايق منصب او جاګير ور کړ هرګاه چه بادشاه په نواحي د
اټک راغي زين خان کوکه ئي له ښه جمعيتً سره په تسخير د سوات او
د باجوړ او استيصال د مفسدانو تعين کړ او بادشاه په ورځ د پنځ شنبي په
پنځه لسم د محرم په سن نه صو پنځه نوي په اټک بنارس داخل شه

په طبقات اکبري کښي راوړي دي چه جلال‌الدين په هغه وخت چه
عمر ئي د څورلسو کالو وه په سن د نه صو اته اتيا چه اکبر له کابلَ را وُ
جاروت په ملازمت د بادشاه راغي مهرباني ئي ډيره پرِ وُ کړه پس له څو
ورځو ترِ وُ تش پښتنو ته راغي فساد ئي آغاز کړ لار ئي د کابل د هندوستان
بنده کړه

مثنوي

"درختي که تلخست ويرا سرشت گرش بر نشاني به باغ بهشت
ور از جوي خلدش به هنگام آب به بيخ انګبين ريزي و شهد ناب
سرانجام گوهر به بار نه آورد همان ميوهٔ تلخ بار آورد"

مثنوي

"په ښوره کښي چه څوک کرکا سود ئي نشته خپل ضرر کا
چه نيکي شي له نا اهلَ دا خبره ده له جهل

چه یاري دِ وي له مارَ خاي مړ شومه کړه طیاره
چه په اصل بد سرشت دي رنج پرِ مه کوه چه زشت دي
ستا محنت به واړه باد کا غم بـه تـا سره بنیـادٰ کـا"

اکبر په رفع په دفع د دوي کنور مان سنګه تعین کړ او کابل ئي د ده په جاګیر کښي ور کړ هرګاه چه خبر را وُ رسیده چه زین خان کوکه د پښتنو سره په جنګ په جدل ګرفتار دي په دویم د صفر سن مذکور سعید خان ګکهر او راجه بیربر او شیخ فیضي او فتح الله خان شیرازي او تاش بیګ او صالح عاقل او نور ډیر لښکر په کمك او په مدد د زین خان کوکه رخصت کړ او پس له څو ورځو ئي حیکم ابوالفتح له نوره جماعت سره هم په کمك د زین خان روان کړ هرګاه چه زین خان ته دا امراکان وُ رسیدل لاس ئي په تاخت او په تاراج د پښتنو دراز کړ هرګاه چه د کراکر په غاښي وُ رغلل یوډ سړي و راجه بیربر ته وُ وي چه پښتانه نن شپه قصد د شبخون لري او دا غاښي درِ څلور کروه دي که راجا کوچ وُ کا ترِ تیر شي دوي به بي دست و پایه شي راجا بیربر بي له اتفاقَ د زین خان کوچ وُ کړ نماز دیګر د بلندري په غاښي راغي پښتانه پرِ راغلل په غشیو په توپکو په کانیو ئي ویشتل لار باریکه شپه تاریکه مغل نا بومه لار ئي غلطه کړه په هلاکت وُ رسیدل عظیم شکست ئي بیا موند او وه اته زره خلق ډوب شه راجا بیربر وُ مړ او راجا نني او راجا دهرم چند او خواجه عرب چه بخشي د هغه لښکر وه او ملا شیرین شاعر نور ښه نامدار خلق په هغه شپه هلاك شول او زین خان کوکه او حکیم ابوالفتح په پنځم د ربیع‌الاول په سن مذکور په بد حال په ډیر محنت و اتك ته را وُ رسیدل دا واقعه د اکبر په خاطر ډیره ګرانه شوه دوي له سلامَ منع کړه پس له هغه ئي راجا تودر مل له عظیمَ لښکره سره په تلافي او تدارك د دي واقعي تعین کړ راجا تودر مل راغي څو قلعي ئي بنیادي کړي یوسفـزي ئي تاخت اوَ تاراج کړه ملك ئي پرِ تنګ کړ هم په دا ورځو کښي خبر و اکبر ته

ؤ رسیده چه میر قریش ایلچي د عبدالله خان بادشاه د ماوراالنهر له ډېره سوغات سره راغي او نظر بیګ ازبک چه له لویو امراګانو د عبدالله خان وه له فرزندانو سره آزرده خاطر راغي اکبر شیخ فرید بخشي او احمد بیګ کابلي په استقبال و مخې ته ور رخصت کړه چه له خیبر نه ئې را تیرکا دا لښکر چه ؤ رغي جلال‌الدین لار د خیبر ور ته نیولي وَه ډېر جنګ ؤ شه فتح د بادشاهي لښکر ؤ شوه دوي ډېر ؤ مړل میر قریش ایلچي او نظر بیګ ازبک تر خیبرَ را تیر شول

په طبقات اکبري کښې راوړي دي چه هرګاه چه راجا مان سنګه په حکومت د کابل بادشاه سرفراز کړ له امراګانو د کابل څو تنه ئې په رکاب ظفر انتساب کښې ؤ ساتل باقي امراګان ئې د کابل په کمک د راجا مان سنګه سره رخصت کړه هرګاه چه په پېښور داخل شه حقیقت د جلال‌الدین ور ته معلوم شه چه په تیراه کښې جماعه د قطاع الطریق ور سره ده راجا مان سنګه ته دا فکر صواب ښکاره شه چه اول دفع د دې فساد کړي بویه پس له هغه په جمع خاطر کابل ته تلل بویه په دا فکر کښې وه چه خبر د نظر بیګ او د قنبر بیګ او د شادي بیګ او د میر قریش او پاینده رعنا چه په طریق د رسالت له عبدالله خان راغلي وؤ را ؤ رسیده په سبب د سنګ راه پښتنو په لور د خیبر روان شه پس له ډېرَ جنګ و جدلَ نظر بیګ او غیره تر خیبر را تیر شول په دا دوه درې ورځې کښې اراده د مان سنګه په طرف د تیراه وَه لیکن فرمان د بادشاه په لاس د خواجه دولت راغي چه زین خان پښتنو مات کړ بایده دي چه بي توقفَ په شرف د ملاذمت مشرف شي چه رفع او دفع د دوي ته په وجه احسن ؤ کړي پس له مطالعي د فرمان حضور ته روان شه په ورځ د نو روزئي شرف د ملاذمت حاصل کړ هم هغه زمان حکم پرِ صادر شه چه له هغه فوج سره چه کابل ته روان وي

متوجه په دفع رفع د پښتنو د سوات د باجوړ شه هرګاه چه مان سنګه په حدود د پښتنو راغي زلزله پرِ ګډه شوه راجا مان سنګه اووه اته میاشتي د کجو په تهانه تیري کړي ډیر جنګ او جدل او تاخت او تاراج لوټل وهل بندول د نر د ښځو ئي وُ کړه په دا میان کښي له طرفه د ماوراالنهر پریشان خبرونه و اکبر ته را وُ رسیدل په محافظت د کابل راجا بهګونت داس تعین کړ راجا بهګونت داس طاقت د دي خدمت نه لیده او چه راجا مان سنګه له تهانه د کجو په خدمت د بهګونت داس چه د ده پلار وه اټک ته را روان شه خو چه حقیقت ئي د کار او بواعث د بادشاه ظاهر کړ جمدهر ئي دوړاندِ پروت وه ځان پر وُ واهه وُ ئي وي چه زه ځوك کابل ځوك ځو وُ نه مرم ستا له فضولیو به خلاص نه شم مړل ځما بهتر دي

په طبقات اکبري کښي راوړي دي چه په ورځ د نو روز چه دو دیرشم کال د اکبر د جلوس او سن دهجرتِ نه صو شپږ نوي وه خبر را وُ رسیده چه جلال‌الدین ثاب د مان سنګه را نه وړ په طرف د بنګښ لاړ شه عبدالمطلب خان چه لوي امرا د اکبر وه او محمد قلي بیګ افشار او حمزه بیګ افشار چه له قوم اوغترا د قلي بیګ د قزلباشو وُ نور دا رنګ ځو امراګان په استیصال د جلال‌الدین و بنګښ ته تعین کړه هرګاه چه دا لښکر بنګښ ته وُ رغي جلال‌الدین د ډیرو سورو او پیادو سره جنګ ته راغي شدید جنګ وُ شه پښتانه مغل طرفین ډیر وُ مړل اما فتح د مغل وُ شوه هرګاه چه جلال‌الدین د پیر روښان زوي په غزني تاخت وُ کړ هزاره‌وو پرِ غلبه وُ کړه جلال‌الدین ئي مړ کړ سر ئي اکبر بادشاه ته راستوه پس له هغه احداد د ده وراره د شیخ عمر زوي په ځاي د ده کښیناست هغه پښتانه وغیره چه د پیر روښان مریدان وُ وارهٔ زیات تر پیر روښان په ده وُ ګروهیدل دِ ابتدا په تیراه کښي وه په هغه آوان چه احداد په تیراه کښي وه دولت دمغان د ده د استوګي وه

او بوچرخئي چه د لبنکرزي په میان کښي دي بل ستوږ چه د دولت زي سر حد دي د لوي مهابت خان په صوبداري کښي تیر صو کسه دولت‌زي له احداده په طمع توقع په قول په امیدواري ځني را ؤ بلل په هغه آوان د دولت‌زیو ملك ملك اصغر وه د ملك تور تره ملك اصغر خپل زهمن چه شمسي او رسول نومیدل ور سره کړه مهابت خان لره راغله مهابت خان ته بعضي غوریه خیلو او بنګښو ؤ ویل چه که دا تیر صوکسه دولت‌زي چه راغلي دي قتل عام شي او په احداد پسي مهم ؤ شي احداد به بي پایه شي دا معرکه ئي سره پخه کړه تقریباً یوه ورځ مهابت خان مجلس آراسته کړي وه ملك تور ئي هم ؤ باله چه مهابت خان مست شه په مستي کښي ئي تر خولي ؤ وتل چه که دا عالم قتل کړم تیراه به مسخر شي ملك تور ؤ وي چه نواب بهتر پوهیږي ملك تور چه رخصت شه کور ته راغي صبا چه مهابت خان صوفي شه دا خبره ور یاده شوه یساول ئي ورستاوه ملك تور ئي ؤ باله ور ته ئي ؤ وي چه برایه مه څه مصلحت سره کاوه ملك تور انکار راوړ چه زه له ځانَ له جهانَ هیڅ خبر نه وم اوس هم بي هوښَ یم یساول په زور راوستم د مهابت خان خاطر تسلي ؤ شوه چه دي په هغه خبره پوهیدلي. نه دي نور ملك تور رخصت شه چه دوه ورځي تیرِ شوِ حیله حواله ئي ؤ کړه چه کوږمه مي له پاسه راځي زه دِ رخصت شم چه مخي ته ئي ورشم مهابت خان ور ته ؤ وي ته څه لره ځي زه به پالکئي انبالئي ور ستوم ده ور ته ؤ وي چه پښتنيَ په دا نه پوهیږي زه به ئي مخي ته ورشم را به ئي ؤ لم په هر صورت ئي ځان ترِ رخصت کړ بلا توقف ئي وروڼه تر لاسَ ؤ نیول رواِن شه چه تر نیمهرِه ؤ ووت سري ملك شمسي او رسول چه د ده تربورونه وؤ ور ته ئي راستاوه ؤ ئي وِ چه ما ځان په بهانه له مهابت خانَ رخصت کړ ده د مورِ د مرګ مصلحت کړي دي که را ؤ وتئي خلاص شوئي که نه وتئي مړه شوئي دوي په ګفته د ده عمل ؤ نه کړ هرګاه چه ملك تور تیراه ته ؤ رغي تره ته ئي ؤ وي

چه مهابت خان دا رنګ مصلحت کړي دي ما دِ زهمن خبر کړه دوي د ما په
ویل عمل وُ نه کړ سړي ور ته په تلوار واستوه که نن صبا را وُ وتل بهتر که نه
مړه شول تړه ئې هم په ویل عمل وُ نه کړ چه تربور ئې دي له غرضه وائي څو
ورځي چه تر میان شوي مهابت خان ضیافت وُ کړ هغه عالم ئې واړه وُ باله
پس له طعامَ ئې وصلي د خلعت پ: بهانه ترِ واخستی تیر صو کسه ئې جدا
جدا یو یو مړ کړ یو د بل دِ حالَ خبر نه شه نور د غیرت خان سره دوه
ویشت امرایان په مهم د تیراه په لار د کوهاټ تعین شول د اسمعیل‌زیو په
وطن چه واغوز و سم ئې لوي د سنګ پاڅه تر غاښي لاند دي هورِ ته ئې واړول
دولت‌زي د ملك تور سره روښاني د احداد سره د غاښي سر ئې ور ته وُ نیوه
په صبا مغل سواري وُ کړه جنګ ته روان شه مغل هسك وُ کړ غیرت خان
د ملك تور ته مورچي ته وُ رسیدهٔ او راجپوت مورچه ته د روښانیو وُ رسیده
جنګ ئې سره آغاز کړ چه مغل د غاښي په سر وُ رغي غیرت خان وړاندِ
شه پنجو نومیده دولت‌زي وه په خیل کښي فروز خان خیل وه ور سره غاړه
غړي شه دواړه یو د بله پرِوتل پنجو ناري کړي چه ما هم ور سره وهي څو
دي وُ لاړ نه شي دواړه ئې وبله باند وُ وژلل نور مغل مات شه بي حساب
وُ مړل سوا تر نورَ لوټه پنځه زره آس په الجه کښېوتل نور مغل تاب را نه
وړ لوي مهابت خان تغیر شه چه ملك شمسي او رسول مړه شول ملك
اصغر پخپل ځاي ملکي په ملك تور وُ سپارله په دا سبب چه فرزند ئې
پاتو نه شه پس له یوه مدتَ پهٔ تیراه کښي په زمکه د مستوري یو څبله
دعوه د ورکړي وُ شوه د احداد طرفداري دیو نورو وُ کړه ملك تور عبدالعزیز
خیل چه نیکه د مؤلف وه له موږه لاسته له احدادَ آزرده شه ور ته وُ ویل
چه زهِ نورِ دِ هر امر منم اما یو د کاله بل د پټي واك نه درکوم احداد هم ور
سره دښمني واخسته دي راغي مغلي شه لښکر ئې د مغل په تیراه روان کړ
دي دوړاندِ شه احداد ئې له تیراه وُ یوست په چبوتره د ختکو پهٔ لواغره کښي

ئي مکان ؤ نيود همیشه به ئي په هر لوري تاخت باخت کاوه لښکر ور سره
ډير وه له هرې قومَ سلوك ئي د هيچا سره نه وه د ده ارتينه ډيره صاحب
حسنه او دانا او فهميده وَه او نوم ئي الائي وه د دي زوي عبدالقادر نوميده په
دوارو باند احداد ډير مَين وه هر کار به ئي د دوي په راي په مصلحت کاوه بل
د ده مطرب وه هغه هم د ده صاحب مدار وه نور د احداد د هيچا سره سلوك
نه وه نقل دي له سفيد ريشانو د اکوړ خيلو چه خدري نوميده پيروه د يحي
خان د سردارئي په وخت ډير بد نهاد وه همیشه په بديو د ده کار وه يو ځل
له بيرډ لواغرې ته ؤ رغي احداد ئي را سوور کړ خيرآباد ئي تاخت تاراج کړ په
وخت د جاروتو خضر خان اکوړ خيل د چوړپاني په وره کښي پسي ؤ رغي
جنګ ئي ؤ کړ خضر خان شهيد شه په جهانګير نامه کښي راوړي دي چه
په شپږم کال د جهانګير د جلوس سن هجرت زر شل وه واقعي د احداد مخ
ښکاره کړ خان دوران امرا په دا وخت له ډيره سپاه سره په حدود د ننګنهار
او د بنګښ وه او معزالملك بخشي د لږه جمعيت سره په کابل وه احداد
فرصت غنيمت ؤ شماره ډير سوره پلي ور سره کابل ته ؤ رغي معزالملك کوچه
بندي د کابل ؤ کړه متوجه په جنګ شه پښتانه په سبب د کثرت په هر
طرف لور د لوړ په کوچه په بازار پرِ هله ؤکړه معزالملك تاب د مقاومت را نه
وړ په کوټ ننووت کابليو همت اختيار کړ ډير جنګ ئي ؤ کړ طرفين ډير ؤ
مړل احداد ؤ جارووت کم و بيش صل کس پښتانه ؤ مړل دوه صو آسونٌ هم
د پښتنو پاتو شول په دا ورځو کښي ناد علي ميداني په لهوګر کښي وه هرګاه
چه دا خبر ور ؤ رسيده په ډير تلوار را روان شه نماز ديګر داخل په کابل
شه په پي د پښتنو روان شه ليکن مسافت ئي تر ميان ډير وه ؤ نه رسيده
را ؤ جارووت هم په دا ورځو کښي فتح خان له لاهور په ملاذمت د
جهانګير راغي شرف د ملاذمت ئي حاصل کړ دي ئي په حکومت د کابل
او په تنبيه د احداد په ضبط د پښتنو تعين کړ

په جهانګیر نامه کښي راوړي دي چه په شلم کال د جلوس اتم د جماد الثاني جهانګیر په هوس د سیر او د ښکار په طرف د کابل روان شه ده څو ورځي په ګرد نواحي د ښهر ښکار وُکړ په ورځ د جمعي په درویشتم د جماد الثاني کوچ وُ فرمایه افتخار خان چه زوي د احمد بیګ خان کابلي وه د احداد سر ئې راوړ ملاذمت ئې د بادشاه وُکړ بادشاه سجده د شکر وُ کړه شادماني وُ غږولي حکم ئې وُ کړ چه د لاهور په دروازه ځوړند کړي او تفصیل د دِ مجمل دا رنګ دي چه هرګاه مظفر خان زوي د خواجه ابوالحسن و کابل ته راغي خبر ور ته را وُ رسیده چه یلنګتوش ازبک په قصد د شورش او د فتني په نواحي د غزني راغي لاچار د خپلو تعیناتو سره په سر د یلنګتوش روان شه په دا میان کښي احداد قابو وُ لیده په اشارت د یلنګتوش ازبک تیراه ته راغي دست اندازي او رهزني اغاز کړه یلنګتوش له دي قصدٙ پښیمان شه یو شخص ئې له خپلو عزیزانو مظفر خان تہ واستاوه صلح صلاح ئې وُ غوښته وُ جارووت مظفر خان په سر د احداد له دغه جمعیت سره په لار د کردیر روان شه هرګاه چه خبر د یلنګتوش د جاروتو او د مظفر خان د راتلو و احداد ته را وُ رسیده تاب ئې د مقاومت را نه وړ پناه ئې و لواغره ته یووړه مورچي ئې ځاي په ځاي وُ تړلي محکمي ئې ډیره وُ کړه ذخیره او توښه او آذوقه او اسباب د جنګ ډیر طیار او آماده کړ مظفر خان وُ رغي پنځه شپږ میاشتي جنګ او جدل زد ډیر وُ شه په ورځ د شنبي اووم د جمادالاول پس له ډیره جنګٙ چه درِ پهره جنګ وُ شہ احداد په اهتمام د مورچه بندي له یوي مورچي بلي و ته تہ په توپک وُ ویشت شه وُ مړ پښتانه تنګ شول مورچي پري ښوي په دا میان کښي یو شخص چه د احداد دِ لښکر وه په طریق د مجرا توره او چاړه او ګتي د احداد مظفر خان ته راوړه یقین ئې وُ شه چه دا توره ګتي د احداد ده مظفر خان هغه شخص دوړاندِ کړ هغه ځاي چه احداد مړ پروت وه وُ رغي د توپکو په ګولئ ویشتلي شوي وه په دا مجرا مظفر خان

تعینات ئي له بادشاه ؤ شه منصب او اضافه بیاموندده پس له مرګ د احداد
په لښکر ئي تفرقه کړه شوه اما په لواغرو کښي یو سخت ځاي دي کورمه قبیله
ئي هغه ځاي ته ؤ ختل خلاص شول لښکر د مغل را ؤ جاروت بیا په یوه
مدت پس د احداد قبیلي له الائي له عبدالقادر سره و تیراه ته راغلي چه
جهانګیر بادشاه فوت شه شاه جهان په تخت کښیناست لښکر خان صوبدار
د کابل وه په دا کش مکش کښي موسم شه صوبدار د کابل و کابل ته ؤ لاړ
وه عبدالقادر له تیراه لښکرکشي ؤ کړه پیښور ئي محاصره کړ نایب ئي د لښکر
خان او ښهر د پیښور ئي قتل کړ اطراف او جوانب اولوسات د پښتانه واړه
د مغل په بدي متفق شول مګر د رقبیلي ارباب د پیښور قبیلي د مؤلف چه
په هغه آوان کښي شهباز خان د مغلو سره وه په ورک زي کښي د ملك تور
قبیله هغه د رِ واړه قبیلي سره په اتک په پیښور وِ په پیښور کښي د مغلو سره
محاصره شوِ او شهباز خان د قبیلي سره په اتک کښي محاصره شه سعید
خان چه صوبدار د بنګښ وه په هغه وخت را ؤ رسیده د پیښور په محاصره
کښي ننووت اول ابتدا د محاصره عبدالقادر کړِ وَه چه دا نور اولوسات جمع
شه لکه د پښتنو جهل ناداني عادت دي رشك ئي پیدا شه چه دا اسم د
عبدالقادر کیږي له عبدالقادر سره خبري د مخالفت واخستي عبدالقادر ؤ
وهیده چه د مغل سره به ساز ؤ کا ما به نیولي ورکا له دي وسواس په شپه
کوچ ؤ کړ د خپل لښکر سره و تیراه ته لاړ مغل په دا حال خبر شه چه لښکر
د پښتانه تفرقه شه د قلعي را ؤ ووت له پس مانده وو پښتنو سره ئي جنګ ؤ
ډیر یوسفزي ګګیاني مړه شول شکست ئي ؤ خوړ دا مقدمه چه د شاه
جهان په عرض ؤ رسیده سعید خان چه له بنګښ راغي دا هسي تردد ئي ؤ
په یوه ځل پنځ هزاري منصب او د کابل صوبداري ورکړه د کابل په صوبه
ئي بیا عمل مغلي ؤ چلیده عبدالقادر د الائي سره په قول په عهد دلاسا
و پیښور ته ئي را ووست په لږ شپي کښي وفات شه مغل بیا لښکر کښي

په تیراه په احدادیانو پسي ؤ کړه یوسف افریدي او آزارمیر ورکزي چه دا دواړه د احدادیانو سرداران وؤ جنګونه جدلونه په تیراه ډیر ؤ شول دا یوسف افریدي هسي بهادر ځوان وه چه د احدادیانو په لښکر کښي په مړانه د ده ثاني ځوګ نه وه

بیت

"پلنګانش از زورِ سر پنجه زیر فرو برده چنګال در مغزِ شیر"

په دا مهم کښي هم ده هسي توري ؤ وهلي چه عالم ور ته حیران شه بیا مغل په قول په قرار را وستل هزاري منصب ئې دواړو ته ورکړ بادشاه په حضور ؤ بلل وطن ئې پاني پت شحه ورکړ اوس سن هجري زر صل در ویشت دي هغه وطن د دوي د اولاد په تصرف کښي دي پس له هغه د شاه جهان په عمل د کابل د صوبي په پښتنو سخت عملي شوه ماده د اولوساتُ له فتني ډکه شوه شاه جهانَ بادشاه شاه زاده دارا شکوه چه ولي عهد زوي د ده وه په اګره کښي ئې بند کړ په هغه آوان مهابت خان صوبدار د کابل وه

ذکر په بیان د خپلُ انسابُ او احوال د خپل اُلس چه له یوه ځايَ بل ځاي ته په سبب د حوادثُ د روزګار نقل کړيَ دي او هرچه په دا امینځ کښي واقعي شوي دي

د خان علیین مکان خوشحال خان نقل دي چه په بیاض کښي پخپل دستخط کښلي دي چه اُلس د ختک داخل د اُلسِ کړلاني دي تر کړلان پورِ او څموږ تراولادَ پورِ شل پیړي شيِ افضل خان د اشرف خان د خوشحال خان. د شهباز خان د یحي خان د ملک اکوړي د درویش محمد چه مشهور په چنجو دي چنجو د تمن تمن د حسن حسن د شیخ علي شیخ علي د عطا عطا د پټي پټي د اتو اتو د برکویت برکویت د تري تري د تورمان

تورمان د لقمان چه مشهور په خټک دي لقمان د ککي د کړلان کړلان زوي د هوني دي هوني داخل په اولاد د سړبن دي چه له اولادَ د شرکبون دي دا قصه طول لري اما مجمل څه لا و بدي کښلي شي وائي چه په زمکه د ایلاق او د قشلاق، کړلان له موره تولد شه په سبب د واقعي و احشامات ته روان شول دي هیر شه هرګاه چه ور یاد شه ورمړ چه ورور د هوني وه په طلب د واره وُ جاروت بیا ئي موند یو دیګ هم هورِ ته د دوي نه پاتو شوي وه کړلان ئي په دیګ کښي واچاوه دیګ ئي په سر واخست و احشامات ته ئي راوړ د ورمړ خپل زوي نه وه و هوني ته ئي وُ وي ما دا ستا زوي په ډیر مشقت تر دا ځایه راوړ ته ئي مه آخله زه به ئي پرورش کوم دا دیګ ته واخله هوني راضي شه هرګاه چه عوض معاوضه ئي په دیګ وُ کړه او پښتانه دیګ وته کړهي وائي دي په سبب د کړهي مسما په کړلاني شه هرګاه چه عاقل و بالغ شه ورمړ لور په نکاح ورکړه اولاد ئي ډیر شه څو ګروه خلق دي واره منسوب په کړلاني دي انشاءالله شرح د دي احوال به پخپل محل راشي ما په زعم د دلازاکو چه په کړلاني کښي دوي لوي اُلس دي دا رنګ دي چه دوي کړلان ته سید حسیني وائي په دا ترتیب چه کړلان د سید قاف سید قاف د سید رجال سید رجال د سید خاتم سید خاتم د سید اسمعیل سید اسمعیل د امام جعفر صادق امام جعفر صادق د امام محمد باقر امام محمد باقر د امام زین‌العابدین امام زین‌العابدین د امام حسین امام حسین د حضرت علي کَرَمِ‌اللّٰهُ وَجْهَهُ هرګاه چه اُلس د دلازاکو ارشد په اولاد کښي د کړلان دي لږ څه به ئي له انسابَ په دي محل کښي وُ کښل شي نسب د دي قوم په برهان ورځي د کړلان دوه زهمن وو یو کودي دویم ککي برهان او ورک دواړه زهمن د کودي دي ورک‌زي او دلازاک دواړه په اولاد د کودي ورځي دلازاک دوه طایفي دي لوري او یعقوب اُلس د لوري زیات وه اُلس د لوري کښي کیړي عمر خلیل احمد خلیل وتک‌زي شجرهم داخل په لوري دي د یعقوب

دوه زهمن وؤ ذکریا او اما حیدر اوسنیٔ خسي دوارهٔ داخل په اما دي سیصدد ور ته وائي د ذکریا څلور زهمن وؤ یسین مندي موتي ماني له هریوه نه جدا جدا اُلس پیدا شه یسین‌خیل منديزي موتيزي ذکر به د ورکزي پخپل محل کښي راشي د ککي څلور زهمن وؤ لقمان اتمان عثمان جدران دا څلور وارهٔ اُلس په یوه له زهمنو د ککي منسوب دي اتمان او عثمان له یوي مورهٔ دي او لقمان له بلي مورهٔ دي اما دري وارهٔ له یوه پلاره دي او جدران تره د دي در وارهٔ وه اُلس د اتمان خیل چه په سوات باجوړ اړهنگ بړهنګ میشته لري له نسلٔ د اتمان دي او اُلس د افریدي چه په تیراه او بارهٔ او خیبر استوګه لري له اولاد د عثمان دي او اُلس د ختك چه په سرحد د یوسف‌زي تر عیسي پوري په غاړي د آب سیند پراته دي له نسب د لقمان دي چوتره او لواغر او تل دینو او کربوغه او کرکرهٔ دا وطن د دوي دي وائي چه اسم د لقمان په دا سبب په ختك شهرت بیاموند چه لقمان او اتمان او عثمان او جدران څلور وارهٔ ښکار ته لاړ در څلور جونه له قبیلي د افغان صحرا ته وتلي وي یو د بله پیښ شول دوي وُ وي چه راشئ په څلور وارهٔ د څلور وارو هسك واچوو دا لوي ښکار دي لقمان په کښي مشر وه په هساك راضي نه شه وُ ئي ویل چه اول به زهٔ یود په غورد واخلم په نورو دري وارد هسك واچوئي هم هغه رنګ ئي وُ کړل لقمان په څلورو وارو کښي چه په ښه پوښاك آراسته وَه هغه په کښي وُ نیوه اما چه ئي وُ لیده حسن ئي موافق د لباس نه وه

بیت

"بس صورت خوش که زیرِ چادر باشد چون باز کني مادر مادر باشد"

هغه نوري په ښایست په زیبائي تر دي بهتري وي نورو ورونو ئي هسك پر وُ کړ موافق د هسك ئي خپلي کړ هرګاه چه احوال د لقمان ور ته معلوم شه په خندا خندا ئي وُ وي لقمان په ختي لاړ مثل دي د پښتنو چه څوك په یود سبب درمانده شي وائي چه په ختي لاړ په دا سبب نوم د لقمان ختك

سا ۲۴۲

شه او عثمان ته په دا سبب آفریدي وائي چه میلمانه د ده کره راغلل دي
ډیر حقیر او گنجي او پریشان وه وخت د ژمي وه دوي له سردۍ یو د بله
نیژدي ناست وو میلمنو تر پښتنه وکړه چه دا څوک دي دوي وُ وِ دا
هم آفریده دي یعني خلقت د پروردگار په دا سبب نوم د عثمان افریدي
شه له نسلً د هغو څلورو وارو جونو اولاد د لقمان او غیره ډیر شه هغه
جل چه لقمان خپل ځان ته غوره کړه او نوم ئي د ختک د دي په سبب
بیاموند وائي چه نوم ئي سباکه وَه رنگ ئي تور وه قوي هیکله هښیاره وَه دوه
فرزندان د لقمان تر پیدا شول یو تورمان بل بولاق تورمان د پلار په رنگ
وه او بولاق سیاه فام وه په رنگ د مور په ځاي د پلار تورمان کښیناست
له ده دوه زهمن پیدا شول یو تري بل ترکي په میان د دیو دوارو ورونو
تري قابل شه نوم ئي د پلار ژوندي کړ اولاد د تورمان واړه د ده په نامه
نومړل شي د تري دوه زهمن وُ شول برگویت او امیر د برگویت در زهمن
وُ شول اسمعیل او امیر او اتو او د ترکي چه زوي د تورمان وه دوه زهمن
تولد شول ایسو او یوسف او په میان د تري د اولاد اولاد د اتو او د امیري
ډیر شه او اولاد د رجز په میري ورځي او د اتو چه زوي د برگویت دي دوه
زهمن پیدا شول پتي او مهمند او د پتي دوه زهمن دي هوتي او چیني
او د هوتي څلور فرزندان دي فتح او شیخ علي او کمیل او مژي د شیخ علي
زوي حسن دي د حسن څلور زهمن تولد شول میم او محمود او کریم او
تمن د تمن اته زهمن پیدا شول درویش محمد چه په چنجو مشهور
دي بارک مندا ذري ناصر شاهد او شیخ احمد ملي او خواجي چنجو ته
حق تعالي پنځه زهمن ور کړل یو ملك اکو او مچوري او میر داد او مژي
دا څلور واړه له یوې موره دي چه مور د دوي اوریاخیله وَه پنځم غازي
خان مورئي بنگښه وَه ملك اکو ته حق تعالي اته فرزندان کرامت کړه یحیي
خان چه له موره کښي وَه او مورئي میژه خیله وَه نوم ئي تاروکه وَه بل نظام

هم له مٙوره کښي وه موړ ئي بولاقٙ وه ننډرکه نومیده بل یوسف خان هم له موره کښي وه نوم ئي د موړ دردانه وَه له اُلسٙ د غوریه خیلٙ له طرفه د مهمندو وَه بل تاتار خان چه موړ ئي ام الولدٙ وَه بل خضر او عبدالغفور چه غفور بیگ ورته وائي دواړه له یوي موره وُ موړ د دوي هم ام‌الولدٙ وه پنځو نومیده بل طاؤس خان چه موړ ئي پائي نومیده چیني وَه بل مصري چه موړ ئي ځلوزي وَه پس له فوتٙ د ملك اکو چه ملك او یوسف خان د بولاقٙ د لاسٙ شهید شول یحي خان په ځاي د پلار په اتفاق د تري د اُلس کښیناسته او نظام په حیات د پلار په ځواني مړ وه او یوسف خان چه نوي واده کړي وه یو لور ئي وه فاطمه نومیده یوسف خان دیر تهور وُ کړ خان ئي پلار ته وُ رساوه اما چه بخت ئي یاري وُ نه کړه کوښښ ئي فایده وُ نه کړه د پلار سره ئي شربت د شهادت وُ څښښ مذکور به ئي په خپل محل رایشي یحي خان له کشرانو وروڼو سره چه هیڅ یو لا بلاغت ته رسیدلي نه وه په قصاص ئي د پلار ملا وُ تړله په مدد د اُلس ئي رڼا ورځ په دښمنانو توره شپه کړه انتقام ئي د پلار واخست دښمنان ئي نیست نابود کړه

فرد

"چو دستت رسد مغزِ دشمن بیار که فرصت فرو شوید از دل غبار"

یحي خان ته حق تعالي یوولس زهمن عنایت کړه اول شهباز خان چه دا ئي تاریخ د تولد دي

تاریخ

"شهباز خانِ یحي آن خان بي بدل در کارِ رزم ثاني رستم زیاده یل
تاریخِ مولدش زخرد چون به جستمش گفتا ز روي صدق که شهباز خان اجل"

سن د هجرت پوره زر وه

بهادر خان عالم خان له یوي موره وُ قدیفه نومیده اسمعیل خیله وه او آدم خان له موره یکه وه موړ ئي مهمندئي وَه افروز خان موړ ئي کهترا وه نیك زنٙ نومیده له یوسف خانٙ کنده پاتو وه یحي خان په نکاح کړه او شریف

خان او جلال خان چه مور ئي بولاقۍ وَه لور د نازو خان وَه چه کشنده د
ملك اكوړه په بند كښيوته نوم ئي خانو وَه او محمد خان او شادي خان
مور ئي ام‌الولدۍ وَه رائي نومیده او عبدالله خان او حكیم خان مور د دوي پیر
خیله له اولادۍ د شاه اسمعیل نغري وَه پیر خیله به ئي ورته وي د یحي خان
سوا له دیو زهمنو اته فرزندان نور وؤ په طفولیت مړه شول پس له شهادتۍ
د یحي خان شهباز خان قایم مقام په ځاي د پلار شه د شهباز خان ځلور
زهمن لوي شول یو خان علیین مکان چه تاریخ د خپل ولادت په فارسي په
پښتو پخپله ویلي دي تاریخ

"خوشحال ختك در ربیع الثاني آمد چو درین كهنه رباطِ فاني
حق كرد ندا مرورا خیر رسان تاریخش گشت خیر عالمیاني"

دا تاریخ ئي په پښتو دي

"د هجرت زر دوه ویشت سن وه چه زه راغلم په جهان"

بل جمیل بیگ چه سکه ورور د خان علیین مکان وه مور د دوي
ځلوزئي وَه بل شمشیر چه مور ئي امیره وَه بل میرباز چه مور ئي مهمندزئي
د نوښهر لور د ملك باري وَه پس له شهادتۍ د شهباز خان نوبت د سردارۍ
په خان علیین مکان راغي

## ذكر د ختك د مكان چه له كومۍ راغلي دي او كوم كوم ځاي سكونت او توطن نیولي دي او تخمیناً حساب ئي د كورونو

اول سكونت د ختك په غره د شهال وه چه وطن د وزیر دي له هغه نه
ئي نقل و بنو ته وُكړ له هوني او منګلي سره آستیده هرګاه چه اُلس د
هوني او منګلي له عداوتۍ د شتیك او كیوي اخراج شه هندوستان ته لاړل
ختك د شتیك سره سكونت كاوه واله د صدرون د ختك په تصرف وَه پس

له هغه په سبب د عداوت په لور د لواغره د جونو غره او و تیري او کربوغه
او نشیشم او چوتره او الاچي او شکر دره لره راغلل تر نیلاب پور ملك ئي تر
ځانَ لاند کړ شیر خان سوریاخیل او تپه د ببزو و سونیالي ته راغلل پس له
یوه مدت آواز د شیر خان ورته را و رسیده چه وسیع ملك ئي په لاس
کښیوت انوخیلو هم پسي کوچ و کړ چنجو هم د کربوغي کوچ و کړ په شیخ تنګي
واړول رفته رفته انوخیل دلته راغلل نقل دي چه کوهاټ تر ریسي پورِ دا
ملك د ورکزیو وه بنګښ پرِ دپاسه راغي د ورکزي سره ئي جنګونه و کړه د
ختك هم د ورکزیو سره آزردګي وَه رفاقت ئي د بنګښ و کړ تر کوهاټ پور
له دا ملكَ ورکزي پاځاوه بنګښ و نیوه ریسي پټیاله زیره تر توره‌چیره بوره
چیره پورِ دا ملك ختك و نیوه پټیه‌خیل په کربوغه میشت وه دِ کربوغي نه
ملك اکو دِ عزیزانو نه آزرده شه و خوړي ته راغي په خوړه باندِ ماندوري
میشته وو ملك اکو میشته په کواز دره و کړه بیا ملك جاني چه په هغه
وخت سردار د پټیه‌خیلو وه عزیزانو پرِ عرض و کړ چه ملك اکو دِ په ناحق
آزرده کړ بویه چه بېځلا ئي کړي را ئي ولي دي پسي راغي ملك اکو ور سره نه
ته د ملك جاني هم دا ملك خوښ شه چه بیارته و رغي درسمند عالم به
هم په دوي باندِ زور زیاتي کاوه فکر ئي و کړ چه که زه دا اُلس له دي ځایه
بیایم وطن خوړ دي څوك به را سره لاړ نه شي د بنګښ سره یوه بدي و کړم
چه دا عالم واړه را سره خانه کوچ روان شي د درسمند په ښکار ښه ښه عالم
را وتلي وو په طریق معهود د دوي و کلي ته راغلل واړه ئي قتل کړه نور ئي له
هغه ځایه کوچ و کړ په شکر دره ئي واړول دماغ آوان پرِ خبر شول ملاحظه
ئي ځني و کړه چه د موږ ملك به و نسي تاخت ئي پرِ و کړ طرفین سره جنګ
و کړ دیر و مړل له هغه ځایه کوچ و کړ کوچ په کوچ خوړي ته راغلل بیا ئي
په سونیاله قرار و نیو

۲۴۱

## ذکر د ملك اکوړي او د ده د اولاد چه د تمام ختك خاني او سرداري پخپل خپل ؤار کړي ده

ملك اکوړي ولد درویش محمد چه چنجو ئې بولي وائي چه په توره دي مړني بهادر وه او سخي نهایت وه چه که صبا به ئي ووُ بیګاه ئي نه ووُ که بیګاه ئي څه موجود شوي صبا به ئي نه ووُ هر څه به ئي چه په لاس راغله صرف ئي د یارانو د فقیرانو ووُ بیت

"چه کښل کا توره سپینه دنیـا لوټي بازینـه
تیمرغند که نه شي د عنبرغند به شینه"

نقل دي چه له کربوغي راغي ؤ سونیالي وته یوه جماعه به ور سره وه همیشه به ئي تاخت باخت کاوه په هغه آوان دور د اکبر بادشاه او د مرزا حکیم د اکبر نا سکه ورور وه میرزا اکبر په هندوستان کښي .وه د کابل صوبه ئي په میرزا حکیم سپارلي وه شه بیګ چه د میرزا حکیم نوکر وه د میرزا حکیم له لوریه په پیښاور کښي وه چه میرزا حکیم مړ شه کابل اکبرؤ نیوه هغه شه بیګ خان کور شه بیا خان دوران د کابل صوبه‌دار شه وائي چه د اکبر بادشاه په وخت د هندوانو د جوګیانو ډیر قدر وه ملك اکوړي په سبب د غیرت مسلماني ډیر جوګیان وژلي ووُ چه اکبر بادشاه ته راغي دا خبره مشهوره وه اکبر بادشاه څني پښتنه ؤ کړه چه څو جوګیان دِ وژلي دي ده په عرض ؤ رسول چه نور مي شمارلي نه دي یوه موندره د غوږ چه مي ئي په مټ کښي ساتل ده لوي مټ څني ډك شوي دي ارشاد مي به د کلیمي ور نه ؤ کړ که به مسلمان شه امان مي به ور کړ کنه مړ مي به کړ نقل دي چه د شه بیګ خان کور ورور ئي د لاسه مړ شه په هغه آوان د اُلس زور نه وه دي ئي تنګ کړ چه دا هسي زورآور سړي د تا له لاسه مړ شه ته ور

درومه له موږه وُ وزه دي روان شه چاچو په پيښاور کښي ووُ شه بيګ خان کور ته حاضر شه ور ته ئي وُ وې چه دا تقصير د ما له لاسَ شوي دي اوس زه کفن او چاړه در لره راغلم شه بيګ خان سروپاي او څه نقد هم ور کړه رخصت ئي کړ ور ته ئي وُ ويل چه دا هسي دستګير به زه مړ ولي کړم ته ور څه په خپل قام کښي کښينه زه به په لښکر درشم جنګ به سره وُ کړوُ هرچه مي له لاسَ وُ شول څما د ورور خون بها ده ملك اکو چه و قام ته راغي قوم ئي هم ور سره ملا وُ تړله سنګر ئي د لښکر په ميله وُ کړ وائي چه دوه جنګ ئي عظيم وُ کړه طرفين سره ډير وُ مړل اما اُلس ئي له څايه بي څايه نه کړ شه بيګ خان په بيارته وُ جاروت پښوا تر راتلو د دي اُلس ماندوزي او ډنګرزي په دا ملك ميشته ووُ هرګاه چه اکبر بادشاه په تعاقب د مرزا حکيم راغي هاله لا قلعه د اټك بنارس بنا شوي نه وَه و نيلاب ته راغي ده په خصمانه د لاري زمين‌داران طلب کړه عبدالرحمن خورم ميرخيل او بعضي ډنکرزيو نوم د ملك اکو ور ته ياد کړ چه ده خپل څان نامدارکړي دي حسب الحکم د اکبر بادشاه ملك اکو ور ته راغي ملازمت ئي د اکبر بادشاه وُ کړ دا ملك ور ته مرحمت شه له خيرآبادَ تر نوښهرَ نور ئي څاي په څاي خپل عالم قايم کړ منصب ئي و ده ور کړ ملك اکو مرد دانا وه منصب ئي قبول نه کړ په عرض ئي وُ رسول چه که منصب زه يواځي واخلم دا نور قوم به را سره حسد وُکا خدمت به ستا سر به راه نه شي بادشاه دِ ګوشي په دا لارِ مقرر کا چه اُلس به په لالچ د حصه او د رسد د ګوشي خدمت د بادشاه په اعتقاد خاص ادا کا بادشاه د ده اِلتماس قبول کړ فرمان ئي د ګوشي ور کړ راغي و خپل قام ته ئي حقيقت بيان کړ وارو ملا ور سره په دولت خواهي د بادشاه وُ تړله اوس اُلس د ختك تر بلږه چه سرحد د يوسفزيو دي او تر لکي چه سرحد د عيسي خيلُ دي توطن لري تمام دا ملك به په طول د اوو ورڅو لار لري چه په غاړه د آب‌سند واقع دي هره

هره تنه خپل خپل حد طري حد د انوخیل دي له خیرابادَ تر غاښي د ځانګر چه سرحد د آفریدیو دي او حد د بولاقو له مکهدَ تر طري او حد د خټکو د چوتري چه میرخیل دي له دینګوته تر تلَ د دوربنو

ذکر د خټک د اُلس چه د نورو اُلسونو سره ئې بدي کړي ده

د انوخیلو د بنګښ د درسمند سره خصومت شوي دي ډیر قتال او جدال ئې یو د بله کړي دي د لوهانیو د عیسي خیلو د سارنګو د موسیانو د میري خیل د نصرتیو سره کرات مرات سخت جنګونه شوي دي دوه ځله لوهاني په چوتره راغلل یو ځله خلیفه ماشي خیل چه ښه کدخداي وه لوهانیو مړ کړ بیا میرنخیل او نصرتیو په سارنګ او موسیانو غلبه وُکړه له لکي نه ئې جلا وطن کړه و خشاب ته لاړل له وزیرو سره عداوت د میرنخیلو شوي دي بیا تریو او بولاقو په ملك د اوان د سون سکسیر او کهته تر سرحد د بهري او د خوشاب لاس د غلبي او د تسلط بیاموند دا ملك ئې خراب او اوجاړ کړ ډیر اوان ئې نرښځي بندي کړي کم و بیش ځلویښت زره اوان نرښځي په بند شوي وُ په ضبط په ربط د خان علیین مکان تریو بولاقو دست درازي پري ښوه هغه ملك د جبار قلي کهکر شه میر خان زوي د جبار قلي په اغوا د سنبلو بنګي خیل وُ بلل چه رفاقت ځمونږ وُ کړئ چه د بلوڅو سره جنګ وُ کړو اما خپل قول ئې مات کړ کم و بیش صل ځوانان ئې د بنګي خیلو مړه کړه بیا ملك اکو مرحوم دوه دري ځله په آفریدیو وُ زغاست بیا عداوت او دښمني د یوسفزیو په میراث خان علیین مکان ته پاتو شوه او جنګ دا وه چه یوسفزي ئې دِ مصري کوټ جلاوطن کړه مصري کوټ شاید مصري بانډي ته واِئي ښه ښه سرداران د یوسفزیو مړه شول یحي خان ملك مامو مړ کړ هر ګاه چه شهباز خان پښه په رکاب فتح‌ماب کښیښوه خوب او آرام د یوسفزیو

ورك شه کرات مرات ئي مندړ مړه که هرڅو پلار منع کاوه دي نه منع کېده د یوسفزیو په بدي کښي د پلار په حیات ئي سخت سخت زخمونه په تن آخستي وُ آسونه ئي په جنګ کښي ګډ کړي وُ پس له شهادتَ د یحي خان په وخت د خپلي سردارئي له مندړو له اکوزیو نه ئي خراج او باج آخست تمام مندړ ئي په ضرب د توري مسخر کړي وُ په میان د اتمانزیو او صدوزیو غلیظ او شدید عداوت وه نور مندړو د سیصدي او کمال زیو او امازیو حمایت د اتمان زیو وُ کړ لښکر ئي په وهل د مرغز جمع کړ اُلس د صدوزیو ملك الو عمرخیل زوي د ملك بلو چه یګانه آشنا د شهباز خان وه له څو نورو کدخدایانو سره په اتفاق ئي راستوه التجا ئي شهباز خان ته راوړه خپل احوال د کم قوتئي او غلبه د غنیم عرض کړه معاونت او استمداد ئي وُ غوښت شهباز خان د ډېره لښکره سره روان شه په مرغز ئي دیره وُ نیوه په ورتلل د شهباز خان اتمانزیو مندړو برهم وُ خوړ تفرقه شه کلي ئي د اتمان زیو وُ سول کم و بیش یوه مياشت هور ته وه کار ئي د صدوزیو محکم کړ بهاکو خان ئي خان او سردار د دري کړ صدوزیو ته ئي هسي نصیحت چه په کار د اُلس راځي وُ کړ دوي به پیښکښي د شهباز خان تر نظر تیره کړه نور را روان شه کور ته راغي هرګاه چه بهاکو خان استقلال پیدا کړ خاني ئي جاري شوه په سبب د خپلي کوته اندیشئي احسان ئي د شهباز خان فراموش کړ شیخ نظامي فرمائي

بیت

”دوستي از دشمن طبعي مه جوي آب حیات از دم افعي مه جوي“

دود دري څله ئي تمام مندړ جمع کړ د سیند غاړي ته راغي کلي د بولاقو خراب کړه یو څله شهباز خان په لږ جمعیت تر سیندَ ور پوري ووت په جهانګیره ئي ډېر جنګ وُ کړ د ختکو سورو سواره د یوسفزیو مات کړه دوه دري تیرَ پرتابَ ئي ماتي یووړه ښه سرداران ئي ملك چندن و غیره پریستل مړه ئي کړه کیجم دار آسونه په لاس راغلل لیکن پیاده ووُ د یوسفزیو

په پیادهوو د ختک زور وُ کړ را هسک ئي کړه په سیند ئي ویشتل نونس شل کسه ختک په میدان د جنگ وُ مړه خلوینبت پنځوس کسه په سیند ډوب شول شهباز خان چه احوال په دا منوال وُ لید له صفۀ د غلیم مطابق د سنت سیدالمرسلین مردانو غندي ځان له ورطي د هلاکت وُ یوست په جنگ جنگ په گدر د پیرسباك راغي یوه زبونه بیړۍ وُ لاړه وَه په هغه کښي کښیناست د قبیلي سره پوري شه اما بیړۍ په ډوبیدو وَه په هزار مشقت تر پوري شوه همه مسلح ځوانان آسونه برکستانونه سره په کښي وُ امید د خلاصۍ نه وه حق تعالي هغه کښتۍ را پوري کړه خان علیین مکان هم په دا بیړۍ کښي د پلاره سره وه لا جنگونه ئي لیدلي نه وُ زیره ئي په ځ نه وَه پس له دي واقعي په دوه دري میاشتي لښکر ئي د اُلس طیار کړ د مایتري په کلي د بهاکوخان وُ رغي هغه کلي ئي وُ واهه را وُ جاروت بهاکو خان پسي تعاقب وُ کړ شکست ئي بیامونده ډیر عالم ځني مړ شه د کچو په ترکي ځني پس مانده وُ ختل خلاص شول غانما سالما لښکر د شهباز خان کور ته راغي د هغه اول جنگ چه شکست شوي وه بیا په دا فتح نقش درست کښیناست اُلس د مندړ په اطاعت او په مال گذاري راغي دوه دري ځله بیا بهاکو خان لښکر جمع کړ تلاش تردد ئي وُ کړ اما هیڅ کار ځني وُ نه شه په سن د زر پنځوس د هجرت شهباز خان دِ لړه جمعیت سره په اکازیو چه تپه د کمال زیو ده په مال گذاري کښي سستي کړه سور شه حکم ئي په تاخت د مال مویشي وُ کر تر ډرو زیات غوا مویشي په لاس راغلي په هغه شپه باران هم ډیر ووریدلي وُ موسم د عین ځیلي روژه په خوله وَه غنیم ور پسي راغي جنگ شروع شه ساقي بیگ چه زوي د اوم خان وه آس ئي په غشي وُ ویشت شه شځ پائي وُ کړ له آسه پرووت زمکه خته لاي وَه ساقي بیگ پټ سپاهي وه په خته کښي پیاده تلي نه شه غلیم غلبه وُ کړه خان علیین مکان ساقي بیگ ته مت وُ کړ چه وا ئي خلي اما آس ئي پيَ شه په دا کښي ساقي بیگ له خان علیین

مکانَ په ستنه شه په تورو ئې وُ واهه په دا وخت چه خان علیین مکان نظر و خپل پلار ته وُ کړ دي په شقیقه په غشي ویشتلي شوي وه خپل آس ئې چه ګډ شوي وه او زنګون ئې چه په غشي ویشتلي شوي وه ور ته ښکاره کړ مطلب ئې دا وه چه دا احوال ئې پلار وُ ویني او جنګ پرېږدي روان شي چه بد ځاي ویشتلي شوي دي اما په دا ئې نظر نه وه ور ته ئې وُ فرمایل چه ته وړاندې شه په بل آس سور شه خان علیین مکان دوه دري تیر پرتاب چه وړاندې لاړ آسَ ئې پري ووت پیاده روان شه جمیل بیګ ورور ئې دنبال نیولي وه دي هم په لاس په غشي ویشتلي شوي لاس او نیزه ئې دواړه پیلي وه دوه دري تیر پرتاب چه لاړ هم هغه آس چه ساقي بیګ ئې پریستلي وه سورو نیولي را ووست په هغه آس سور شه پلار ته راغي یو بل غشي هم په دا تردد کښي پر ځنګل وُ ویشت شه اما جنګ ئې کاوه مال مویشي تر بلې را پوري کړ هاله جنګ منقطع شه میرزا علي حسن‌خیل هم په دا ځله مړ شه له لري ځایه نظر د شهباز خان په مرزا علي وه په عین جنګ کښي خان علیین مکان ته وُ وي چه میرزا علي ما لیده چه وُ مړ هرګاه چه جنګ وُ شلیده طاقت د سواري ور ته پاتو نه شه له آسَ کوز شه بند ئې د نیزو ور ته ساز کړ پیادوو واخست نماز خفتن کور ته راغلل په دا جنګ کښي هیڅ یو سور د موږ بي زخمَ کور ته را نه غي هر څوك په علاج د خپل زخم مشغول شه توبړيَ چه د خان علیین مکان د پښي په آدوکي کښي ښخ وه دوه دري تنو په انبورُ وُ نیو په زور به ئې وُ کیښ پس له دوو ورځو ئې خان علیین مکان را واخست پلار ته ئې راوړ دوه دري پرهارونه ئې نور هم ووُ عرض ئې وُ کړ چه کوم پرهار مه درد دیر کا وُ ئې فرمایل چه پرهار د سر خان علیین مکان وُ پوهیده چه دا زخم مشکل دي پس له پنځو ورځو چه په آخر د رمضان زخمي شوي وه په پنځ شنبي د شوال له دار فنا و دار بقا ته کوچ وُ کړ دا تاریخ ئې د شهادت خان علیین مکان په فارسي په پښتو ویلي دي

۲۴۷

تاریخ

"روز آدینه آخر رمضان خان ما رخش طرف میدان راند
کشت فیروز بر غلیم لئیم لیك زخمي ز تیر بر رو ماند
روز پنج شنبه اول شوال ایزد او را به سوي خلد به خواند
کشت سال شهادتش ز خرد که به خمسین و الف اسپ جهاند"

دا تاریخ په پښتو دي تاریخ

"سن د هجر زر پنځوس وه چه شهید شه شهباز خان"

له زخم سره کزن هم ؤ واهه دي ډیر په زړه زړه‌ور وه پروا ئې د زخم نه وه د یك شنبي په ورځ ئې اودس ؤکړ سرئې برهنه کړ مسح ئې ؤ کړه باد ؤ واهه دوه ورځي ژبه له کفتاره بنده شوه وصیت ئې ؤ نه فرمایه څلور فرزندان د ده پاتو شول یو خان علیین مکان چه مشر وه بل فقیر جمیل بیگ دریم شمشیر څلورم مبه باز هر کاه چه خان علیین مکان په سن و سال له نورو مشر وه په سردارئ د ایل د اُلس نامزد شه بهادر خان چه ئې مشر تره وه هم په دا کار متفق وه ترېرونه ئې هم په خدمت سرکرم وؤ فیروز خان او جلال خان او عبد الله خان په هندوستان وؤ له دي واقعي په لاري چه کور ته راتلل خبر شول په ډیر تلوار وطن ته را ؤ رسیدل پس له څلویښتو ورځو پښه د خان علیین مکان له زخمَ ښه شوه او پس له دوه دري ورځو ښکار ته روان شه حضرت شیخ بزرکوار شیخ رحمکار ته ؤ رغي دعا ئې تري ؤ غوښته لښکر ئې په بهانه د ښکار جمع کړ په رڼا ورځ ئې په انتقام د غلیم په کلي د اکاخیلو سواري ؤ کړه څو ور ته بهادر خان راضي نه وه چه دا رنګَ په رونړه سواري هیڅا کړي نه ده اما ؤ رغي اور ئې په کلي پوري کړ حکم ئې کړي وه چه سپي سړي هرچه په مخه درځي په قتل ئې رسوئ هرچه په مخه ور تلل دواب چارپاي نر ښځي هلکان په هیڅ صرفه ؤ نه کړه مړه ئې کړل د وینو رود ئې د دوي په غولیو کښي روان کړ وینې د سپیو د سړیو کډي

ودي بهيدي دوه دري كلي نور چه متصل د هغه كلي ووُ سواره وُ رغلل هغه يْ هم وُ سول نماز ديگر را وُ جارووت كمال‌زيو امازيو سيصدي لوگي وُ ليد شپږ اووه زره خلق ور پسي وُ ووت دوه كروهه ور پسني راغلل هغه ځاي چه شهباز خان زخمي شوي وه وُ دريده جنگ يْ شروع كړ دوي مات شول ځو تنه نور هم ترِ مړه شول نور را وُ جارووت تر بلړ پوري ور پسي لړ لړ راتلل نيژدي ور تلي نه شول چه تر بلړ را پوري شه په ځاي وُ دريدل نماښام نيژدي شه په دا تردد كښي يو بسي مطرب په توپك زخمي شه كور ته راغي مړ شه دا رنگ لويه فتح حق تعالي رايگانَ د خان عليين مكان نصيب كړه په دا ميان كښي فرمان د سردارئي له حضوره د بادشاه په نامه د خان عليين مكان صادر شه او منصب د پلار ور ته مرحمت شه نور مهم د جگتا پيښ شه مذكور د جگتا پخوا تير شوي دي

بهرام چه د توتكيه را وُ جارووت په كاروي واړول خان عليين مكان لږه يْ د عابد خان سره معركه ور ستوله چه په تا مه اعتبار نه شي اوس را پاڅه سراي لوري ته مكان خوښ كړه هغه ځاي اوسه خان عليين مكان په دا راضي نه وه هم په دا گفت گوي كښي ډير رد بد عابد خان ته وُ ويل هغه بي مروتَ هم چه څه پرِ ويل شول هيڅ صرفه يْ وُ نه كړه حق يْ د پدرئي د پسرئي هيڅ وُ نه ساته وُ يْ شاره بيا بهرام معركه د اُلس ور ستوله د اُلس د معركه سره لاچار خان عليين مكان د سرور ميلي ته راغي بهرام هم چه سراي ته راغي دا جماعه چه له سرايه تښي وَه په ميان عيسي كښي ناست ووُ خبر شه د شپي يْ تاخت پرِ وُ كړ يوه نيمه گړئي د شپي باقي وَه چه پرِ وُ خوت بعضي وُ نيول بعضي ترِ وُ تښتل تښي تر يوسف‌زيو پورِ په تصديع لاړل خفت او بي عزتئي نيوليو وته ډيره وُ شوه اما هغه گادي او بادي په لاس كښي نه وتل يو په لنگركوت وه يو وُ غرزيده خلاص شه نور بهرام راغي و سراي

۲۲۹

ته عابد خان هم لکه خوي د ده جبلي وه ما ته به ئي هم خطونه راستول د خان سره ئي هم کړ د بهرام سره ئي هم کړ بهرام د ده په کرتوت خبر شه را وُ ئي باله په حویلي کښې ئي ننیوست توپچیانو ته ئي حکم وُ کړ چه په توپکو ئي ولي چه توپک ئي ورته کښینښول دي په کوټه ننووت کوټه ئي پر دپاسه لوریه سروي کړه په لوټو په کانیو ئي ډیر وُ ویشت نور ئي په قید کړ بیا ئي حسن خیل ضامن شول خلاص ئي کړ وُ تښ چوتري ته لاړ نور بهرام مکرم زوي په خان علیین مکان بانډ تعین کړ چه زولاني یوسه خان علیین مکان قید کړه خان علیین مکان هم دا فوج وُ لید چه راغي یو ګوهر خان نصرت خان ور سره ووُ نور ئي توپک واخستل د غره و اړخي ته شول وغ ئي پر وُ کړ چه هرڅوک چه مردان یاستئ توري ته رایشئ د خان ادب په هر چا غالب وه اګرچه که هغه بد بخت دا ویلي هم وه د چا د لاس نه کیده د چینیو کدخدایان تر مینځ شول خان ئي د حصار تنګ و میني ته بوت د بهرام زوي بیا د فوج سره پلار ته راغي پلار ډیر غصه پر وُ کړه چه ولي مه هسي پریښ بیا ئي د لښکره سره پر ور ستاوه خان ګوهر خان هم د ما په لور رخصت کړي وه زه په هغه آوان د افریدیو په پوري کښې وم دي تنها ناست وه لښکر پر وُ رغي عالم به په حکم د بهرام له دي نه وُ رغي هور ته چه به ئي خان وُ لیده زړه ئي کړي نه شه چه لاس ئي د بدئي اورد کړي به وه توره وُ کښلي وَه ناست وه یو نیم حیض حرام زاده چه مفسد وه وخت ئي موندلي وه رد بدل به ئي و نور ځاي په ځاي لښکر ور ته ډیره شه چوکي ور ته ناستي و چه که دي غافل شي نور به ئي نیسوُ خان علیین مکان بانډ وخت وه د پیري په درکم اتیا کالَ عمر د ده چه وخت به ئي د نمانځه شه د د لښکر عالمو ته ئي وغ وُ کړ چه اي نا اهلانو هونبره فرصت خو را کاندئي چه زه اودس لمونځ وُ کړم غرض چه نهایت تنګي ور پیښه شوه سبحان الله په دا دنیا کښې دا هسې کارونه هم کیږي هغه یزید چه په امام حسین کړه د دنیا

مقصود و ته به ئې هم څه په نظر کښې وؤ دا هسې پلار چه په ځواني کښې کرسې حکومت فرزندانو ته پرېښ په ځان ئې نه کاوه هونبره شفقت او مهرباني او تربیت ئې د فرزندانو د هریک کاوه په دا وخت پیرانه سالي کښې د هغو خپلو عالیمو د لاسه چه دي به پرناست نازیده څه ـچارِ پرِ ؤ شوِ دا څو بیته چه خان علیین مکان د زماني د شکایت و یلي دي ؤ کښل شول

ابیات

د هرچا سره چه یو نفس قرین شوم د هغه د خویه بویه په زړه خوږین شوم
زړه مي خوږ په هیڅا نه شه په عالم کښې د عالم سره زیست کړم په ډیر ډیر غم کښې
چه د سود له مخه څوک را سره یار شه چه ئې خپل مقصود پوره شه نور ویزار شه
چه ئې مخ په مخ له تا سره وفا وي په قفا در سره خیر په صل جفا وي
چه ئې ښه کښي هغه در سره بد شي تل له تا سره په رخه په حسد شي
هرچه تا سره یاري کا نه یاران دي همکي واړه لړم دي یا ماران دي
زوي واړه رنځ دل د خپل بابا دي لونه کل واړه ژوري د ماما دي
که د یار دي که د خویښ دي که د ورور دي دخپل ځان دي د خپل سود دي د خپل کور دي
تش د خولي لباس مباس دي سره کیږي د هرچا خاطر خپل سود و ته پر کیږي
د راحت په وخت سل لاف د یارئ کا د محنت ساعت چه راشي ویزاري کا
شاه جهان بادشاه څه لږ نه وؤ نمنځلي چه په بند شه همکي وؤ ځني تللي
هي توبه له دي عالم تشي تشي په صحرا کښې یکتنها ګرزیدي خشي

آخرالامر بیا ئې د چینو معرکه ترمیان کړه دوړانو لره ئې وروست په دا میان کښې چا نیک خواهانو ور ته عرض ؤ کړ چه بهرام امیر خان ته کښلي دي چه دي ما دست ګیر کړي دي څوک راستوه چه ور ئې کړم څو ورځي په دوړانو کښې په طریق د قید ناست وه یوه شپه ئې فرصت غنیمت ؤ شماره په دا پیرانه سالي کښې په هغه شپه چه شل دیرش کروه توتکي مفاصله لري په دا هسي غانیمو په دا هسي غرونو و رسیده زه خبر شوم له بوړیو نه و توتکي

ته راغلم محي ته وُمي لیده دل جوئي مي ئي وُکړه زه بیا بوړیو ته راغلم دي. مه په مصلحت و زیړي ته د درش خیلو کلي ته رخصت کړ گوهرخان صدرخان یو ځو زهمن نور هم چه د ما سره وؤ ور سره لاړل خو ورځي په دا مقدمه تیرِ شوِ نور زه له بوړیو و یوسفزیو ته راغلم دي په هغه ځاي وه بهرام دِ سرایه تاخت پرِ وُکړ خان علیین مکان ئي په لاس را نه غي د افریدیو غریب ته وُ لاړ د ده رفقا ئي په لاس کښیوتل وُ مړل په دا قسم ئي دوه درِ ځله تاختونه پرِ وُکړل نور راغي د افریدیو په دنبره کښي ئي ځاي وُ نیوه زه چه یوسفزیو ته لاړم یحي خان صدرخان عجب خان چه قادرخان او باز شیطاني کړي وَه له بهرام ئي له ځان سره بدراه کړي ووُ یوسفزیو ته ئي بیولي ووُ دا دواړه شرمنده ورسرهِ دوي هم را لره را وستل ما هم نظر د دیو هغو بدیو ته وُ نه کړ دلاسا مي کړه

مصرع

"که خوي بدش دشمني در قفاست"

یحي خان صدرخان عجب خان چه په حادثه کښي بي صبره ووُ را ځني جدا شول دوي دواړه ورونه په خپل شامت چه بهرام کشتني کړي ووُ له ملاحظي ئي پرِویساه نه کړه را سره پاتو شول درِ میاشتي مي تیرِ شوِ امیرخان خوښ ترسیمه کړه وي بلکه هغه کال امیرخان د شنواري مهم د [illegible] کړي وه چه د مهمندو مهم کاوه دکه ئي د شنواري ته ور کړي وه لکه پخوا ئي مذکور تیر شه په دا سبب مهمند له شنواریو آزرده شوي وه او د امیرخان مطلب هم دا وه لکه د پښتنو متل دي یو خورم بل پخوم د ډکي په ورکړه په آخستل ئي دوي یو ځبله جدا کړه زور ئي کم شه مغلي فوجونه آفریدي ورکزي اُلسونه ئي پرِتعین کړه جنګونه ئي وُکړل اما په هر جنګ شنواري بري وُکړ د پښتنو اُلسونو هم تهیدل ور سره بدي نه کړه د مغل زر ئي خوړل په طریق د سپاهي ور سره ووُ آخر امیرخان وُ پوهیده چه دا کار نه تر سره کیږي صلح ئي ور دوړاندِ کړه فتح خان شنواري ور لره راغي مهم موقوف شه

په سن زر اته نوي زه هم وُ رغلم په جلال‌آباد کښي مي د امیر خان ملاذمت وُ کړ لاړم کابل ته د ما د منصب تجویز ئي هم وُ کړ بادشاه ته ئي واستاوه څه زر ئي هم و ما په طریق د مدد خرڅ مقرر کړه او هرچه د ما سره څه سواره وُ د هغو ئي علوفه وُ کړه چه جلال‌آباد لره راغلو د خان علیین مکان د فوت خبر راغي

## باب یادزهم در بیان افات زبان از غیبت و غیره

په احیاءالعلوم کښې دي راوړي چه غیبت هغه ته وائي چه پسِ شا په هسي خوي سره څوك یاد شي که هغه شخص پرِ خبر شي البته زړه به ئې بد شي که یو سړي د بل نقصان کا په بدن یا په صورت یا په نسب یا په کار یا په ویل کښې یا په دین یا په دنیا یا په جامه یا په آستانه یا په دابه کښې په دا هم آزاریده وړي هغه شخص دي په غیبت کښې (فایده) په تفسیر دُرر کښې هسي وائي له سرورَ د غیبت چا سوال وُ کا سرور هسي ور ت وه وِ چه غیبت و دي ته وائي چه څوك پسي شا په هسي خوي یاد شي که ئې واوري پرِ آزار شي که هغه بدي په کښې وړي د هغه نامه غیبت دي او که هغه بدي په کښې نه وي د هغه نامه بهتان دي (ف) په قرآن کښې دي راغلي بایده دي مؤمنانُ چه غیبت سره مه کانړئي چه یو ورور د بل ورور غوښ سره خوري مرداري خو ب بد ور ته ښکنديږي هسي غیبت د مسلمان غوښې خواړه دي البته له غیبتونُ پرهیز کانړئي (ف) پیغمبر دي فرمایلي کینه بغض تاسِ یو څبله مه کانړئي هم غیبت سره مه کانړئي چه بندگان د خداي تعالي دي سره ورونړه په ښه مهر وروري کانړئي (ف) پیغمبر دي فرمایلي چه تر زناه هم غیبت دیر بد دي له سروره سوال وُ شه چه په څه سبب تر زناه غیبت بد دي حضرت هسي ور ته وه وِ زاني چه له زنا توبه وه کا

هغه توبه قبولۍ شينۍ غيبت همېره بخښه نه شي څو ښتن ئې د غيبت وه نه بخښينۍ بل دا هسې احتمال دي چه زنا كندِ په زوروي او غيبت ئې په خپل رغبت سره كوينۍ (ف) روايت دي هسې شوي چه خداي وحي وموسي نبي ته وه كه چه څوك وُ مري توبه كاروي له غيبتۍ تر همه خلقُ ورستي به په جنت كښي داخلېږي اوكه وُ مري له غيبتۍ توبه كار نه وي تر همه خلقُ ورنبي به په دوغښ كښي داخلېږي (ف) پيغمبر دي فرمايلي چه په شپه د معراج وه رغلم پر هسي قوم باند چه مخونۍ دوي شوكول په نوكونۍ له جبرائيلۍ مي سوال د دوي د حال وُ كه چه دا څوك دي جبرائيل وِ دوي هغه دي چه به ئې تل كړل غيبتونۍ (ف) حضرت عمر هسې ويلي د خداي ياد پر څان لازم كانړئې اي خلقُ چه شفا ده د بل چا له يادولُ د بدئې بيارته كيږئې چه جفا ده (ف) روايت دي هسې شوي چه غيبت كا په قيامت به هغه شخص و خداي ته حضروين خپله څيرئې به ئې په لاس كښي وركوين هغه شخص به هغه خپله څيرئې گوري خپل عمل به د نيكئې په كښي نه ويني دي به وائې دا څيرئې د عملونۍ څما نه ده چه په كښي كښلي عملونۍ څما نه دي و ده ته به دا هسې څواب وُ شي دا څيرئې د عملونۍ هغه ستا ده تا غيبت وُ په دنيا كښي د چا كړي ستا عملونۍ د هغه څيرئې له تللي بيا به بل سړي و خپل خداي ته حاضر شي خپله څيرئې به ور په لاس شي دي هسې نيكي په كښي ويني چه هرگز ئې كړي نه وي دي به وائې دا څيرئې د عملونۍ څما نه ده چه له ما دا عملونۍ شوي نه دي و ده و ته به هسې څواب وُ شي چه دا ستا هغه څيرئې ده ول فلانه سړي چه ستا غيبت ئې په دنيا كښي وه كړي ستا څيرئې لره راغلي د هغه سړي نيكي ده (ف) روايت دي هسې شوي چه جابر هسې ويلي موږه له سرورۍ سره ووُ د مردارئې بد بوي موږ لره راغي سرور هسې را ته وه وِ څه پوهيږئې چه دا گنده بوي د څه دي اصحابُ ور ته وه وِ نه پوهيږو چه دا گنده بوي د څه دي

اصحابُ ور ته وه وِ را ته وایه پاكْ رسولَ حضرت هسي ور ته وه وِ چه غیبت كاند د خلقْ دا د هغو د خلي بد بوئي ده (ف) كه څوك وائي څه حكمت دي چه بد بوئي د غیبتونُ د سرور په وقت كښي ظاهره وَه اوس څمورِ په زمانه كښي نه ظاهیرېږي د دي سوال جواب ئي دا دي چه څمورِ په زمانه كښي غیبت ډیر شه د عالمو پوزي ډكِ شوي دي له بوي پرِ غه بوي نه پوهیږي لك د بل ځاي څوك سړي وِي په مهلت د چمیارانو كښ كوزیږي له بدَ بوئي طعام زغملي نه شي نه ئي آرام و قرار كیږي او هغه چه هلته اوسي د دوئ پوزي ډكِ شوي وي له بوي طعامونَ په كښ خورین پر غه بوي نه پوهیږي (ف) هسي زده كړه چه غیبت تنها د خلي په ویل نه دي كه په غیبت اشارت وه ك یا په كښلو غیبت وُ ښكي هم غیبت دي لكه بي‌بي عایشه چه اشارت وه كه په لاس سره هغي عورتیني ته چه كوتهه وَه په قد كښي و بي‌بي ته سرور وه وِ تا غیبت د هغي وه كا چه په لاس دِ اشارت په غیبت وه ك (ف) د غیبت رښتیا كول غیبت كول دي لكه سړي د چا غیبت كا بل یو هسي ور ته وائي چه رښتیا دي (ف) كه یو سړي د چا غیبت كا بل سړي خله پټه ناست وِي چه ئي آوري كه پر منع ئي قادر وي منع نه كا دغه آرویده غیبت دي چه رسول خداي دي ویلي آرویدوني د غیبت صاحب غیبت دي آرویدوني د غیبت به له گناه هله خلاص شي چه پر ژبه دِ انكار پر هغه وه كا چه پرهیز شي یا خبره دِ ترمیان كا چه غیبت ورځني وران كا یا دِ پاڅي له هغه ځايَ د غیبت له آرویدو دِ ځان امان كا كه پر دا باند قادر وِي وُ ئي نكړ دي به خپسر گناه گار ك (ف) كه په خله دا هسي وائي غیبت مه كړه او په زړه دي په رضا وِي آرویدوني له گناه نه خلاصیږي منافق دي (ف) په تفسیر زاهدي كښ په تفسیر د سورتِ حجرات كښ هسي وائي كه سړي وِي په گناه سره مشهور وِي هیڅ غیبت د هغه هسي سړي نشته لك سرور دي فرمایلي چه څوك د شرم چادر واچوي له مخه بي حیا

شي په گناه کښ هیڅ غیبت د هغه نشته دي په دین کښي بل حدیث دي له سرورَ هسي شوي چه سرور دي فرمایلي گناه گار چه په گناه سره مشهور وي غه گناه ئې یادوئي و عالم ته چه عالم تر بیارته کیږي (ف) یو شخص له پاکَ سرورَ سوال وه ک هسي عمل و ما ته وه ښیهٔ سروره چه هغه عمل زه وه کړم له دوزخَ پرِ خلاص شم په جنت کښ داخلیږم پاك سرور په دوه گته خپله ژبه وه نیوله چه که دا ژبه نگاه کړئې له بدئې په نیکي ئې چلوئې جنتونَ له به تاسِ ور وه لین که یله مو کړه پرِ بد کفتارونَ اي امتَ هم دغه ژبه به تاسِ و دوغښ ته رسوین (ف) په کِفایه شعبي کښي هسي روایت دي له ابي‌بکر هسي شوي چه به ابي‌بکر دا خپله ژبه را وُ کښوه په زوره چه به وینه شوه له زوره بیا دا هسي به ئې وه وِ چه دا ژبه به موږ په هلاکت کښ آچوین (ف) په شریعة الاسلام کښ هسي وائې چه حضرت ابو بکرِ صدیق د سرور یار به تیږه کیښوه په خله کښ له خبرو به ئې ځان نگاه کاوه په تکلف کښ (ف) که څوك نیت کا د خبرو بایده دي چه دِ کاند هغه خبره چه په کښ یاد د خداي تعالي وِيِ یا امر معروف نهي منکر وِيِ له خبرو بیهوده بي فایده‌وُ دِ پرهیز کا څموږ سرور به خوله نیوله تر دیره چه د خبري اراده ب د ده وُ شوه په خبرو ب ئې یو ساعت دمه کړه ده به ښه فکر په کښ وه کړ ده به هله وه ویله چه ثواب به ئې کنړل چه ثواب به په کښي نه وه ده به خوله پرِ پټوله (ف) بعضي وائې که څوك ژبه څپله نگاه ك خپل عیبونَ به د ځان واړه نگاه کا که هر څو خبره لږ وِيِ هغه ویونکي دِ سپکه نه گنړین دیري خبري چه سړي پرِ هلاکیږي هغه شخص به په کښ هیڅ باك نه گنړین په سبب به د هغي یوي خبري اویا کالَ په دوزخ کښي پاتو شین (ف) په احیا کښي دي راغلي چه مهتر عیسي وه ویلي پ لس قسمَ عبادت دي چه نه قسمَ عبادات ئې خاموشي ده لسم ئې له خلقَ تښتیده دي (ف) په کفایه شعبي کښ هسي وائې د یوّ حکیم له بلّ سره

ديدن شه هغه يو و بل ته وه وِخو دِ وه ليده په خلقُ کښ عيبونَ هغه هسي ورِ ته وه وِ چه په خلقُ کښي ما وه ليده هزار هزار عيبونَ ول په دوي کښ ما موندلي يو خصلت دي که هغه خصلت نګاه کا کل عيبونَ به ئي پټ شي هغه خصلت د ژبي خاموشي ده چه نګاه ئي کا له خبرو به امان شي ډير ويل څه لوي آفت دي څو بلا ب په خبرو مسلط وِي (ف) په اسرارالعارفين کښي هسي وائي چه په خلوت عمر ابن خطاب هر جمعه حساب کاوه له خپله نفسَ چه به شپه د جمعي راغله ده به ځان دره وه وهله ښخپله و خپل نفس ت به ئي وه وِ چه اي نفسَ تا فلانه فلانه خطا ول کوله (ف) روايت دي هسي شوي چه ربيع ابن حشم چه به صباح شه قلم کاغذ به ئي حاضر کړِ چه ښخپله به ئي خبري څه ويلِ هغه خبري په هغه ساعت ده وه کښلِ په بيګاه به ئي حساب جګړِه له ځان سرِه کوله د زاهدانُ د صالحانُ عمل دا دي چه په زو. به [illegible] نګاه بائي کاند د ژبي په دنيا کښي ئي له نوس سرِه تل حساب دي (ف) لقمان حکيم ويل زوي ته اي زويَ هر چه مل شي د بدانو سلامت نه پاتِ کيږي د بدئي په ځاي چه کښيني بد تهمت ور ته رغيږي چه ئي ژبه په واك کښي نه وِي په آخر به پښيمانيږي تاسُ وارؤئ مومنانُ اوس خمورِ په زمانه کښي د ژبي آفت ډير شه چه الفاظ د کفر ډير ترِ پيدا کيږي د دي ژبي له خطائي دا ايمان ترِ خطا وِي ول دي پرِ نه پوهيږي بايده دي په هر وقت په هر ساعت کښ چه خپل ايمان تازه کوئي چه دا خپل ايمان له کفرِه وه ساتئِ احتياط په دين کښ کانږئِ هميشه دا خپل نکاح نوي کوئي ښه بيدار شئِ په حق دين کښي د زنا له شبي ځان خلاصوئِ ګند خلاص شئِ له دوزخَ وه رسيږئِ د جنت و بادشاهئِ

## باب سيزدهم در بيان حق مرد بر زن

په انيس الواعظين كښې هسې وائي يو ويشت حقَ د ښښتن دي پر عورت
اول حق د ښښتن دا دي چه صحبت لرهٔ ئي بولي هيڅ بهانه دِ ور ته نه ک
كه بلنَ ئي د ده قبوله نه كړه لك مار له پوست وُوزي هسي دا له عبادت ب
ود وزين دويم حق د ښښتن ډا دي چه خپل ځان دِ و ښښتن ته دا په ښ
زينت لرين دريم حق د ښښتن دا دي چه بي اذنَ د ده مال نه خرڅوين
چه سرور دي فرمايلي چه ثواب ئي د ښښتن شي دا گناه پرِ وه كتين څلورم
حق د ښښتن دا دي چه بي اذنَ د ښښتن دِ دا روژه نفل نه لرين چه دا
بي له لوږي تندي نور به هيڅ نه حصلوين پنځم حق د ښښتن دا دي چه
بي اذنَ د ښښتن دِ دا له كورَ نه وُوزين كه دا وه وته بي اذنَ فرښتي به پرِ
لعنت كا تر هغه پوري چه پ بيارته دا و كور ته راشين شپږم حق د ښښتن
دا دي چه دِ ځان د بيګانه له نظرَ وه ساتين كه دا ځان نګاه كوين دا
ب خپسر له دوزخَ وه ساتين اوم حق د ښښتن دا دي چه ښښتن ئي پرِ
غضب شي عورتينه دِ سخت ځواب نهِ وركوين اتم حق د ښښتن دا دي چه
ښښتن دِ له سوالَ هم له هسي رنګ كارَ چه به دي په كښي سپک كيږي البته
منع كوين يو سړي وه چه سرور صاحب له راغي عرض ئي وُكا چه سرورَ ښما
نيت وه چه له تا بَ د څه سوال كړم له سوال كولُ منع ارتيني كړم او مولي
رزق پر ما فراخ كا پاك سرورِ و چه ښما سلام پرِ وايه چه ورنبئي به په جنت
كښ داخليږي هم ديدار به ستا له خدايَ روزي كيږي نم حق د ښښتن دا
دي چه د ښښتن مال دِ په مهر په ديانت سره وه ساتين په خپل كور كښي
كوښه دِ ناسته كوين و دهليځ ته دِ دا نژدي نه كښينين پاس پر كوټه دِ دا د
پاسه نه خيږين تر ديوالَ له هغه خوا دِ كاونډي سره خبري نه كوين لسم
حق د ښښتن دا دي چه خذمت دِ د ښښتن د ميلمانه په ځاي كوين هم

٢٠٦

پښپله په اخلاص دِ دا طعام تياروين له يارانُ محبانُ د ښځې دِ مروت محبت كا ښه خدمت ئي دِ كوين يو لسم حق د ښځې دا دي شفقت مينه دِ دا له فرزندانُ د ښځې نه دريغ كوين دو لسم حق د ښځې دا دي كه ښځې د دي بد رنګ وي په ښايست دِ په ښځې كبر دماغ دا نه كوين دا دِ سپك دي په خپل نظر كښې نه راوړين ديار لسم حق د ښځې دا دي چه خدمت دِ دا د خپل ښځې ښه كوين يو سړي وه چه رسول خداي پوښتنَ ځني وه كړه چه عورتينه در سره ځه كه هغه سړي هسي ور ته وِ چه لك وينځه خدمت ګاره دا ځما هسي خدمت كوين سرور هسي ور ته وه وِ دغه ښځه جنتي ده نزديكت به په جنت كښې دا له خداي حصلوين څوارلسم حق د ښځې دا دي كه ښځې ئي خوار فقير وي دا دِ سپك وُ نه ګڼرين كه ئي سپك شي په نظر كښي په لعنت به دا د خداي ګرفتاره شين پنځه لسم حق ښځې دا دي كه ښځې د دِ رنځور شي دا دِ خپل خدمت له دا نه دريغوين همبره جق ئي د خدمت ئي له يوه لوريه د پوزي كه د ده ويني بهيږي له بل لوريه زوي عورتينه كه هغه په ژبه وه ځټين لك خوي د خدمت دي هغه پر ځاي كوين (ف) رسول خداي هسي ويلي عورتينه چه اوه ورځ د ښځې خدمت كوين له دوزخ به اوه وارِه اندام د ده خداي نګاه كوين له اوه وارِه دوزخ به خلاصيږي هم ثواب د عبادت د اويا كاله بيامومين شپاړسم حق د ښځې دا دي چه خپل فرش دِ له ښځې نه جدا كوين اوه لسم حق د ښځې دا دي كه ښځې د ده له كسب كړه عاجز وي څرخه دِ دا ود ريشي كسب دِ كاند نفقه دِ و ښځې ته رسوين (ف) رسول خداي دي فرمايلي يو درهم چه عورتينه په ښځې باند نفقه كا اويا غرونَ به د زرو ثوابونَ ور كوين اتلسم حق د ښځې دا دي چه مدد په طاعت كښي له ښځې سره كوين و عبادت ته دِ ښځې له خوب بيداروين په طاعت كښي دي ځان شريكوين نو لسم حق د ښځې دا دي چه خدمت دِ د خپل كور

هم د پخلي خصمانه زیرمه دِ په ښه مهر کوین په خپل لاس دِ دا کور جارو کوین عورتینه لرِه سنت دي چه په اوره کول دِ له وینځو سره دا مدد کوین شلم حق دَ ښښتن دا دي که ښښتن ئي کور نه وي پرهیزکارَ پاك دامنَ دِ دا خپل ځان ښهٔ وه ساتین په تماشا په بي شرمئِي دِ دا ساعت نه تیروین بیګانه سړي دِ کور ته نه پریږدین هم په اول وقت کښي دِ نمونځ ادا کوین د خداي په یاد کښي دِ همیشه مشغولوین یو ویشتم حق دَ ښښتن دا دي چه دِ دا د ده دپاره د نیکئِي د برکت دعا کوین د ده دپاره دِ توفیق د عبادت له خپله خدايَ وُ غوارین که ښښتن د دي وفات شي ځلور میاشتي لس ورځي دِ په غم ځان خوارَوین په شیوه په ښایست ځان نه جوړوین ول هسي کار دِ نه کا چه له شرع غیروین بي ښښتنَ چه د بل چا غم پرِ ورشي تر درِ وُرځ دِ ځان زیات نه خواروین .

---

## باب چهاردهم در بیان حق عورت بز مرد

یو ویشت حقَ د عورتِ دي پر ښښتنِ باند اول حق د ښځي دا دي پر ښښتن باند چه د دي حق دِ د مهر ورکوین مستحب دي چه ښځه دِ خپل مهر وخپل ښښتن ته وُ بخښین (ف) رسول خداي دي فرمایلي عورتینه چه ښښتن وته خپل مهر وُ بخښین جنت دي لرِه واجب شي شفاعت به د سرور دا وه ګڼین دویم حق د ښځي دا دي پرِ ښښتن باند نفقه دِ و عورتهٔ ته رسوین له خلیل سرِه به مل شي په جنت کښي هم بلندي مرتبي به په جنت کښي وه ګڼین دریم حق د ښځي دا دي پرِ ښښتن باند چه صحبت دِ له ده سرِه په ځلور ورځ کښي یو ځله نه ترکوین ځلورم حق د ښځي دا دي پر ښښتن باند چه اسباب دِ د سر ولوني فراغت ورکوین یوه ښځه وَه سرور صاحب لرِه راغله عرض ئي وُ که چه ښښتن مي د سر ولوني اسباب و ما نه

راکوین چه اسباب ئي زد له خپله کسبَ کړم پاك سرور ورته وه وِ ته لايقه د جنت ئي.دي لايق د دوزخونُ چه ستا حق نه درکوین پنځم حق د ښځي دا دي پرِ ښخبتن باند مستحب دي چه خوشبوئي دِ ور ته ورکوین خوشبوئي چه له دي دروړمي سل فرښتي به ثوابونَ د ده وُ کښي چه له خپله کسب ښځه خوشبوئي کا دا ثواب به هم ده لرِه ورکوین شپږم حق د ښځي دا دي پرِ ښخبتن باند چه دِ وینځه یا مریي یا مزدور د دِ خدمت وته سپارین اووم حق د ښځي دا دي پر ښخبتن باند د صحبت ځاي دِ د دي جدا کوین اتم حق د ښځي دا دي پر ښخبتن باندِ چه پرده باند دي فرض چه ایمان اودس نمونځ روژه د شریعت واړه حکمونَ دِ و ښځي ته ښیين او که دي پرِ نه پوهیږي له عالم دِ دي زده کا چه و دِ ته ئي ښیين نهم حق د ښځي دا دي چه ښخبتن دِ ور ته علم وُ ښیين په نرمي دِ له اولَ ور ته وائي پرِ لته دِ هنمبره نه وهین ك عمل ئي پرِ وُ نه کا په سختي دِ ور ته وائي که په دا هم عمل نه کا دي دِ دا په لته وُ وهین ك په دا هم عمل نه کا طلاق دِ ورکوین (ف) یو سړي وه پرِ سرور ئي عرض وه که چه عورته مي پند نه آخلي حضرت هسي ورته وه وِ.چه ته قهر ور ته وُکړه ده وِ قهرمي دي کړي بیا حضرت وِ ته ئي وُ وهه په لته ده ویل ما وهلي ده په لتُ بیا حضرت ور ته ویل چه طلاق ور کړه ده وِ اوس مي کړه طلاقه بیا سرور وِ خداي تعالي به بله ښځه دینداره هم مالداره خوب صورته درکوین یوه میاشت لا تیره نه وَه چه دعا ئي شوه قبوله لسم حق د ښځي دا دي چه ښخبتن دِ محبت مهر نرمي پر دي کوین چه سرور په نرمي په محبت سرهِ بي بي عایشه ته دا رنګ ویل چه یا روحي یا ریحاني یا محبوبي رسول خداي هسي ویل چه له کوره سرهِ د مهر د نرمئي خبري کاند په قیامت به خداي تعالي وده ته اندوه نه ورکوین یو لسم حق د ښځي دا دي که دِ ده توان وي د سرو زرو د سپینو زرو د مرغلرو د ریښمینو دي دِ دي له ورکوین (ف) یو سړي وه چه سوال ئي و سرورِ صاحب ته وُ ك چه مي ښځي له ور

کړي د سرو د سپينو زرو حليه دهٔ سرور هسي ور ته وه و چه دغه ستا خزانهٔ دهٔ او د ښځي دِ ښيوهٔ دهٔ دولسم حق د ښځي دا دي پر څښتن باند چه خپل کور ته دِ خبری د هغه عورتينَ نه لګ چه سرهٔ زرهٔ انعام ئي ډير د پلار له کورهٔ وي موندلي چه تر دهٔ پوري به دا سرکوزِ شين ديارلسم حق د ښځي دا دي لګ دوه ښځي وي د دهٔ يوهٔ غني بله فقيرهٔ په هر حق کښي دِ دي دوارهٔ سموين د فقيري سپکاوي دِ دي په فقر نه کوين څوارلسم حق د ښځي دا دي پر څښتن باند چه له ورونړو له مورَ و پلارَ د خپلي ښځي دِ دي ښه اخلاص کوين پنځهلسم حق د ښځي دا دي چه ښکنځل دِ ور ته نه کا چه لعنت ب ڤرښتي پرِده وائين شپاړسم حق د ښځي دا دي پر څښتن باند په حضور د خپلي ښځي دِ دي لاس و خپلي وينځي نه ور وړين اودلسم حق د ښځي دا دي که له کورهٔ ئي دا بي اذنَ څه واخلي هسي قهر دِ ور ته نه کا چه کاونډي به ئي واروين اتلسم حق د ښځي دا دي پر څښتن باند له سفرَ چه راځي دي دِ کور ته څه راوړين اګرچه نور څه نه وي تيرهٔ دِ راوړين نولسم حق د ښځي دا دي پر څښتن باند چه دي دِ و دِ ته پند د عبادت د خداي دپارهٔ دير کوين شلم حق د ښځي دا دي که دا وُ مري دي دِ د دي د فرزندانُ آشنايانُ ښه حرمت په ځاي لرين يوويشتم حق د ښځي دا دي چه دي دِ د دي دپارهٔ د نيکئِي دعا کوين

## باب سي و هشتم در بيان فضيلت جماعت

په حجت الاسلام کښ دي راوړي چه په حديث کښي دي راغلي په جماعت نمونځنه کانړئي جماعت مه ترکوئي چه يو نمونځ په جماعت کول افضل دي تر هزار رکعتَ چه تنها وي (ف) په روضةالعلماء کښ دي راوړي چه سرور دي فرمايلي ما سوال له جبرئيلَ هسي وُ لګ را تَ وُ وايه اي وروره چه څما د امت ثواب څو دي د امام په جماعت کښ جبرئيل هسي

جواب وُ ك دوه سرِي چه جماعت د نمانځه وُکا د سل نمونځونُ ثواب به خداي ورکوين چه درِسرِي جماعت وُکا د تیر سو نمونځونُ ثواب به خداي ورکوين چه څلور سرِي جماعت وُ ك د شپږ سو نمونځونُ به ثواب خداي ورکوين چه پنځه سرِي جماعت وُ که د دوو زرو نمونځونُ به ثواب خداي ورکوينِ چه شپږ سرِي جماعت وُ که د څلورو زرو نمونځونُ ثواب به خداي ورکوين چه اوه سرِي جماعت وُ که د دیرشو زرو نمونځونُ ثواب به خداي ورکوين چه اته سرِي جماعت وُ ك د شپیتو زرو نمونځونُ به ثواب خداي ورکوين چه نه سرِي جماعت وُ ك د نوي زرو نمونځونُ به ثواب خداي ورکوين چه لس سرِي جماعت وُ ك دا دریابونَ که همه سره سیاهي شيِ او دا ونِ قلمونَ او سرِي پیري ملایک وارِه کاتبان شيِ او دا زمکه آسمانونَ او د ونُ پاڼرِي ورقونَ شيِ وارِه کاغذونَ د یوه رکعت ثواب وُ کښو نه شيِ چه ثواب ئُي شي بي شماره د نوشتن قدرت ئُي نه شيِ (ف) په روضة‌العلما کښ هسي وائُي ترجحً هم له امامً سره ورِنبي تکبیر بهتر دي له امامً سره یو رکعت بهتر دي تر هزار دیناره چه په فقرا ئُي صدقه ك له امامً سره یوه سجده بهتره دَه تر بنده ازادولُ هم به قبر د ده باغ شي د جنت له ښو باغونُ دروازي به د جنت شيِ ور ته بیارته گور به هنمبرهِ پرِ فراخ شيِ چه به ویني جنتونَ شپیته ملایکِ ب د هغه پر قبر هره ورځ حضریرِي همیشه به د ده دپاره استغفار کا هوسیرِي په جماعت چه څوك مَین وي له دنیا ب هنمبرهِ نه ځي څو وُ نه څښي ذ جنت له خوارِه جوي نعمتونَ او وُ نه خوري د جنت خورِه میوه ښه لذتونَ (ف) جماعت سنت مؤکده دي څمورِ حضرت دي فرمایلي جماعت کول سنت د راه راست دي مسلمان به ئُي په قصد نه ترکوين مگر هغه چه منافق وي چه سنت مؤکده ترك کوّل په قصد بدعت دي نه ښائين (ف) په مفتاح الجنانِ کښ د مسجد په فضیلت کښ دي راورِي خواجه امام زاهدي له سروره نقلُ کرِي تر وقت پخوا چه څوك

۲۶۵

مسجد لره ور درومي د پنځو ویشت زرو نمونځونو ثواب به مومي په وقت د بانګ نماز چه به مسجد لره ور درومي د پنځو زرو نمونځونو ثواب مومي په وقت د تکبیر چه څوك مسجد لره ور درومي د یوه نمانځه ثواب به مومي (ف) مقتدي چه تر امامَ پخوا سر کښته پورته وړین ګناه ګار شي هیڅ ثواب به ئې نه وین (ف) په تفسیر منیري کښ دي راوړي هره ورځ د پاك الله اراده وُ شي چه عذاب به په دنیا نازلوم که دا څلور طایفي نه وي اول هغه سړي چه په محبت سره د خداي دپاره کار کاند محبان وي دویمه طایفه د عاشقانو چه په وقت د سحرګاه آه فریاد ئې وي و خپل خداي ته دریم هغه سړي چه دوي بنا دٔ مسجدونو خاص د خداي دپاره کاند صادقان وي څلورم هغه سړي چه دوي خاصه د خداي دپاره خیرات کاند دوي امید له چا نه کاند بي له خدايَ (ف) سفیان ثوري هسي ویلي چه د سرور له صحابهؤ به جماعت چرِ قضا شه اووه ورځِ به عالمِ عذر خواهي ور ته کوله تکبیر اولي چه به قضا شه درِ ورځِ به عالمِ عذر خواهي ور ته کوله (ف) په ورځ د قیامت به د څلورو طفُ عذر و مولي ته قبول نه وي اول هغه چه اذان واروي جماعت له نه ور درومي دویم هغه سړي چه ئې د حج توښه موجوده وي حاضرهٔ ول حج لره دي نه ځي دریم هغه سړي دي چه به طعام خوري او سایل څنِ محروم ځي څلورم هغه سړي چه ګناهګارِئې ویني هم پر منع ئې قادر وي ول منع ترِ نه کا (ف) په حدیث کښي دي راغلي چه د نیک بخت نښاني درِ دي اول رزق به ئې حلال وي دویم له صالحانو به ئې مینه هم صحبت وي دریم نمونځ به ئې عادت په جماعت وي هم د بد بخت نښاني درِ دي اول رزق به ئې حرام وي دویم مجلس به ئې دایم له فاسقانو وي دریم نمونځ ئې بي امامَ یک تنها وي (ف) ابن عباس له پاك سروره سوال وُ ك چهَ د دي هسي سړي حال به هورِ څه وي ما خبر کړه چه نمونځ روژه حجونَ کاند ول نمونځ په جماعت سره دي نه ك سرور

هسی څواب وُك چه تنها لمونځ ئي عادت شي دوزخي دي بيا يوه مياشت ابن عباس څخه سوال وُك حضرت هسي ځواب وُك چه دوزخي دي (ف) په مكتوبات د شيخ معين الدين كښ دي راغلي چه له شقيقَ بلخي يوه ورځ لمونځ پر جماعت كول قضا شه پنځوس دراهم ئي خيرات كړه يوه مياشت ور ته عالم عذر خواهي كړه په روضة العلما كښ دي راوړي له حسنَ بصري دي نقل شوي چه امام دِ پرهيزكار وي آراسته دِ وي په نهو خصلتونً چه امامت ئي شي خالص د خداي دپاره پاكيزه له نقصانونً چه امام د قوم ضامن دي ضامنان دِ وي كامل پ پيروي د سنتونً اول قاري په قرأت د قرآن كښ دِ بهتر وي دويم د سرور په ټيه سنتونً ټيه دانا وي دريم پرهيزگار دِ وي له لقمي د شبه او د حرام څلورم دِ د اودس په كار دانا وي پنځم په خوي دِ وي نيك خوي چه نيك خوئي دا خصلت د انبياؤ شپږم پرهيزكار دِ وي له طمع چه دا طمع لوي تاوان د آخرت دي اوم صابر دِ په رحمت او په ضرورت وي چه صبر خصلت د فايضانً اتم راضي دِ په قضا وي چه راضي په قضا نه شي دغه قهر پر مولي دي نهم قناعت دِ كا د خداي پر قسمتونً چه و دا وته قسمت د خداي رسيږي پر هغه دِ قناعت كا شكر دار د نعمت وي دا مقام د شاكرانً اولياؤ امامان دِ پر عمل كا لسم باركښ دِ وي د خلقً يولسم زړه دِ پريكړي له دنيا وي تعلق دِ ئي د زړه په حب د عقبا وي دولسم ترس ناك دِ وي له خدايه دا مقام د خداي ترسانً خداي ترسي كړئي امامانً كه له خداي نه ويرېږي هغه لمونځ ئي ترغوږونو نه تيرېږي چه د امام لمونځ نه قبلېږي د مقتديانو لمونځ په څه خداي ته قبلېږي (ف) په كفايه شعبي كښ هسي وائي مرتبي د لمانځه دري دي اول عمل ئي روا كيده دي دويم عمل و پاك دركاه ته پورته تله دي دريم د عمل په لوي دركاه كښ قبليده دي بايده دي چه امامان دِ ټيه لايق د امامت وي چه مقتديانً ته دا واړه مرتبي حاصلي د قرابت وي (ف)

په کنزالاخبار کښې هسې وائي چه څلور څیزه وحشي دي بې څلور څیزه نه حصلیږي اول علم وحشي دي بې تکراره نه حصلیږي بند کیده ئې په تکرار دي پرِ زیاتیږي دویم ایمان وحشي دي په نمانځه د جماعت سره حصلیږي دریم مالونَ د دنیا واړه وحشي دي چه حصلیده ئې خپلیدد ئې په زکات دي چه پاکیږي څلورم صحت د بدن وحشي دي حصلیده ئې په خیرات دي دارو کیږي (ف) په روضةالعلما کښې دي راوړي له کعب ابن سعیده روایت دي په هر کلي چه په وقت د نمانځه جماعت نه شي خدای تعالي به ئې شیطانان پرِ مسلط کا چه خوراک خوري شیطانان به ور سره خوري چه اوبه څښي شیطانان به ور سره څښي چه دوي خوب کا شیطانان به ور سره خوب کا (ف) په تنبیه الغفله او په احیا کښې دي راوړي چه یو ځلَ جماعت ود قضا شوي له ولي حاتم اصمَ عذر خواهي بعضي یارانُ ور ته وُ کړ دي په ژړا شه هم له خلقُ ئې ګله کړه که زوي څما مړ وي نیم اهل بلخ به څما عذر خواهي کړه چه جماعت له ما قضا شه بي له بعضي محبانُ نور و ما ت هیڅا عذر خواهي وُ نه کړ که فرزندان مي واړه مړه وي هغه غم په ما اسان به ود خو چه جماعت مي قضا شه وي هزار حیف دي پرِ عالم چه د دین غمونَ عجب سپك پرِ دوي باند آسان شوُ (ف) په احیا کښې دي راوړي چه د قیامت ورځ شي قایمه څن عالم به له قبرونُ هسي پاڅي چه مخونَ به ئې بریښي لکه ستوري ملایکي به ور ته وائي څه عمل ود په دنیا کښې تاسُ کړي چه دا هسي مرتبي وُم شوِ حاصلي دوي به وائي عملونَ څموږ دا وُ چه اذان به وُم تر غوږ تیر شه نور به پاڅیدو و اودس ته په نور څه به مشغول نه وُ څو تیاري به وُم کوله و صلوة و عبادت ته څن نور عالم به پاڅي چه مخونَ لك نور هسي بریښنا ك چه هغه و پښتیده شي دوي به وائي عملونَ څموږ دا وُ چه په مسجد به موږ به هسي وقت حاضر شوُ چه اذانونَ به هلته واوریدد شوُ (ف) پیغمبر

دي فرمايلي مسلمان چه منتظر وي و اذان ته چه اذان د مسجد واوري زړرا وُوزي و مسجد ته زر ملايکي به پسِ درومي په تعظيم به ئي کوين خداي تعالي به ګناهونَ ور بخښين په حديث کښي دي راغلي چه په مسجد کښي داخليږي او په خله دا کلمه وائي بِسْمِ اللّٰهِ دَخَلْنَا وَ عَلَي اللّٰهِ تَوَکَّلْنَا د عملونُ په خيري ... ي به وُ کښه شي پنځوس زره نيکئي کل ګناه به ئي باخښه شي هيڅ زره د ګناه به پاتُ نه شي (ف) په حجة الاسلام کښي دي راوړي چه څوک رڼرا کا مساجد په چراغونَ ور بخښل شي هميشه ګناهونَ د اويا زره کلونَ هم په خيري کښي به ئي وُ کښه شي نيکي د اويا زره کلونَ که په مسجد کښي څوک بوريا وُ غوړوين چه پرِ نمونځ څوک ګذارين اويا زره ملايکي به ئي له خداي عفوه وُ غواړين که څوک جارو کا مسجدونَ دوي به پاك كاند مولي له ګناهونُ (ف) په احيا کښي دي راوړي هر سړي چه تاسُ وينئي چه عادت ئي د مسجد وي جنت ګواهي پرِ ولي (ف) په تنبيه الفقيه کښي دي راوړي ودانول او جارو کول د مسجدونُ په جنت کښي به د حورُ وي مهرونَ

## باب پنجاه و سيوم در بيان امر معروف و نهي منکر

په مسعودي کښي دي راوړي په امر معروف نهي منکر چه څوک قادر شي دي ئي نه کا ترِ ساکت شي دا حرام دي په حرام به ګرفتار شي په کاشف کښي دي راوړي امر معروف نهي منکر کول پر خلقُ باند فرض کفايت دي چه ئي ترک کاند ... ګناه ګار شي ول کله فرض عين شي لکه سړي په هسي ځاي وي چه ... له ده په ګناه هيڅوک خبر نه وي لکه سړي چه د عورتِ يا د فرزند يا د ... ګناه وُ ويني په دا وقت به پر ده امر معروف نهي منکر ... فرض عين شي (ف) په نصب الاحتساب کښ دي راوړي که سړي ... ته وائي چه ته ... معروف ول چا ت نه کړي

يا دا هسي ور ته وائي چه فلانه سړي ته امر معروف وُ کړه هغه هسي
څواب وُ کا چه امر معروف کړه څما څه کار دي يا فلانه سړي څما
څه کړيَ چه نصيحت ور ته کوم يا دا هسي څواب وُ کا چه ازار له دي
سړي و ما ته نه دي رسيدلي يا دا هسي څواب وُ کا چه غرض څما پر
نشته په دا وارو څوابونُ کافر کيږي (ف) په سراجي کښي هسي وائي که
سړي هسي خبر شي چه فلانه سړي گناه کا که پوهيږي چه امر معروف وُ
کړم و دد ت دي به بيارته له گناه شي دي ډِ امر معروف وُ کا که پوهيږي
چه به منع څن نه شي امر معروف که ور ته نه کاند روا دي چه فساد
څن پيدا شي (ف) په تذکرة الاوليا کښي دي راوړي چه بازيد بسطامي و
ت چا وُ وِ چه ول خلق نه بولي و خداي ته بازيد و هغه سړي چه خداي
بند کړي دي په قيد د گناهونُ بازيد کله توانيږي چه ئي خلاص کا له قيدونُ
(ف) په مشکات کښ دي راغلي له ابن سعيدَ روايت دي چه رسول خداي
ويلي چه په ورځ د قيامت به خداي سوال له بنده وُ کا چه گناه به د
بده ول ډِ منع څن نه کړه دا بنده به ور ته وائي چه له خلقَ ويريدم او د
عفوِ اميدوار يم له تا نه دغه عذر ئي هله دي چه له قهرَ ئي ويريږي او پر دفع
ئي د قهر قادر نه وي که قادر وي پر دفع بي ويلَ عذر نه وي (ف) په تنبيه
الغافلين کښي دي راوړي چه عبدالله ابن مسعود هسي ويلي که سړي چرِ
گناه د بل څچا ويني ول د منع توان ئي نه وي دا ئي عذر دي و خداي ته چه
په زړه پر ناراضي وي او بعضي اصحابُ دي ويلي که سړي وي گناه ويني او
پر منع قادر نه وي دا ډِ وائي درخلد چه پاکَ خدايَ دا گناه دي زړ په
زړه څن منکر يم د امرِ معروف نهي منکر ثواب به دد لره روزي شي (ف)
په معرفت الولي په رسالهٔ قريشيه کښ دي راوړي چه بايزيد بسطامي هسي
ويلي که سړي وي چه له ډيرَ کرامتَ مصلي ئي پر اوبه باندي غوړيږي يا په
هوا کښي ناسته کاند کرامت د دد حاصليږي پر دي هسي کرامت ئي غرد او

غلط مه شي څو پر امر معروف او پر نهي منكر او په شرع مستقيم نه ودريږي بايزيد بسطامي وته چا وُ وِ چه دا خلق هسي وائي چه فلانه سړي په يوه شپه تر مكي پورِ ور دورمي بايزيد وِ چه شيطان هم په يوه سترګه څنبل له مشرق تر مغرب پورِ دورمي ول شيطان رانده لعين دي په آخر به دي كافر له دنيا دورمي (ف) په كيمياي سعادت كبني دي راوړي هسي زده كړئ مومنانُ چه اميد پرِ هغه كانړئي چه تابع د شريعت وي مستقيم د پاك نبي په ښه سنت وي (ف) شيخ ابو القاسم كرماني دي فرمايلي كه په سرد اوبو دورمي يا پر هوا آلواته كا يا خبري كا له غيبَ دغه هيڅ كرامت نه دي كرامت هغه ته وائي چه سړي بندد د شرع د مصطفي شي له جمله فعلَ حرامَ او نا رواو پرهيزكار شي شيطان له غيبَ هم خبري كاند هم بتان له ډيرَ كارَ كا خبرونَ څه په دا اوليا نه شوُ اعتبار په شريعت وي چه په شرع مستقيم وي خلاف نه كاند له شرع هغه شخص خاصه ولي دي هم صاحب د كرامت دي په جواهر ثمينه كبن٠دي راوړي "به دان كه ذرد شناخت بهتر از عالم يافت" مراد له شناختَ معرفت د خداي د ذات او صفات دي مراد له عالمَ يافت د كشف كرامت دي معني ئي دا دي چه يوه ذره د خداي د ذات د صفتونو معرفت بهتري لري تر كشفَ تر همه كرامتونُ عارف هغه ولي ته وائي چه د خداي په معرفت هسي مشغول وي چه د خلقُ پرِ قبول په رد ئي چري نظر نه وي په هر حال دي طلبدارِ د خدايِ تعالي د ښه رضا وي (ف) په كفايه شعبي كبني دي راغلي روايت دي هسي شوي په قيامت به يو سړي له خپله اهله سره خداي وته حاضر شي د خداي امر به دوي ته هسي وُ شي چه همه وارِه جنت لره ورځئ هغه اهل به د نيكَ دعا كاند و سړي ته دا به وائي چه ته ښه پند كوي څموږ وي طاعت ته منع كړوني وي څموږ له كناه بيا به بل سړي له اهلَ سره خداي وته حاضر شي د خداي امر به و دوي ته هسي وُ شي چه همه وارِه

دوغبښ لره ورځي هغه اهل به په ده باند دعا کاند د بدو دا به وائي چه ته ځه بد مل وي ځمورږ په دنیا کښي چه دِ مورږ له بدئي منع نه کړو نه دِ امر ذ طاعت وُ کړ و مورږ ته ځکه مورږ په دوغبښونځ کښ له تا سره بندیان شوو (ف) په ارشاد المستعطین کښي دي راوړي چه خداي ترس سړي هغه دي په اخلاص چه دي له نهي شي په بیارته که په نهي کښي مشغول وي چه په ظاهر خلقځ ته ژاړي مکر کاند سترګي مږي هغه ترس له خدايَ نه دي دي بنده عاصي کاذب دي (ف) چه امر معروف کاند بائده دي چه خاصه دي د خداي دپاره کاند په بادشاه دِ ویره‌ول د خنقځ نه کا خاص په خداي دِ د عالم ویره‌ول کا (ف) په کیمیاي سعادت کښي دي راوړي چه په حدیث کښيْ دي راغلي وحي وُ کړه خداي تعالي د یوه قوم و نبي ته چه اراده مي هسي وُ شوه چه له قومَ دِ یو لك سړِي هلاك کړم چه ځلویښت زره نیکان دي او شپیته زره بدان دي هغه دِ دوي نبي سوال له خدايَ وُ کړ پاكَ خدايَ د نیکانځ څه ګناه دي خداي تعالي وِ نیکو کار په دا سبب هلاکوم چه دښمني ئي له بدانځ سره چرِ کړي نه ده په خوراك کښ هم په ناست په ولاړ کښي له بدانځ سره ګډ دي له دوستئي له محبتَ له روزګارَ ئي بَیل نه دي چه له دوي سره مینه محبت کا په طفه د بد بختانځ کښي حساب دي (ف) رسول خداي دي فرمایلي مومنان چه بي ګناه وي په قیامت به عذاب نه شي مکر په دا به دوي عذاب شي چه ګناه په سترګو ویني منع نه کاند خاموش شي (ف) پیغمبر دي فرمایلي چه څوك امر معروف نهي منکر کا د خداي په ملك کښي خلیفه د خداي تعالي دي هم خلیفه د پاك رسول دي هم خلیفه دي د قرآن کلام الله دي له علي کرم الله وجهه نه هسي شوي روایت دي چه افضل تر غزا هم امر معروف نهي منکر دي

۲۷۳

باب شصت یکم در بیان مشیخت و ارادت و در بیان آنکه پیر که را گونید و مرید که را گونید

په تفسیر چرخي کښ په تفسیر د دي آیت "اِنَّ لِلْمُتَّقِیْنَ عِنْدَ رَبِّهِمْ جَنّٰتُ النَّعِیْمِ" کښ دي ویلي په تحقیق چه په درگاه د خدای تعالي کښ خدای ترسانۍ لره ډیر دي نعمتونه بي له خدایه نور پرِ هیڅوک خبر نه دي په دنیا کښي به د هیڅا په خاطر تیر شوي نه وي هم لیدلي به د هیڅا سترګ نه وي یوه بزرګ هسي ویلي د درویش بخره دغه ده چه تقوا دِ خپل عادت کا دا دِ زده کا چه وعده ده د نیکۍ په قرآن کښي خدای ترسانۍ لره شوي نه دانشمندانۍ زاهدانۍ نه شیخانۍ متقیانۍ نه حاجیانۍ نه غازیانۍ خواجګانۍ چه حرام مالونه آخلي دوي مکرونه هسي کاند چه و خلقۀ طعامونه ورکوین و خپل ځان ته خلقه رجوع کوین (ف) په نفحات کښي هسي وائي بایزید بسطامي چه به نماز کړ له هیبته د خپل خدای له بزرګ ګنړلۀ د سنت رسول الله به ئي هډونه د سیني پرِ آواز کړ له ده چا هسي سوال وُ کړ را ته وایه فرض.سنت د طریقت د لارِ ځه دي بایزید هسي ځواب کړ چه فرض د طریقت طلب د خدای دي او سنت د دغي لارِ عین ترک د دنیا دي

بیت

"اي که در شرع خداوندان حال | میکني از سنت و فرضم سوال
سنت آمد رو ز دنیا تافتن | فرض راه قرب مولي یافتن"

(ف) په مشارق الانوار کښي هسي وائي که یوه لویشت ځوک و ما وته نیژدي شي زه به ګز ور ته نیژدي شم که یو ګز ما ته نیژدي شي زه به هغه ته یو وازه نیژدي شم

بیت

"یک صبح به اخلاص بیا بر در من | گر کار تو بر نیاید آنکه گله کن
اي بنده به من گریز خود را یله کن | گر شاه جهان نه گردي آنکه گله کن

رو گردِ جهان به گرد پا آبله کن گر به زمن یابي ما را یله کن"

(ف) په احیاء العلوم کښې هسې وائي مرید هونبره مرید نه وي څو په قرآن کښې ئې مراد موندلي نه وي هم زیاتي نقصان ئې خپل په قرآن نه وي پیژاندلي بائِدد دي چه مرید دِ بخپل خداي باند غرد وي په اخلاص دِ له مخلوقَ مستغني وي (ف) په احیاء العلوم کښې هسې وائي مرید چه مبتدع وي چه جاهل په شریعت وي هغه شیخ دِ اول اودس نمونځ ظاهر عبادت ور ته ښیئن که مشغول وي په حرام یا په نور کناد گرفتار وي هغه شیخ دِ امر هسې ور ته وُ کا چه هغه وارِد ترکوین چه ظاهر ئي ښایستد په عبادت شي اندامونَ ظاهري له ظاهر گناهونَ په پاکي شي پس نه دي دِ و باطن وُ ته نظر کا چه خویونَ ئي د نفس باطن رنځونَ ئي معلوم کا د مرید مال که د حاجت تر قدر زیات وي هغه مرشد دِ زیاتي مال ورځنِ واخلي په فقرا دِ خیرات کا له هغه مالَ دِ زړد کلي فارغ کا چه دي دِ نظر په دنیا نه کا کبر لوئي خود نمائي که پر غالب وي و بازار نه دِ دي وُ وزي گدائي سوال دِ وُ کا خپل لوئي کبر دِ ورك کا چه د ځان په خوارولَ په دنیا کښې د سوال تر کمیني بل هیڅ کمیني نشته څو مدد دِ همیشه گدائي کاندِ چه غرور کبر ئي ورك شي چه دغه خود پرستي کبر لوئي ده چه عالم ډیر پرِ هلاك شي که غضب قهر پر ده باند غالب وي حلیمي خوله پټ والي دِ پر ځان باند لازم کا که و دد وته آزار څوك رسوین دي دِ صبر پرِ کوین که غصه پرِ غلبه شي هغه قهر دِ زغمین تر هغه پورِ دِ دا رنګ کوښښ کا چه کمیني او حلیمي ئي عادت شین (ف) په رساله برهان جلالي کښې هسې وائي ولي کیده په ډیر علمونَ سرہ نه وي که په ډیر علم بزرګي وي بلعم باعور به هم ولي وُد چه دولس زره ئي شاګردان ووُ دولس زره مشوانړئي به ورځخه و چه په کښلُ ئي د علم مشغولا وَه هم هسي ولایت موندد په ریاضت نه دي چه د زمکي پر مخ ځاي هسي نشته چه د شیطان پرِ سجده نه وه ول دا شیطان پرِ ولي نه

شه هم هسي ولايت موندہ په نسب نه دي چه ډير اولاد د انبياؤ کافر شوي هم هسي ولايت موندہ په ډير مال سرہ نه دي که په ډير مال ولايت وي قارون به اوليا ؤہ هم هسي ولايت موندہ په ډير سخاوت نه دي په سخاوت که څوك ولي وي فرعون غند سخي چرِ څوك نه وؤ فرعون به هم ولي ؤہ هم هسي ولايت موندہ په ډيرو مريدانُ سرہ نه دي چه څنِ هسي رنګ سرِي وي چه لس زرہ يا دولس زرہ مريدان ئي وؤ نيولي ول د دوي ب لايقت د مريدانُ نيوہ نه ؤہ هم هسي اوليا کيدہ په کشف کرامت سرہ نه دي چه دا ويرہ په کښي شته دي چرِ نه چه استدراج وي لکه فرعون چه رود نيل به ئي په حکم کښي روان شه ولي کيدہ خو په يوہ خصلت سرہ دي په قرآن کښي خداي تعالي دي هغه خصلت دو سو ديرش ځايه راوړي چه هغه خصلت تقويٰ دہ لكئ خداي دي فرمايلي "اِنَّ اَكْرَمَكُمْ عِنْدَ اللّٰهِ اَتْقٰيكُمْ تقويٰ" هغه ته وائي هر چه خداي پرِ راضي نه وي او فرمايلي ئي څه‌ورِ حضرت ته نه وي له هغه پرهيز کوين په هغه چه خداي راضي وي او پاك سرور ته ئي ويلي په زړہ ئي قبولوين په عمل ئي هم راوړين که له تقويٰ سرہ هم علم رياضت وي هغه شخص به خاص ولي وي حقاني وي (ف) په رساله قدسيه کښي هسي وائي هر سالك چه ؤ رسيږي هم د زړہ د ژبي فرق ئي سرہ کيږي چه ظاهر مشغولا ئي له حضورہ منع نه وي هسي حضور ئي له ظاهرَ منع نه وي ارشاد کول مريد نيول و هغه وته هله اجازت کيږي رسيدہ د سالك دا دي چه اثر وي د فنا پر ظاهر شوي و مقام د "سَيْرِ فِي اللّٰهِ" وي رسيدلي دا مقام ئي د جذبه الهي دي سالك چه د جذبه اثر ؤ ويني په خپل ځان کښي البته چه په جذبه الهي تصرف کاند د بل چا په باطن کښ دا تصرف ئي تصرف د پاك الله دي "اَجْمَعُوْا وُضُوْءَكُمْ جَمَعَ اللّٰهُ تَعَالٰي شَمْلَكُمْ" اشارت و دي معني ته چه اودسِ باطني جمع کوئي له اودسِ ظاهري سرہ چه ورکه هغه ستاسِ تفرقه شي استقامت باطني در ته حاصل شي استقامت باطني دا دي چه د

توحيد په كلمه كښې ئې كلي تعلقات جسماني روحاني ورك شي چه تعلق ئې واړه ورك شي دغه حال استقامت دي پرِ استقامت د حال دليل استقامت دي د افعالُ استقامت د افعالُ دا دي چه تمامي امرونَ نهي د خداي تعالي پرځاي كوين فرمانونَ د ده عظيمِ كنړين (ف) اهل تحقيق دي ويلي چه پرورش د سالكانُ په جمال جلال وي څو موندلي دوي محبت ذاتيه وي يو علامت د محبت ذاتيه دا دي چه هغه صفات د ذات چه اثرونَ د دوي ضد وي لكه ضرر نفع عزت خواري دواړه و سالك وته يك سان شي په ضرر نفع د ځان ئې نظر نه وي دي خاصه محب د ذات وي اهل تحقيق دي ويلي په دنيا كښې خداي تعالي و اولياوُ هغه څيز عطا كوين چه په آخرت ئې و اهل د جنت له اولَ وركوين هغه صفت د خداي تعالي كُنْ فَيَكُوْنْ دي چه ولايت ئې پرِ كمال شي په صفت كُنْ فَيَكُوْنْ يِهِ سر فراز شي اراده به ئې مظهرِ د ارادي ازلي شي لكه ويلي دي بزرگانُ

بيت

"چون جنين خواهد خدا خواهد چنين ميكند حق آرزوي متقين"

ول په سبب د كماليت د معرفت به په ادب وي اراده ئې خپله د خداي د ارادي تابع لرين بي د خداي له ارادي دا هسي نه وائې چه وُ شه يا به شين كارونَ واړه و خپل خداي وته وُ سپارين كه دا هسي صفت چرِ ترِ ظاهر شي بي اختيارَ به له ده غه پيداوين

بيت

"چون ولي را هست قدرت از اله تير جسته باز گرداند ز راه"

(ف) په قدسيه كښې هسي وائې د خداي د طلب مينَ چه د چا په زړه پيدا شي د اهل اللهُ و مجلس ته مينَ دار شي پرِ هغه شخص باند خاصه فضل د خداي دي د طلب ظهور په زړه كښې لوي دولتِ الهي دي خداي تعالي كه اراده د تجلي كړل د بنده په زړه كښې نه وي دا اراده نور به په

زړه کښې د طالب کله پیدا وَه طلب دار به د خداي نه وُه هم مجلس د اهل اللهٔ به دِ ده اختیار نه وه (ف) په قدسیه کښې هسې وائي طریق د اهل الله کم دیدن هم کم شنیدن دي هم نیستي هم محتاجي ده هم د عمل قاصر کنړل دي د خپل حال ناقص لیده دي انانیت بشري په بل څه هله نه ورکیږي بي له دي چه له عملَ څان قاصر کنړي کمیږي (ف) په حدیث قدسي کښې دي راوړي د خپل بنده زړه چه خالي زد بیا مومم د دنیا له محبتَ هغه زړه به ئې زه پر کړم له خپلَ محبتَ (ف) حضرت خواجه دي فرمایلي.

بیت

"سه نشان بود ولي را ز نخست آن سه معني که چو روي او به بیني دل تو به او گراید
دویم آنکه در مجالس چو سخن کند ز معني همه را ز هستي خود به حدیث مي رباید
سیوم آن بود به معني ولي اخصِ عالم که ز هیچ عضو او را حرکات بر نیاید"

۲۷۷

له کتابَ دَ کلیله و دمنه یا علم خانهٔ دانش

تصنیف دَ افضل خان ختک

ځوي دَ اشرف خان نمسي دَ خوشحال خان

۲۷۸

# کلیله و دمنه یا علم خانهٔ دانش

## باب دریم په غورِ نه یستل خبري د چغلخورو

راي دابشلیم وُ وِ مقصودِ له وصیتَ اولَ دا دي چه بادشاهان دِ نظر په خپل کار او په خپل بندوبست لري مصراع "که با شاه خویشي نه دارد کسي"

د بادشاهانو دوستان ورونړه هغه دِي چه د دیو په مدد کار دِ تور دِ تدبیر او د ملك د بندوبست سر به راه کیږي بیت

"یک نوکرِ مطبوع به از صد فرزند این ملكِ پدر خواهد و آن عمر خداوند"

د دنیا عالم که قابل خدمت سلاطین وِي که قابل د خارکشي وِي مرتبي بلندي وته د هر چا زړه پړکیږي لکه د بادشاه نظر په خپل شرم و ننګ بندوبست د ملك وِي هسي د نورو نظر په خپل دولت عزت په دا کبنِ چه بادشاه څوک لائِق د خدمتکارئِ وُ ګنړي د خپل کار د پاره ئِ تربیت کا واړه عالم کینه حسد پرِ کاندِ بیت

"حاسدان هستند ما را باك نیست بي هنر آن کس که حاسد نیستش"

بلکه مخصوصان د بادشاه چه یو په کبني په مرتبه د قابلیت منظورِ نظرِ بادشاه شِي حسد لا زیات کاَ په دروغ به رښتیا ئِ ور ته چغلوي او بعضي عالم چه حاسدِ دولتِ بادشاهي وِي منافقان یادیږي هغه لا په بنیاد کني د دیو هسي مصاحبانو سعي کا چه په دا کبني زوالِ دولت ویني بیت

"ضرب المثل دي د دانايانو غليم چه دوست کړي دوست دِ غليم شي"

په دا کارکښ بادشاهانو ته څه رنګ احتياط بايده دي په خوا تر دا هم کاهي دا هسي معامله چه دوستي په دښمني په ويل د بد ګويانو بدله شوي وه شوي دد چه پند څني واخست شي لکه دانايانو ويلي دي رباعي

"مرد هنرمند خرد پيشه را عمر دو بايست درين روزگار
تا به يکي تجربه آموختي با دګري تجربه بردي به کار"

عمر دو باره د سړي هم دغه عبرت دي چه له امرنيو پند آخلي برهمن وُ و قصه د مزري د ګاو شتربه دليل دِ تا په دا ويلو دد راي وُ وِ څه رنګ وه هغه حکايت - راوري ئي دي چه يو سوداګر وه چه ګرمي او سردي د روزګار ليدلي وَه شيريني او تلخي ئي د زماني څښلي وَد د دد دري زهمن وو چه په سبب د مستئي شيوه ئي د پرهيزګارئي پري ښي لاس ئي په مال د پلار دراز کړي. وو عمر ئي په بي کاري او په بي هموارئي تيراوه پلار مهربان په ډيره مهرباني ور ته وُ وِ چه اي فرزندانو قدر د مال چه په جمع کول ئي تاسو رنځ څکولي نه دي نه پيژنئي په نژدي د خردمندانو معذور ياستئي او بائده دي زده کړئي چه مال پنګه د نيکيو او سبب د خوبيو دي اهل عالم جويان د درو مرتبو دي اول فراخي د دولتِ دنيا دوهيم زندګاني درازه و لوئي د جاه دريم رضامندي آلهي او په دا کارونو نه رسي مګر په څلور خويه اول حاصلول د دنيا د مال له حلالَ او هر چه په. دا کسب په لاس راشي قدر ئي وُ پيژني او ښه ئي وُ ساتي چه عقل فرمائي هغه شان ئي خرڅوي او له بدو کارانو له بدو همنشينانو پرهيزکول بيت

"من فليل په يوه مچ سرهِ بد بوي شي بد دِ نه شي يو زمان همراه د چا"

بائده دي چه مځ له کاهلئي وُ جاربا‌سئي او ملا په کسب حلال پسي وُ تړئي هر چه مو له ما نه څه زده کړي دي په عمل ئي راوړئي مشر زوي ور ته وُ وِ اي پلارَ موړه ته کسب کول فرمائي او دا خلاف له توکلَ دي په دا

مي يقين دي چه هغه رزق چه مقدّر دي که هرڅو په طلب ئې سعي نه کړم را ؤ به رسي او هغه چه څما نصيب نه دي څو چه په جست و جو کښي ئې کوښښ کوم سود نه لري ابيات

"گرچه که روزيت رسد در زمان آنچه نه باشد نه رسد بي گمان
پس ز پي آنچه نه خواهد رسيد رنجشِ بيهوده نه بايد کشيد
روزي تو باز نه گردد ز در کارِ خدا کن غمِ روزي مه خور"

ما آرويدلي دي چه يوه بزرګ ويلي دي هرچه څما نصيب وه هرڅو چه له هغه تښتيدم لکه سيورد را پسي وه او هغه چه څما نصيب نه وه څو زهِ پسي تلم له ما په تيښته وه پس که زهِ کار کړم يا بي کارَ کښينم خپل نصيب به و ما ته رسيږي مصراع "نصيبهٔ ازل از خود نه مي توان انداخت"

لکه داستان د باشاه د دوارو زويو ګواه د دي حال دي چه د يوه ګنجِ بي رنج په لاس کښيوت دويم په اميد د خزاني د بادشاهيِ له تختَ پريوت پلار ؤ پښتيده هغه حکايت څه رنګ وه زوي ورته ؤ و چه د حلب په ولايت کښِ يو بادشاه وه ډيرئي جاه ډيرئي سپاه وه دِ ده دوه زوي وو دوارِه په دولت د ځوانئِي مست وو د دوران له بازئِي غافل هميشه په خوښي په نشاط مشغول وو بادشاه چه دانا او عاقبت انديش وه څه لږِ و ډير ګنج له نقد او له جنسَ او له جواهراتَ په يوه زاهد چه ګوښه نشين له خلقَ وه آراسته په اوصاف حميده وه جدا له خلقَ په يوه ګنج ګوښه کښي ئي آستوګه وه په طريقِ مخفي ئي پرِ ؤ سپاره زاهد په کورکښ کوهي ؤ کند په کښي ئي کښيښ او وصيت ئي و زاهد وته دا ؤ کړه چه هروقت دولت بي وفا منع څما له فرزندانو ؤ جارباسي او پريشاني د روزګار و دوي وته ؤ رسي په طريقِ مناسبت دا ګنج و دوي وته ښيه شايد چه پس له محنتَ څکولو او له پښيمانئي د مال تلفولو دا خزانه ئي په کارشي او بادشاه خپل کور يو ځاي تعبيه کړ خلق ته ئي دا رنګ ظاهر

کړل چه کنج او خزانه مي دا ځاي دفن کړي ده زویو ته ئي هم دا ؤ وِ چه هر ګاه تاسو محتاج شئ ستاسو دپاره مي دلته ډیر څه ښي دي په مطابق د کار ترِ آخلئ پس له څو ورځو بادشاه او زاهد له دنیا نه رحلت ؤکړ او هغه کنج د زاهد په صومعه کښي پټ پاتو شه شاهزادهګان پس د پلار له موت د میراث په قسمت کول په جنګ شول مشر غلبه ؤکړه تمام مال ئي په خپل تصرف کړ کشر ورور ئي فکر ؤ کړ چه دولت خو مځ په زوال کړ آسمان پیشه د بي وفائي آغازه کړه زړه ترِل د دنیا په دولت پوري آئین د خرد مندئ نه دي پس ګوښه د درویشئ چه سر مایه د خیر اندیشئ ده له لاسَ آچولي نه بویه تنها بیابان ته ؤ وت په هغه خرابه صومعه د زاهد ننووت ورئ د تللو راتللو په ځان ؤ تاړه په هغه ګوښهٔ بي توښه کښي په ریاضت مشغول شه یوه ورځ په طلب د اوبو کوهي ته ؤ رغي کوهي وچ وه فکر ئي ؤ کړ چه بي اوبو آستوګه مشکله ده نور کوهي ته کوز شه یوه ژوره ئي ؤ لیده چه د هغي ژوري په خاورو د اوبو زیم پوري شوي وه هغه خاوري ئي په لاسونو لري کولي چه پښه ئي په کنج ننوته شکر ئي د خداي تعالي په ځاي راوړ د ځانَ سره ئي ؤ وِ چه اګرچه مال ډیر دي اما له درویشئ نه پرهیز کول نه بویه په قدر د ضروري خرخول بویه ؤ ګورم چه له غیبَ څه معلوم شي مشر ورور ئي چه په غفلت عمر تیراوه د رعیت د لښکر پرورښ ئي نه کاوه په امید د هغه کنج چه کنړه پلار مي په کور کښِ ښخ کړي دي هر چه په لاس ور تلل هغه ئي تلف کول ناګاد سخت غلیم ور پیدا شه چه قصد ئي د ده د ولایت ؤکړ شاهزاده خزانه تشه لښکر بي سامانَ پریشانَ بیا موند هغه ځاي ئي ؤ کنده چه پلار ئي په دروغو ویلي وه چه دلته مي کنج دفن کړي دي خزانه ئي بیا نه مونده چه له کنجَ نا امید شه بالضرور ئي په هرحال مځ په جنګ کړ پس له هغه چه په دواړه لوریه ئي صفونه آراسته کړل لوکي د اور د جنګ په فلك شه د غلیم د لوریه یو غشي په شاهزاده برابر شه په ځاي سوړ شه قضاي

آلهي د دي بله لوريه غشي په بادشاه بيگانه ساز شه رخت ئي د هستيٍ وُ تارهِ دوارهِ طرفَ لښکر حيران پاتو شه لا جنگ و جدل تر ميانَ وه چه له دوارُ طرفُ دانايانو جنگ موقوف کړ هغه شاهزاده ته په اتفاق وُ رغلل چه د زاهد په صومعه کښي گوښه نشين وه په تعظيم تمام ئي له کنجِ تنهائي را وُ يوست په بارگاه ئي د بادشاهيٍ ننيوست هم کنجِ بي رنځ بيا موند هم ملك په ده قرار وُ نيوه دا حکايت مي په دا راوړ چه په تحقيق معلوم شي چه موندل د نصيب تعلق په کسب نه لري پس اعتماد په توکل بهتر دي له کسب چه هغه زوي ئي دا داستان په آخر وُ رساوه پلار ور ته وُ وِ هر چه دِ بيان کړه ريښتيا دِ وُ وِ اما دا عالم اسباب دي اکثر کار و بار د دي جهان وا بسته په اسباب دي لازم دي سعي کول په اسباب پسي او اعتماد په توکل کول مصراع "بر توکل زانوي اشتر به بند"

منفعت د کسب ډير دي تر گوښه ناستي په دا چه نفع د کاسب و بل ته رسي او فائده د گوښي ناستي تر ده نه تيريږي ځوك چه توانيږي چه نفع ئي و بل ته وُ رسي حيف دي چه کاهلي کا مگر تا قصه د هغه مرد نه ده آرويدلي چه حال ئي د باز او د قارگه وُ ليده اسباب ئي ترك کړل گوښه ئي وُ نيوه آخر ئي له هغه صاحب دلَ نه څه عتاب وُ ليده او څه خجالت ئي وُ څکاوه زوي وُ پښتيده چه څه رنگ وه دا حکايت پلار ور ته وُ وِ چه يو درويش وه په قدرت کښِ ئي د خداي انديشه کوله ناگاه ئي باز وُ ليده چه ځخو غوښه ئي په منگل کښي نيولي په نيژديٍ د يوي ونې ئي پرواز کاوه په هغه ونه کښِ هغه درويش يو قارگه بالُ پر شکسته په جاله کښي وُ ليده هغه باز غوښي په شوکه کښِ نيولي په موافق د ده د حوصلي په خوله کښي ور کولي هغه مرد وُ وي چه سبحان الله ځو مهربان پروردگار چه قارگه چه بالُ پر نه لري بي رزقَ نه پريږدي ابيات

"اديم زمين سفرهِ عام او است برين خوان يغما چه دشمن چه دوست

"چنان پهن خوانِ کرم گسترد که سیمرغ در قاف روزي خورد"

پس زه چه په طلب د رزق کښِ هرګز نه کښېنم او سرمي په بیابان د حرص یښې دي دا همه نتیجه ځما د سست اعتقادئِ ده پس بهتردا دي چه پس تردا ګوښه وُ نسم او جست و جوي د اسباب ترک کړم تر هغه پوري چه لاس ئِي له همه کارَ کوتاه کړ دري شپي ورځي ئِي په ګوښه کښې بي خوراکَ څښاکَ تیري کړي له لوږي له تندي نقصان په عقل کښِ چه سرمایه د تمیزاو پیرایه د هرڅیزدي پیدا شه ناګاه یو دور اندیش پرِراغي په حال ئِي خبرشه نصیحت ئِي ورتهٔ وُکړ چه لاس و پښي درلل په بي لاس و پښي قیاسول دا همه اسباب په نه اسباب شمارل نه رضاي آلهي ده نه آئین د عقل چه و تا ته ئِي لاس و پښي درکړه په معني کښِ رخصت تکاپوي درکړ تا زاغِ وُلیده سترګي دِ پټي کړي ولي بي هوده وخت تیروي او قدرد دي ګوهرِ عقل نه پیژني الله تعالي هسي اسباب متابع دِ تا د عقل درکړي دي لکه باز چه د نورو بي اسبابو سبب د معیشت وه ځان دِ ولي دا هسي بي کارَ کړ دا سرګذشتِ پسندیده مي په دا راوړ چه با وخودِ اسباب ځان په توکل نه شل کړي بویه بل زوي ئِي خبرهِ آغازه کړه چه اي پلارَ هرګاه چه دنیا په کسب خاصله کړم او خداي تعالي و ما ته دولت را کا ساتل او خرڅول ئِي را ته وُ وایه څه رنګَ بویه چه ستا ویل د خپل روزګار دستور العمل کړم پلار ورته وُ وِ مال په لاس راوړل آسان دي ساتل ئِي ګران او له هغه نه فائده آخستل مشکل د هرچا چه مال او دولت د دنیا پلاس راشي دوه کاره ور ته کړي بویه اول دا چه هسي رنګ ساتلي بویه چه له تلفَ تاراجَ په امن وِي او لاس د غله او ره زن ځني کوتاه وِي چه د زر دوستان دیردي دښمنان ئِي ترشمارَ تیردي دویم له دنیا فائده آخستل بویه که دنیا په محافظت کښېښود شيِ او خرڅ خوراک ځني نه شيِ دي ګداي دي د دنیا څښتن نه دي بیت

٢٨٧

"چه داري دوست آنكش وقت مردن    به دشمن تركسي بايد سپردن"

اوكه لاس ئي په صرف كښيږدي ابيات

"به خور چيزي از مال چيزي بده    ز بهرِ كسان نيز چيزي بنه
مه خور جمله ترسم كه دير ايستي    به پيرانه سر بد بود نيستي
دري خرچ بر خود چنان هم مه بند    كه گردي ز ناخوردني درد مند
چو رشته ز سوزن فزون تركني    بسا چشم سوزن كه در سركني
نه بذلي كه طوفان در آري ز مال    نه صرفي كه سختي در آري به حال"

بائيده دي چه مال د دنيا اسباب وي دانا ته د دنيا د گټني دپاره مصراع "كه زر زر كشد در جهان گنج گنج"

هر چه دانا دي بهرهِ آخستل ئي ښني دا دي چه دا مال ئي سرمايه وي په سود ئي كه لږ وي كه ډير وي زيست د دنيا روزگار كا كه ډير آمد وي ډير خرڅ دِ كا غريب د غربا پا شكسته بي دست و پا لاس دِ آخلي مدد امداد دِ ور سرهِ كا كه آمد ئي كم وي د خپل خرڅ ترعهده وتل بويه

قطعه

"چو دخلت نيست خرچ آهسته تركن    كه ميگويند ملاحان سرودي
اگر باران به كوهستان نه بارد    بسالي خشك گردد دجله رودي"

ابيات

"بر آن بحر كايي نه يايد به وي    به اندك زماني شود خشك پي
اگركوه گيري و نه نهي به جاي    سرانجام كوه اندر آيد ز پاي"

د هرچا چه دخل د آمد نه دي او خرڅ تر آمد زيات كا عاقبت كار به ئي په بيمِ گدائي وُ رسي او انجام كار به ئي په هلاكت لكه د هغه موش تلف كار چه ځان ئي له غمَ د مال هلاك كړ زوي وُ پوښتيده چه څه رنګَ وَد هغه خبره

حكايت

پلار ورته وُ وِ راوړي ئي دي چه يو دهقان وه عاقبت انديش د خپل

خاندان دپارہ انبار د غلي ئې نګاه کړ لاس د خرڅ ئې څني کوتاه کړ چه وخت د ضرور به په کار شي قضاءً د يوه مږك كور هغه انبار ته نيژدې وه په هر طرف ئې زمکه په غابنو کندله ناګاه ئې لار و غله ته بيا مونده فراوان رزق د ده په خونه ننووت هغه کم حوصله ئې د عقل له لارِ لرې يوست مغروري غافلي ئې واخسته د هغي محلي مږك په دا حال خبر شول واړه ور ته راغلل ملا ئې د ده په خدمت وُ تړله دوستانِ هم نواله او حريفانِ هم پياله د ده شول خوشامندونه ئې د ده کول بر آمد ويل ئې هرګز نه کول چه مه بادا په رښتيا ويل کښې دِ موږه و دولت وته نقصان وُ رسي دي هم په خپلو بريتو غلط شه ژبه ئې په لاف لاس ئې په اصراف پرانتل د نن ورځي په خوښي ئې د صبا غم نه کاوه چه څو مدتَ تير شه قحط سال پيښ شه دهقان ور د انبار لرې کړ غلي ئې نقصان موندلي وه آه ئې وُ کړ وُئې وِ چه غم خوړل د هغه څيز چه سود نه لري طريقه د عقل نه ده پس هغه باقي غله ئې په بل ځاي کښيښوه هغه موش چه صاحبخانه وه هغه ساعت اوده وه دا نور موشان چه آشنايان د آب و نان وو په هغه کش مه کش کښ په يوه سوراخ ننوتل په بل لور وُ وتل لاړل هغه ولي نعمت ئې تنہا پريښ بيت

"اين دغل دوستان که مي بيني مگسانند گرد شيريني"

بله ورځ چه هغه مږك سر له خوبً پورته کړ که ښي کيڼ ئې وُ کتل ياران ئې هيڅوك وُ نه ليدل ور پسي پاڅيده که هرڅو وړاندِ ورستو ور پسي وُ ګرزيده مصاحبان ئې بيا نه موندل نور پريشان غله ګران دل ګير خپل کور ته روان شه چه ور شم هغه په کور کښِ ذخيره نه وُ ساتم چه کور ته راغي يوه دانه ئې وُ نه ليده په هغه سوړه انبار خالي ته راغي پورته ئې اثر د غلي بيا نه موند چه د يوې شپې قوت ئې بيا شوي وي هيڅ طاقت ئې پاتو نه شه له ډيرَ غمَ ئې سر په ديوال وُ واهه ماغزه ئې وتل په هغه ځاي وُ مړ فائده د دي حکايت دا چه خرڅ دِ سړي په موافق د آمد کا او د نيکئ له سوده

نه دِ ځان بهرهِ مند کا چه پلارئِ له دي داستانَ فارغ شه کشر زوي پلار ته
دعا وُکړهِ ورته ئِ وُ وِ چه اي پلارَ پس تر هغه چه سړي د دنيا مال وُ ساتي
او له هغه مالَ نه نفع تمامَ واخلي دوه کارهِ دِ وُکاندِ يو دِ له اسرافَ ځان
وُ ساتي او په لارِ د اعتدال چه په هر څيز کښِ پسندلي ده روان شي

ابيات

"هست برِ مردمِ عالي گهر بخل ز اسراف پسنديده تر
گرچه عطا درهمه جا دل کش است هرچه به هنجار بود آن خوش است"

دويم دِ ځان د بخل له عارَ د کم همتئِ له عيبَ وُ ساتي چه مالِ د بخيل
به عاقبت نخښبه د تاراج او د تلف د غشيو شي لکه يو لوي حوض وي چه له
څو جويونو اوبه ور ته را درومي که اندازه ئِ د راتلو وتلو سړي څخه نه وي
نا چار به اوبه په هرطرف لار غواړي او په هر لور به ئِ زيم پيدا شي په
ديوال کښِ به ئِ رخنه وُ شي آخرالامر به په يوه ځل وچ شي دا څو قصي
چه بيان شوي اګر چه په اصل کليله او دمنه کښِ نه شته د خبري د ګريز
ګاه دپاره ابوالفضل راوړي دي خالي له فايدي هم نه دي په دا کتاب کښِ
هم وُ کښي شوي القصه چه زهمنو د پلار نصيحتونه وارويدل يوه فرزند ئِ
اسراف په لاس واخست شومي کاهلي ئِ له لاسَ کښيښوه مشر زوي ئِ
سوداګري اختيارهِ کړهِ دور دست سفرئِ دوراندِ کړ دوه غوايه د بارکښئِ دپاره
ورسرهِ وو د يوه نوم شتربه د بل نوم مندبه په سبب د درازئِ د سفر سختي
ورپيښه شوه قضاءَ په لار کښي جوير راغي زمکه ئِ خته وَه شتربه په کښِ
پاتو شه خواجه وُ فرمايل په کوښښ تمام ئِ را وُ يوست طاقت ئِ د تلو نه
وه د مزدور په حواله ئِ کړ چه خصمانه ئِ کړهِ هرګاه چه قوت ئِ پيدا شي
کاروان ته ئِ را وُ رسوه مزدور دوي دري روځي په بيابان کښِ ور ته تيزي
کړي آخر له تنهائي دل ګير شه راغي خواجه ته ئِ وُ وِ چه شتربه مړ شه
شتربه په لږ مدت کښِ جوړ شه په طلب د خواجه په هرطرف ګرزيده ناګاه

یوه مرغذار هوا دارته ؤ رسیده د شتربه هغه منزل زړه ته پریوت په فراغت په څر کښیووت مشقت محنت ئې د سفر په راحت د اقامت بدل شه ډیر فربه شه مستي ئې واخسته سلکیده غرچیده خټ به ئې په شاخ سم کړ سم به ئې په سومونو خم کړ په نواحي. د هغه مرغذار یو مزري وه خون خوار په دار مدار د هغه دیار په سریر د سلطنت ناست وه ډیر جانوران په خدمت د ده کمر بسته بي شماره درندګان په زیور د بندګۍ آراسته وو اما هغه مزري خود راي ځوان وه چه هرګز ئې غوږکې لیدلي آواز د ګاو ئې آرویدلي نه وه پړانګ که تیز حمله دي هاتي که قوي جثه دي ده هیڅ نه کتل په خپل جسم غلط وه هیڅوک ئې په نظر کښې نه راوړل نه ئې چا سره مشورت وه نه خبر د زماني له آفتَ وه ناګاه ئې آواز د شتربه تر غوږ شه زړه ئې له کوګلَ پریوت په دا حال ئې ملازمان نه خبرول د ده په لښکر کښِ دوه چغالان وو د یوه نوم کلیله د بل نوم دمنه وه چه په هوښیاري په تیز فهمي مشهور وو اما دمنه لا ډیر دانا وه په خواهش د جاه د ناموس حرص ناك وه د عقل له مخَ ؤ پوهیده چه مزري ته هراس رسیدلي دي چه وسواس ور پیښ دي کلیله ته ئې ؤ وِ چه څه پوهېږي بادشاه خوښي د سیل خوبي د ښکار په څه سبب ترکه کړه کلیله ځواب ورکړ چه ستا په دا سوال څه کمال دي دا ویل و تا ته کوم مناسب دي ځما ویل ؤ منه ځان خپل ؤ پیژنه مصراع "تو از کجا سخنِ سر مملکت ز کجا"

موږه د بادشاه له درګاه رزق موږ ؤ په سیوري د دولت په آسایش عمر تیره وو ځما ویل پسند کړه د بادشاهانو په راز غرض مه کړه چه موږ هغه عالم نه یوُ چه په صحبت د بادشاهانو مشرف شوُ خبره دِ موږه په نیژدي د سلاطینو چندان اعتبار نه لري چري نه وي هغه در باندِ ؤ شي لکه په هغه بیزو شوي وه دمنه ؤ وِ هغه څه رنګَ وه حکایت

کلیله ورته وُ وِ راوړي دي چه يوه بيزو وه ترکاڼ ئي وُ ليده چه لرګي ئي پرِ کاوه دوه ميخ ورځنه وو يو ميخ به ئي په هغه لرګي کښِ ټک واهه تر يوه ځايَ به شګاف وُ شه بيا به ئي هغه لري کړ بل ميخ به ئي پرِ ټک واهد په دا رنګ ئي چاوه هغه ترکاڼ چه کار ته پاشيده لاړ بيزو راغله په هغه چوب کښيناسته پري کاوه ئي دواړه خائي ئي د لرګي په شګاف ننوتي اول ميخ ئي وُ کيښ چه بل تک وهم دواړه خائي ئي محکمي په هغه لرګي کښِ وُ نښتي بيزو په ژړا شوه دا ئي وُ وِ قطعه

"په جهان کښِ بهتر دا دي    چه هرڅوك دِ خپل خپل کار کا
هرسړي چه خپل کار نه کاِ    ځان به ما غندِ زر خوار کا"

ځما کار ميوه تولول دي نه اره ځکول هنرځما د ځنګل تماشا دي نه تبر تيشه ناګاه ترکانړ راغي هومبرهِ ئي وُ وهله چه هلاکه شوه دا مثال مي ځکه وُ وي چه درودګري کار د بيزو نه دي او دا حکايت مي په دا سبب راوړ چه هرچا ته خپل کار په کار دي قدم دِ له خپلي اندازي نه وُ باسي دمنه ورته وُ وِ چه په ويل دِ وُ پوهيدم ليکن زده کړه چه شکم په هرځاي ډك شي په هرڅيز موړ شي اما دانايان چه قربت د بادشاهانو غواړي نه د طمعي د لقمي دپاره بلکه فائده د ملازمت د بادشاهانو نصيب عالي دي چه په هغه وسيله به زړه د دوستانو په لاس راوړي او خاطر به له دښمنانو جمع کړي قطع نظر له لطفَ د دوست يا له قهرَ د دښمن به په غور د ستم ديده‌ګانو وُ رسي او خاطر به د شکسته دلانو په لاس راوړي د هرچا چه همت خپل په درګاه د بادشاهانو د خواب و خورش دپاره وِي هغه په مثال د بهايم دي لکه وړي سپي چه په هډوکي خوشحال شي يا خسيسه پيشي چه په نان پارهِ شوروا آلوده محظوظه شيِ مقرر دي شير شرزه چه ښکار د سوي په پنجه راوړي چه صيد د ګورخر وُ ويني دا له لاسَ پريږدي په ښکار د ګورخر شي بيت

۲۸۹

"همت بلند دارکه پیشِ خدا و خلق باشد به قد[ر] [همت] تو اعتبرِ تو"

دانا سړي چه په مرتبه بلنده ؤ رسي که د[ه] خوکم زندګاني وي نیکي خني په دنیا کښِ یاد ګار پاتو شي په مثال د ګلابو د ګل وي د ګلاب ګل که عمرکم لري فائده نقشِ نیکي د ده په مړ زړه کښِ تر ابدد قایم وي او کم همتَ په مثال د ګندهیري د چنارد پاڼري دي که ژوندي وي هم لا ینفع که مړ وي هم لعنت در قفا ابیات

"مروارید گز اصل ز عیب پاك است آرایشِ بخش آب و خاك است
تا هست درست گنجِ کانها است چون خورد شود دواي جانها است
به نکو نامي جاوید نه میرد هرگز مرد آنست که نامش به نکوئي ببرند"

کلیله ؤ وِ دا چه بیان دِ کړه وا مي رویده په خپل عقل کښِ سر په ګریبان د فکر ننباسه در ته به معلوم شي چه خواهش کول دَ منصبِ عالي له هغه چا نه زیب لري چه په اصل په نصب بزرګ او بزرګ زاده وي اما خاصیت د نیکو سیرتي په کښي جمع وي اصل دِ موږ د هغي طائفي نه دي چه پد دا کښِ قدم دوړاندِ کیږدؤ ذات او اصل دِ موږ تر دا تیر دي چه په موږ به څوك شك ګمان د بل څه راوړي دمنه ؤ وِ لاس د پایهٔ بزرګي عقل دي او ادب نه اصل دي او نسب هر څوك چه فکر درست او خرد کامل لري څان به له پایي خسیسي په مرتبه د شرافت ؤ رسوي هرچه بي خردي او بي فکري کا په زر به له مرتبي بلندي په پستي پریوزي له معمورهٔ هستي په ویرانه د نیستي کښیوزي بزرګانو ویلي دي لوئي مرتبي ته ختل په ډیر محنت او مشقت دي مصراع عروج بر فلكِ سروري به دشواري است

او را کوزیدل له لوئي مرتبي په لږ کلفت میسر شي بیت

"وداني ئي په ډیر غم به څکر خون وَه ویراني ئي راً شه کوره په څه دود"

لکه لوي کاڼري په ډیر مشقت د غره و سر ته خیژاوه شي چه د غره له سره پریوزي په آساني کښتَ را درومي هم په دا سبب دی چه څو مرد بلند

همت نه وي په دانائۍ په گران باري موصوف نه وي د بادشاهانو د مصاحبت د لوئي مرتبي هوس دِ نه کا اوکه ئې وُ که زر به رسوا شي هر څوك چه آسایش غواړي لاس دِ له آبروَي پریونځي او همیشه به په نا کامي او په خواري گرفتار وي او چه ئې په محنت او مشقت پسي ملا تړلي وي له خارستانَ د لارِ بي ملاحظه وي گل د مراد به له چمنَ د بزرگۍ په لمن راوړي تا مگر داستان د هغو دوو ملو نه دي آرویدلي چه یو په طلب د محنت د مشقت په مرتبه د بادشاهۍ وُ رسیده دویم په سبب د کاهلۍ د تن آسانۍ په خاورو د خوارۍ او د پریشانۍ کښیناست کلیله وُ وِ څه رنګ وه هغه حکایت دمنه وُ وِ راوړي دي چه دوه مصاحب وو یو تر بله د یوه نوم سلامت وه د بل غنیمت په سفر د خپل مراد له کورَ وُ وتل په هر دښت او بیابان گرزیدل او غرونه ئې طي کول ناګاه ئې په یوه کوه دامانه گذر وُ شه هغه غر ډیر لوي غر وه په لمن کښي ئې یوه چینه وَه اوبه ئې نهایت سړي او خوږي د چیني دوړاندِ یو لوي حوض ساز کړي وه او گرداگرد د حوض لوئي وني وي سایه داري القصه هغه دوه یاران و هغه منزل پاك ته وُ رسیدل هغه ځاي چه ډیر خوښ مکان وه په رسم د آسایش په هغه ځاي مقام شول یو زمان ئې آرام وُ کړ پس له آسودګۍ پاځیدل د هر ځاي د هر مکان تماشا بین شول او هر ځاي ته ئې نظر کاوه ناګاه ئې نظر په یوه سپین کاڼي وُ لګیده چه د حوض په کناره پښي وه یو څو سطري پرِ کښلي وي دویو وُ کوت سطري ئې وُ لوستي په مضمون ئې آګاه شول دا ئې کښلي وه اي مسافره ته چه و دي ځاي ته راغلي ستا مهماني مي ښه فکر کړي ده ولي په دا شرط چه ځان و دي تالاب ته واچوي او ویره د ډوبیدو په خاطر وُ نه رسوي په هر شان ځان له تالابَ وکناري ته وُ باسي او مزري د کاڼي د غره په ویخ کښي پښي بي درنګَ ئې په اوږه واخلي او د غره ترسره ئې په یوه دَو وُ رسوي او له هوله د درندګانو خونیو ته وُ نه ویرېږي او له اغزیو د خاردارو ونو چه په تا څرخیږي

له ملاحظي د دي کارہ پاتو نه شي چه دا لارستا د تلو په سرؤ رسي گل د مراد به ستا په سرکښېښ شي غنیمت مخ و سلامت ته کړ چه اي یارہ را شه چه په پښو د همت دا لار په سرؤ رسوؤ بیت

"یا به ستا زلفیني ؤ نسم په لاس کښي یا به سردر باندِ بایلم دوي وینا دي"

بیت

"یا بر مراد بر سر گردون نهیم پاي یا مرد وار بر سرِ همت کنیم سر"

سلامت ؤ وِ اي یارہ عزیزہ په مجرد لوستل د خط چه نویسنده معلوم نه دي په دا لارکښ چه خطرناکه ده په دا خیال چه بي فایده دي ځان و دي هسي گرداب تهلکي ته آچول نشان د بي خردئِ دي هیڅ عاقل زهر په یقین او تریاك په گمان نه دي خوړلي او هیڅ خرد مند نقد په راحتِ نسیه بدل کړي نه دي غنیمت ؤ وِ اي رفیقَ دا مقام د خست او د پست همتئِ دي په لارِ خطرناکي تلل او سعي په محنت او مشقت پسي کړل په مرتبه اعلي پسي بنشان د دولت او د عزت دي هر چه مردِ عالي همت وي د هغه همت په گوښه توښه قرار نه نیسي څو په پایه بلنده ؤ نه رسي گل دَ مقصود بي خارہ او گنج د مراد بي مارہ په لاس راوړل مشکل دي څما د همت مرغه په جنبش د پر و بال راغي چه یو څل پرواز ؤ کړم په موجب د مضمون د خط څان لکه نهنگ دي حوض ته واچوم او لکه اژدها مزري د کانړي په اورہ واخلم لکه سیمرغ د کوہ قاف و سرته ئِ ؤ رسوم ؤ گورم چه له پردي د غیب څه راز را پیدا شي سلامت ؤ وِ په هغه لار قدم کښېښول چه حد او پایان ئِ معلوم نه دي او په هسي دریاب کښي ځان آچول چه نیکي او بدي ښکارہ نه ده کار د عاقلانو نه دي هوښیار چه د ننوتو اؤ د وتو په کار پوهیدلي نه دي په هغه کارکښي څان نه آچوي ابیات

"تا نه کني جاي قدم استوار پاي مه نه در طلبِ هیچ کار
در همه کاري که در آئي نخست رخنهٔ بیرون شدنش کن درست"

شاید دا خط په مسخره‌گي چا کښلي وي یا دا حوض داسي شان گرداب وي چه وتل ځني مشکل وي اوکه ځني ؤ وزي هغه د کاڼري مزري نه وي اوکه وي په غاړه ور نه شي اوکه ورشي د غره ترسره په یوه ساه یوور نه شي اوکه دا واره ؤ شي معلوم نه چه نتیجه به ئي څه وي زه په دا کارکښي درسره مل نه یم او تا هم له دي کارَ منع کوم غنیمت ؤ وِ پریږده دا خبري چه زه تردا تیریم او په دا لارتلوني یم او پوهیږم چه ته په دا کارکښي ځما مل نه ئي په دا ځاي ناست اوسه ځما نندارهٔ گوره په دعا را سره مدد کاراوسه سلامت ؤ وِ وینم دي چه له دي کارَ آوښتوني نه ئي او ترک به د دي نه کړوني ؤ نه کړي زه طاقت د دي نه لیدوني کارنه لرم او تماشا د هغه کارچه موافق دِ ما د طبعي نه دي کول و ما ته دشواردي ما خپل مصلحت کړي دي چه څو ته شروع د دي کارکړي زه په خوا تردا لارد گریز ؤ نسم ترلیدلُ د دي هسي افعالِ شنیعه نه لیدل بهتردي سلامت لارد غنیمت پریښوه فرصت ئي غنیمت ؤ شماره هغه غریب ئي تنها پرهغه ځاي پریښ غنیمت په نا امیدي په کنارد حوض راغي ابیات

”در بحرِ محیط غوطه خواهم خوردن یا غرق شدن گهري آوردن
یا در به هردو دست کند خواجه برکنار یا موج روزي افکندش مرده درکنار“

پس په قوت د بخت د زړه په همت په چشمهٔ نبوت په توفیق د خُداي تعالي په بله کناره ؤ ووت د کاڼري مزري ئي په اوږه واخست په یوه دو په غره ؤ خوت که ئي کتل عظیم ښهر ئي ؤ لیده ناگاه د کاڼري مزري هسي سخت آواز ؤ کړ چه په غره په سمه زلزله شوه هغه آواز چه د ښهر خلقو وارویده دیرعالم محي ته ورته را ؤ ووت د غنیمت په استقبال متوجه شه غنیمت د الله تعالي و قدرت وته حیران وه چه یو جماعت د بزرگانو د غنیمت په ملازمت مشرف شه او په التماس تمام ئي په آس د دولت سورکړ او په لور د ښهرئي روان کړ سر او تن د ده ئي په گلاب په حمام پریوي خلعت گران

سایه ئې د بادشاهۍ ور واغستاوه بادشاهي ئې د هغه ملك په ده ؤ سپارله
غنیمت حقیقت د دي معاملي ؤ پښتیده هغه عالمو څواب ور کړ چه اولنیو
حکماؤ په دا چینه باندِ یو طلسم سازکړي دي هرګاه چه حاکم د دي ښهر له
دي سراي فاني نه وداع ؤ کا الله تعالي یو بخت بلند چه طالع د سردارۍ لري
و دي سر چشمي ته راولي هرګاه چه هغه بخت بلند څوان په بدرګي د الله
تعالي د عنایت له دي چیني تیر شي مزري په اوره واخلي او په آرویدل د
مزري د آواز ساکنان د ښهر شکر د حق تعالي په ځاي راوړي او دي په
بزرګي او په سرداري قبول کا په سایه د عدالت کښِ په آسایش روزګار تیره وي
دمنه ؤ وِ چه دا حکایت مي په دا راوړ چه زده کړي چه نوش او ناز او
نعمت بي نیشَ او بي آزارَ محنت میسر نه دي هر څوک چه خیال د
سرفرازۍ لري د هر یوه سفله پاي مالي نه څکوي او په زبونه مرتبه قناعت نه
کا زه څو مصاحبت د مزري حاصل نه کړم پښي به په فرش د راحت درازي
نه کړم کلیله ور ته ؤ وِ حاصلول د دي کار له کومَ ځايَ فکر دي دمنه څواب
ور کړ په دا وخت چه مزري په غم په اندوه ګرفتار دي خپل ځان به و ده
ته عرض کړم ښائي چه په ښو خبرو مصلحت آمیزو خوشحالي بیا مومي او له
دي اندیښني چه لري شي په دا وسیله دانائي څما خاطر نشانه د ده شي او
یو له مقربانو مي کا او مرتبه مي زیاته شي کلیله ؤ وِ ته به تقرب د مزري
په ِڅه حاصل کړي او که حاصل کړي هرګاه چه تا خدمت د ملوکانو کړي نه
دي او ادبونه د ملازمت نه پیژني په لږ فرصت هر چه حاصل کړي باي به
ئې کړي دمنه ؤ وِ مرد دانا ته لوي کارونه هیڅ زیان نه لري په دا چه په ره
نموني د عقل په هر کار کښي چه شروع ؤ کا له عهدي ئې په وجه احسنه را
ؤ وزي بل دا چه که دولت یاوري ؤ کا هر چه ئې نه زده وي زده ئې کا لکه
راوړي دي چه یو څوان وه صورت د فرزانګۍ ئې درله مرتبه ئې د سلطنت
حاصله شوه داد او عدالت ئې په جهان شهرت ؤ نیوه یوه له بادشاهانو ور ته

فرمان وُکیښ چه ته په اصل ترکانړ ئي په کار د ترکانړيِ ښه پوهيږي تدبير د مملکت او دا کار د سردارئ دِ له چا نه زده کړي دي ده څواب ور ته وُ کیښ چه هغه چا چه دولت و ما ته ارزاني کړ هرهِ دقيقه ئي د جهان دارئ را ته تعليم کړه ابيات

"خردِ چون دفتري تلقين کشايد ز من آن در وجود آيد که بايد
ز دولت هرکه را روشن شود شمع همه اسبابِ دانائي کند جمع"

کليله ور ته وُ وِ په مجرد دِ بادشاهانو د نوازش خردِ مندي تعلق نه لري بلکه څو قديمي نسبت او پسنديده خدمت ور سره جمع نه شي صورت نه نسي تا ته په درګاه د بادشاه هيڅ يو حاصل نه دي له عقلَ لري دي چه ته مقصود بيا مومي دمنه وُ وِ هر څوک چه په ملازمت د بادشاهانو و ځاي ته رسيدلي دي په يکبارګي نه دي بلکه په واسطه د پسنديده خدمتونو چه کامل عياري ئي معلومه شوي ده درجه په درجه ئي قدرت موندلي دي اما محنت او مشقت ته ئي غاړهِ ايښي دي هر څوک چه په دا پنځه صفتَ خدمت د بادشاه کا حسب المدعا به ئي مراد حاصل شي اول بردباري چه لنبه د قهر په اوبو د حلم مړه کا دويم پرهيز کول له هوا هوسَ چه خدمت د بادشاه په آرزو د خپل نفس مقدم لري دريم حرص چه فريبنده وِي او طمع چه فتنه انګيزه ده په عقل چه رهنماي دي غالب کړي نه بويه څلورم بنا د کار په راستي او درستي بويه پنځم حوادث چه مخ ښکاره کا اضطراب او بي قرارئ بايده نه دي الحمدلله چه له ديو صفتونو بي بهره نه يم کليله وُ وِ ما فرض کړل چه تا قربت د بادشاه حاصل کړ په کوم هنر به منظور د بادشاه د نظر شي دمنه وُ وِ که دولت د بادشاه د مِلازمت حاصل شي پنځه خصلتَ به اختيار کړم اول به خدمت په اخلاص کړم دويم به بي د ده له پيروئ کار نه کړم دريم به د ده کارونه په ښه عبارت ادا کړم څلورم هغه کار چه صلاح د ده د دولت وِي هغه به د ده په زړه او په سترګو کښي آراسته کړم پنځم که

بادشاه یو کار اختیار کا چه مناسب د ده د دولت. نه وي په نرمي او په ملایمت به ئې ور ته عیب ښکاره کړم او کوم یو هنر به بهتر وي له دیو خصلتونو چه ما ؤ و هرګاه چه بادشاه هنرونه څما ؤ ویني ما به په خپل عنایت مرحمت مخصوص کا کلیله ور ته ؤ و هسي معلومیږي چه له دي خیالَ جاروتوني نه ئې بار په ویرهٔ اوسه چه ملازمت د بادشاهانو کار دي خطر ناك او مهم دي دشوار لکه ویلي شوي دي بیت

"چه صحبت د ملوکانو سرهٔ کاندِ بویه دا چه ویل نه کا لاندِ باندِ"

ابیات

"همانا که پیوندِ شاه آتش است به آتش در از دور دیدن خوش است

چو شاهان زکینه فروزند چهر به فرزندِ خود بر نه یارند مهر"

حکماؤ ویلي دي دوه کارهٔ دانایان نه اختیارهٔ وي صحبت د سلطان څښل د زهرو په ګمان د زرهٔ راز ویل با زنان دانایانو مثال د بادشاهانو د لوي غرهٔ سرهٔ مثال کړي دي چه په غرهٔ کښي اګر چه کان د جواهراتو واورو د ونو میوي وابښه لرګي انواع نعمتونه ډیر دي اما خالي له خطرهٔ د پړانګ د مزري د سباع درندهٔؤ نه دي او هم په غرهٔ ختل ګران دي او هم آستوګه کول پرِ منشکل او دا ئې هم ویلي دي چه صحبت د بادشاهانو مثال د دریاب د سوداګرئ دي یا ډیر سود په لاس راوړي یا په ګرداب کښِ د هلاکت ګرفتار شي دمنه ؤ وِ هر چه دِ ؤ وِ از روي نیک خواهي دِ ؤ وِ او زهٔ پوهیږم چه بادشاهان مانند د بلي لنبي دي هر چه و دوي ته نیژدي وي خطر ئې د څان بیشترا اما هرڅوك چه له خطري ویریږي په مرتبه د لوئي نه رسي مقرر دي چه په دوه کارَ کښِ شروع نه بویه مګر په بلندي د همت خدمت د سلطان او سفر د دریاب مقهورول د اعدا او زهٔ څان پست همت نه ګنړم پس څه لرهٔ به له ملازمتَ د سلطان ترس کړم کلیله ؤ وِ اراده ستا و ما ته معقوله نه ده اما چه په دا کار ته په جد ئې خداي تعالي دِ ئې مبارك کا

۲۹۶۱

فال دِ نیک اوسه دولت دِ همقرین له کلیله نه رخصت شه په دربار د مزري راغي له لري ځایَ تیت شه سلام ئي وُکړ مزري له خپلو مصاحبانو پښتنه وُ کړه چه دا څوك دي څه مطلب لري وُ ئي وِ زوي د فلانه دي چه دِ تا له ملازمانو قدیمو نه وه مزري وُ وِ پلار ئي پیژنم نور ئي ځان ته وُ باله ور ته ئي وُ وِ چرته اوسي دمنه ور ته وُ وِ اګرچه یو څو ورځي له آستانِ جنت نشان محروم وم اوس په دستور د پلار اراده مي د ملازمت د درګاه عالم پناه په خاطر آرزو وَه میسره شوه او دا خدمتګاري د حضرت سر مایهٔ سعادت او پیرایهٔ بخت ګنړم اراده مي ده دا چه بقیة العمر تر قدمِ مبارك لاندِ او متوصل په رکاب د سعادت صرف کړم او په هر دم منتظر اوسم چه یو لوي خدمت بادشاهي مخ ښکاره کا او زه په هغه خدمتګاري کښِ په سعي د خرد ګوي د مراد تر مناري د چوګان بازي وُ باسم او رضامندي د بادشاهِ زمان حاصله کړم مزري وُ وِ چه دا څه خیالِ محال دي چه تا په خاطر مصمم کړي دي دِ تا اصل او بنیاد خود معلوم بیت

"انجیر فروش را چه بهتر انجیر فروشي اي برادر"

دِ تا اصل چه کوڅه ګرد واقع شوي دي او همیشه توتِي د درویزي په لاس نظر دي د باغبانانو په جوار خواري دي چه یو سګ په کلي کښي چخاچخ وُ کا رِغ د باغبان واروي وړاندِ تښتي ورستو ګوري د دي هسي خلق په درګاه د بادشاهانو څه مناسبت لري او کار و بار د بادشاهت چه وزیرانو او عاقلانو ته د سرکار والا نوبت نه رسي او د هسي ګدا طبعانو او کوڅه ګردو ته څه نسبت د خدمت دمنه په عرض وُ رسول هر چه په زبان صدق ترجمان بیان شول عین کرامات دي لیکن دا درګاه د بادشاهانو لکه ویلي شوي دي بیت

"په لښکر کښِ دِ هم ساد وِي هم دِ غله وِي کله غشي په کار شي کله ګزونَ"

مصراع "اندرین باغ چو طاوس به کار است مګس"

بعضي کارونه د بادشاهِي دي چه له لویو سرِیو سر به راهیِري بعضي هسي

هم دي چه تعلق په خوردانو لري په هاتي کوتونه ماتيږي غوښت او کچلي په چرګو په کوترو وا وښتي شي د ستني کار له ستني شي د تيزي کار د نيزي شي يو کارد توري دي يو د قلم تراش مطلب دا چه خانه زاد چه دا په عرض ؤ رسول په دا کار خانهٔ بادشاهي کښِ لوي کم لږ او ډير همیشه په کار وي وچ لرګي که په لارکښِ پروت وي که په خلال د غاښ یا په خارښتول د غوږ په کار نه شي د سولو په کار خودي ځان دارکه هرڅوکم او زبون وي ترجماد نه خوکم نه وي مزري د ده په خوړو په ښائیسته‌وُ خبرو حیران پاتو شه په خاطر ئي راغله چه که هرڅو بد اصل ضعیف جثه دي اما لايق د تربيت او د خدمت دي مخ ئي خپلو مصلحبانو ته را ؤ جاريوست دا ئي ؤ وِ چه جوهر دَ عقل عجب بي بها دي چه هرڅو له بد اصلَ کم نام سره مل شي په مرتبه ئي د بزرګئي ؤ رسوي لکه لنبه د اورکه هرڅو ئي مړه ووني کوزه‌وي يو ځل خو سر پورته کا نور مزري ؤ وِ چه دا خردمند څوان ځما له درګاهَ او له سلامَ مه منع کوئي او نوم د ده ځما په ملازمانو کښي ؤ کښئي دمنه خوشحال شه ؤ پوهیده چه خبره ځما قبولِ درګاه شوه بيت

"دو بامداد گر آید کسي به خدمتِ شاه سیوم هرآينه دروي کند په لطف نګاه"

دمنه ملا د خدمتګارئي تینګه ؤ تړله او همیشه به حاضر په خدمت کښي وه يو دم به د بادشاه له خدمتَ غافل نه وه آستوګه ئي د کور ترکه کړه شپه په چوکئي او ورځ په ښکار په ديوان حاضر وه په عقل په هنر به ئي خدمت د بادشاه کاوه په وسيله د راست کارئي او راست ګفتارئي ورځ په ورځ په ترقي کښي د مرتبي وه منظور نظر د بادشاه کيده يوه ورځ چه مزري په جالهٔ خوش وقتي کښِ ناست وه په عرض ئي ؤ رسول چه ملازمانو ته د بادشاه لازم دي چه کار و بار د بادشاهئي هرچه دوراندِ ور ته پيښ شي په اندازه د عقل خپل دِ په هغه فکر ؤ کا چه صلاح د دولت او بهبود د بادشاه په کښي وي په عرض دِ ؤ رسوي چه نيک خواهي او ميزان د عقل د ديو بادشاه

ته معلوم شي او د دویو له دولت خواهئ او له نیک اندیشئ بادشاه محظوظ او خوشحال شي او خدمتکاران هم په واسطه د دي خدمت په نوازش خسروانه سربلند شي دانه څو په زمکه کښِ پټه وي هیڅوک په پرورش د دي کوښښ نه کا هرګاه چه له زمکي سر هسك کا جهان په سرسبزي رنګین او شاداب کا پیرایه د خلعتِ نوروزي واغندي مزیارت ګاه د خواص و عوام شي نا چارخښتن ئي په محافظت او په تربیت شي او اصل د کارونو او سر د دولتونو تربیت د بادشاهانو دي هر څوك چه وي له خردمندانو نه په نظر د التفات او تربیت سرفراز کا په اندازه د عنایت او د تربیت بادشاه فائده د خدمتکارئ له دویو آخلي مزري ؤ و تربیت د خردمندانو څه رنګ کړي بویه او د دویو له خدمتَ څه رنګ فائده آخستي بویه دمنه ؤ و بادشاه ته بویه چه نظر په ملازمانو په قدر د دویو د عقل او د دویو د دانش کا نه په هنرمندي د پلارونو او په روش کښِ د ځوان مردئ بي هنران او کم خردان اګرچه په وسیله د هنرمندئ د خردمندئ د پلارونو روتئ ته ؤ رسي اما په مرتبه د لوئي نه رسي بیت

"ګرد نام پدر چه مي ګردئ پدري خویش شو اګر مردي"

حکماؤ ویلي دي چه آدمي زاد وارهِ یو اصل او یو وجود دي بیت

"بني آدم اعضاي یکدیګرند که در آفرینش زیک ګوهرند"

بادشاه ته نه بویه چه نظر د دیو په خویش په بیګانه لري یا نظر په اصل په نسب په پلار او مور کا خوبي ذات او پسندیده ګي صفات دِ ملاحظه لري چه په عقل په دانش په راستي په درستي موصوف وي هم په هغه دِ مهرباني کا لکه مار او لړم له سریو هم خانه دي په سبب د ضرر چه ؤ خلقو ته رسي په کشتن او زدن د دویو بي صرفي کوښښ کا باز او چیته چه جانوران درنده دي او وحشي صفت په څو تردد په څو تلاښ له صحرا نیول شي او ځو رنځ او محنت د دویو په تربیت ؤ ښکاوه شي چه هغه نفعه ځني آخسته

شي پس بايده دي بادشاهانو ته چه مردان عاقل په هر ملك په هر ديار چه وي طلب کوي او په توجه بادشاهي دِ ئي مخصوص کا چه رونق د بادشاهۍ په ښو ځوانانو دي هغه ځوك چه په کارونو کښي کاهل او له هنرونو نه غافل وي هغه په دانايانو باندِ نه لويه‌وي چه منصب د خردمندانو بي خردانو ته ورکول هسني شان دي چه د سر ځيره په پښو تړل او د پښو پړتوګ په سر تړل هر بادشاه چه جلب د اختيار په لاس د نادانانو ورکا او دانايان له کارونو د مملکت بي دخله شي کلي خللونه په هغه ملك پيدا شي چه دمنه له خبرو فارغ شه خرد مندي او کار آګاهي ئي معلومه شوه په لږ مدت کښي مزري د خپلو خاصانو په شمار کړ هر کار ئي د ده په صلاح کاوه کلي او جزوي مهمات ئي د ده په ښه تدبير کړل دمنه يوه ورځ قابو بيا موند په خلوت کښي ئي په عرض وُ رسول چه ډير مدت وُ شه چه بادشاه قرار په ځاي ناست دي د ښکار خوښي ميل په مهماتو ملکي نه کا که په سبب ئي وُ پوهيږم چه په هغه باب حق د نمك په ځاي راوړم مزري خپل راز تر پټاوه چه په دا مينځ کښِ شتربه يو هول ناك آواز وُ کړ چه د هوش جلب د مزري له لاسَ پريووت پس له ډيرَ ساعتَ چه په حال خود راغي راز د زړه ئي و دمنه ته پرانت وُ ئي وِ سبب د وحشت ځما دا آواز دي نه پوهيږم چه دا څه آواز دي اما ګمان مي شي چه آواز د ده دليل په هيبت او صولت د ده دي په زور په قوت لکه آواز هومبره ئي تن توش که حال دا هسي وي آستوګه د دي ځاي مناسبه نه ده دمنه وُ وِ د بادشاه غير له دي آوازه سهمناکه بل هم څه په خاطر رسي چه سبب د ملال وي وُ ئي وِ نه دمنه وُ وِ سکه په آواز خالي وطن خپل پريښول نه ښائي بادشاه لکه غر ثابت قدم بويه په هر باد دِ حرکت نه کا ابيات

" خلاصي خواهي از سيلاب اندوه قدم بر جاي بايد بود چون کوه
گر از هر باد چون بيدي به لرزي اگر کوهي شوي گاهي نه يرزي"

بزرگانو ويلي دي چه په هر آواز بلند په جثه قوي غلطي نه بويه ډيرډي چه آواز ئي بلند وي جثه ئي حقيره ډيرډي چه په جثه قوي هيکل وي دل کرده ئي نه وي مثل "هرکه را دل قوي بازو قوي" هر څوک چه له قوي جثه او له آواز بلنده واهمه کا هغو ته به هغه ؤ رسي لکه هغي روباه ته ؤ رسيدل مزري ؤ وِ څه رنګ ؤه دا حکایت

دمنه ؤ وِ چه يوه ترورېڅ په ځنګل کښي په بوي د طعمي هر طرف جويانه او پويانه وَه نظر ئي په يوه مرغِ خانګي ؤ لګيده چه تروني لاندِ مشوکه په زمکه وهله دا ور ته په څو شوه چه ښکارئي کا په هغه ونه پوري يو طبلِ باز آويزاند وه او چه د هغي وني څانګه پرِ لګيده د طبلِ باز نه به آواز سهمګين خوت ترورېڅ فکر ؤ کړ چه دا آواز قوي جثه بهتر تر چرګ او د چرګ تر ښکار دي شايد، دا په غوښه څورب او په طعمه زيات وي د چرګ له څوَ پاځيده په طبل ؤ زغاسته چرګ په دا واقعه خبردار شه مخ ئي په ګريز ؤ نيوه له تهلکي د ترورېڅ خلاص شه دا په صل محنتَ په ونه ؤ خته طبلِ بازئي څيري کړ بي پوستَ ئي نور هيڅ په کښِ بيا نه مونده اور ئي د پښيمانئي و اندرون ته پريوت نم ئي د زړه د کباب ترسترګو جاري شه ؤ ئي وِ دريغ چه له اصلَ کارَ چه بهبود وه په جثه نا بوده باندِ غلطه شوم ابيات

"دهل درفغان است دايم ولي چه حاصل که اندرميان هيچ نيست
گرت دانشي هست معني طلب به صورت مه شو غره کان هيچ نيست"

بويه چه بادشاه له دي آوازَ انديښنه و خاطر ته نه رسوي که حکم شيِ زه به ورشم حال به ئي تحقيق کړم په عرض به ئي ؤ رسوم مزري خبره د دمنه منظوره کړه دمنه ئي په تحقيق د احوال رخصت کړ چه يو زمان تيرشه مزري انديښنه ؤکړه له آستولو د دمنه پښيمان شه له ځانَ سره ئي ؤ وِ لويه خطا مي ؤکړه بي فکرَ کار را څخه ؤ شه چه بزرګانو ويلي دي چه بادشاه دِ په لس ګروهَ اعتماد نه کا خپل راز دِ ورته نه وائي اول هغه څوک چه له بادشاه ئي

بي گناهَ آزار موندلي وي او مدت د رنځ ئي دراز شوي وي دویم هغه څوک
چه مال او حرمت د ده په ملازمت د بادشاه ورک شوي وي دریم هغه څوک
چه له خپلَ منصبَ معزول شوي وي او امید د عمل دارئي نه لري څلورم
هغه سړي چه طبیعت ئي خواهان د فتني د شور انګیزئي وي په ایمني په
آرام ئي خوي مایل نه وي پنځم هغه ګنه ګار چه یارانو ئي شربت د عفوي
څښلي وي او ده تلخي د عقوبت څکولي وي شپږم هغه ګنه ګار چه تر نورو
ګنهګارو و ده ته ډیر آزار رسیدلي وي اووم هغه چه خدمت ئي ډیر کړي
وي او نتیجه ئي لږ موندلي وي او نورو خدمت کم کړي وي رعایت زیات ور
سره شوي وي اتم هغه څوک چه په خوا ئي دښمني کړي وي او له کم قوتئي
بي دست و پاي شوي وي پس له صلح ملازم درګاه شوي وي بیت

"دشمن که به عذر شد زبانش ایمن مه شو وز درمه رانش"

نهم هغه سړي چه د بادشاه په زیان کښ خپله فائده ویني لسم هغه څوک
چه موافق د خپل خواهش قبولیت خپل په درګاه سلطاني نه مومي او نژدي
کیدل و غلیم ته د بادشاه خپل بهبود او بزرګي ګنړي اصلِ کار هسي دي
چه د چا دیانت او مروت او سړي توب بارها آزمیلي وي خپل راز دِ ور
ته نه وائي پس پخوا تر آزمیښتَ آستول د دمنه په طرف د غلیم له عقلَ
لري دي دمنه هوښیار چرګ دي ډیر مدت شوي دي چه څما له درګاهَ رنځور
مهجور دي مه بادا چري په زړه ئي د آزار خار څرخیدلي وي په وخت د
فرصت خیانت وُ نه کا فتنه را ته پیدا نه کا مزري په دا اندیښنه کښي کله
پاڅیده کله کښیناست سترګي ئي دمنه ته ختلي وي ناګاهَ ئي دمنه وُ لیده
څخو زړه ئي په قرار شهٔ دمنه راغي په ادب ئي سلام وُکړ مزري ور ته وُ و
چه څه دِ وُکړه دمنه وُ وِ اي بادشاهَ عالم پناهَ هغه آواز چه په ګوشِ مبارک
رسیدلي وه د غوایه وه چه بي خوراکَ او خوبَ بل کار نه لري مزري وُ
وِ اندازه ئي د قوت څه ده دمنه وُ وِ ما په ده کښ څه دبدبه وُ نه لیده

چه د قوت اتکل مي ئې کړي وي د بزرګۍ د بلند همتۍ اثر مي په کښي بیا
نه مونده چه پوهیدلي وَي څه خیال په سرکښي لري هرڅو سلوکِ برادرانه
بلکه غالبانه خبري مي ور سره ؤ کړي د ده مي هیڅ هیبت او صلابت ؤ نه
لیده مزري ؤ وِ په یوه پیژندګلوي فریفته نه بویه او هغه نښان د ناتوانۍ نه
ګڼلي بویه ابیات

"ز بادي کز کلاه از سر شود دور گیاه آسوده باشد سرو رنجور
چو کوه از زلزله گردد به دو نیم ز افتادن بلنداان را بود بیم"

باد تند ورو بوټيو ته زیان نه رسوي مګر لوئي وني له بیخَ لوروي بزرګان
هغه دي چه کم غلیم لوي ګڼري که هرڅو ضعیف وي زور قوت ئې ترځانَ
کم نه ګڼري بیت

"مه شمار عدو خورد را خورد که وي از ره خود چنین توان برد"

د باښي نظر د چتي په لکۍ دي د شاه باز نظر د میور په څورنګ دمنه ؤ
وِ بادشاه دِ له دي څیزَ دا هونبره وسواس په خاطر نه ګرزوي چه ما په
آئینه کښِ د ده د وچولي واړه حقیقت د ده د اندرون معائینه کړ قهر مهر د
ده د وروځیو تر مینځ وینم مصراع "د جبین تخته ئې یښي و لوستن ته"

ځاي د وسواس هیڅ نه شته که د بادشاه باور ځما په دا ویل نه شي
حکم دِ کا چه دي راولم په ملازمانو د درګاه ئې داخل کړم چه زین پوښ د
هوادارۍ او د بندګۍ په اوږه کښیږدي او په ښو خدمتونو رضامندي د بادشاه
حاصله کا مزري په دا خبره خوشحال شه او د ده په راوستو ئې اشارت ؤ کړ
دمنه شتربه ـوته ؤ رغي په آرت زړه په ویلي وچولي په روانه خبره بي
اړکیدو ئې خبره آغازه کړه شتربه ئې ؤ پښتیده چه له کومَ راغلي ئې دا ځاي
آستوګه په څه سبب ده او راتلل دِ په څه سبب وه شتربه صورتِ حال په
راستي او په درستي ورته عیان او بیان کړ دمنه له خپلي فهمیدهګۍ شکرانه
په ځاي راوړه چه لکه ځما ګمان وه ګمان باطل نه شه هرچه مي په عرض

دِ مزري رسولي وه هم هغه شان معلوم شول شتربه ته ئي وُ وِ زهِ مزري راستولي یم چه ور شه دا شخص دا هونبرهِ مدت وُ شه چه په دا مکان کښي د ده آواز آروم په ملازمت ځما ولي نه راځي یا له ما خبر نه دي یا له ما ملاحظه لري دلاسا ئي کړهِ له ما ئي خبر کړهِ دِ ما په ملازمت ئي راوله اوس راغلم ته مي خبر کړي که را سرهِ ځي شرف اندوز ملازمت به شي رنګارنګ فائیدي به له ملازمتَ د مزري حاصلي کړي او که نه ځي ځواب را کړهِ مصراع "بر رسولان بلاغ باشد و بس"

شتربه وُ پښتیده چه مزري څه دي او ځوک دي دمنه ور ته بیان د مزري د خوف او د رجا د بیم او د امید وارهِ چه وه مفصل وُ کړ مجمل دا چه بادشاه د دي ځنګل دي او جمله بهایم او سباع د ده د دولت تر سیوري لاندِ په امن په امان روزګار کا بعضي چه د ده هم خوانِ سفرهِ وي هغه بهره مند د ده د خوان یغمان وي او هر چه رعایا او وښخور د دي ځنګل دي هغه په پناه کښي د ده له لاسَ د ظالمانو په امان دي او بهرهِ مند د ده له عدالتَ مصراع "لشکري از دولتُ شهري زداد"

شتربه هم له آرویدو د دي ګفتار کښتِي د فکر په ګرداب کښي د بیم او امید وُ ګرزوله ور ته ئي وُ وِ دا چه تا بیان وُ کړ معلوم شول اما دا مقدمه ډیرهِ مشکله را ته ښکارهِ شوهِ په میان د مورِد اصل او د شیر شرزه دښمني ذاتي ده چه مورِهِ قوم اسباب د باورچي خاني د ده د قوم وي اما په هر حال چه تقریب د آستوګي په دا ملك واقع شوي دي او ستا په ذات کښِ هم چهرهِ د نیك نیتِي او د بزرګِي لیده شيِ د نیکِي د بدِي عهده ځما که پځپله ذمه آخلي لاچار به در سرهِ درومم دمنه له هرَ لوريَ د ده د نیکِي د بدِي متعهد شه او قسمونه ئي مغلظه په میان راوړل شتربه په ظاهر شادان او په باطن پریشان ور سره روان شه لکه پښتانه وائي پیښِل شوهِ خویښ شوهِ هرګاه چه په درګاهِ سلاطین و سجده ګاه د مزري داخل شول دمنه را

ورانديي شه مزري ئې له راتلو د شتربه آگاه کړ مزري سجده د شکر په درگاهِ باري تعالي په ځاي راوړه حکم ئې د شتربه د ننه يستو و ملازمت ته وُکړ شتربه په حضور راغي لوازم د بندگي او د سر افکندگي ئې په ځاي راوړل مزري لکه روش د بزرگانو دي په لطف په مهرباني د احوال پښتنه وُکړه وُ ئې وِ په دا ملك کله راغلي ئې سبب د راتلو دِ څه دي شتربه تمامي خپله قصه په عرض وُ رسوله مزري ورته وُ وِ ديرښه وُ شول چه په دا ملك راغلي په آرام په جمع خاطر سره په دا ملك کښِ څما تر سيوره لاندِ کاه چرائي کوه او له هيچا ملاحظه په خاطر مه راوړه بيت

"درين مملکت گر به گردي بسي ز ما در شکايت نه بيني کسي"

بيت

"در اول به کاري که نيت کنم نظر در صلاحِ رعيت کنم"

شتربه ديره دعا او ثنا د مزري وُ ويله ملا ئې د خدمتکارئ مضبوطه وُ تړله مزري په دانائي او په تدبير پخته د دمنه آفرين وُ کړ چه لکه ويل هسي وه او لکه ئې کړل هسي وُ شول مرتبه ئې د توصل او د بزرگي په درگاه د مزري روز افزوفه شوه او شتربه له ملازمانو د درگاه ورځ په ورځ ئې د اخلاص له مخَ خدمتکاري او بندگي په ځاي راوړله مزري ورځ په ورځ تخته د دانائي او د فهميدهگي او خدمتکارئ د ده ليدله تربيت او رعايت ئې د ده په باب کاوه او په دا ميان کښِ به ئې جاسوسي د احوال د ده کوله د آزمايښت په ځايونو کښي آزميه هرگاه چه عقل او اخلاص ئې د ده خاطر نشين شه پوهيده چه په دا کارونو کښي دي مستثني دي نور ملازمان ئې برابر نه دي دا خوي د بادشاهانو دي چه نظر په نوي په زاړه په جديد په قديم نه لري هر څوك چه کارگذار راست گفتار درست کردار وُ ويني هم هغه محلِ اعتماد او محرمِ راز کا او پايه ئې تر واړو هسکه کا پس له ديرَ آزمايښتَ ئې مرتبه د ده هسکه کړه په ارکانِ دولت کښِ ئې له مقربانو مقرر کړ او کارو بارئي د ملك بي د ده له صلاحَ نه کاوه

سر آمد ئې د خپلو مصلحتیانو شه دمنه په لیدلُ د دي مرتبه د شتربه چه په مرتبي ئې اعلي وُ رسیده اور ئې د حسد په لمن د صبر وُ لګیده شعله تر ګریبانه چه في الحقیقت دست ګرفته د شتربه وه وُ رسیده بلکه خرمن ئې د خردمندئې تمامي وُ سه سراسیمه او پریشان په تال د فکر ئې د شتربه د کلو زنګل بیت

"دمنه د فکر په تال زانګي خلقَ ورو ئې چري پریوزي"

هرګاه چه دا همه مهمات واړه په خلاف د کلیله د صلاح ده دوړانډ کړي وه نه ئې کلیله ته ژبه د ویلو وَه نه دا راز د ده نه د ساتلو وه بیت

"نه روي رفتن و نه پاي باز ګردیدن چو خنده بر لب ماتم رسیده حیرانم"

یوه ورځ له ډیرَ سوخته د حسد لیوني شه څګ په خوله اوښکي په سترګو کلیله ته راغي ور ته ئې وُ وِ چه وروره خدمتونه مي لوي لوي د مزري په ځاي راوړل شتربه مي ور ته را ووست اندیښنه مي د ده له زړه لري کړه اوس کار و بار د دربار واړه په ده شه زه له خپلي مرتبي پریوتم څه لار را ته وُ ښیه او څه علاج وُ کړه کلیله ځواب ور کړ چه اي جانِ منَ د خود کرده څه تدبیر دي خپله پښه دِ په خپله په تبر وُ وهله د فتني په غبا. دِ په خپله ځان آلوده کړ په تا هغه وُ شول لکه په یوه زاهد شوي وه دمنه ور ته وُ و هغه حکایت څه رنګ وه کلیله ور ته وُ و راوړي ئې دي چه یوه بادشاه یوه زاهد ته قیمت بها خلعت ور کړ یو غل ور پسي په غلا ډیر وُ ګرزیده په لاس ئې کښي نه ووت نور د هغه زاهد مرید شه خدمت ئې د زاهد واخست د درویشئ په ادبونو کښِ ئې کوښښ کاوه په لږ مدت کښي محرمِ اسرار شه یوه شپه ئې هغه خلعت واخست نور لاړ چه زاهد خبر شه نه جامه وه نه مرید وه نور زاهد ور پسي روان شه په لار ئې وُ لیدل چه دوه نخچیره یو تر بله په جنګ شو وو یو تر بله ئې جنګ کاوه لکه دوه مزري په دار و ګیر سره اړاند وو ویني ئې له سره له مخَ توئیدي، ناګاه ترورئې راغله د دیو ویني ئې څټلي په حرص

ور ته نیژدي کیده ناګاه د یوه نخچیر ښکرئ په ګیده ساز نس ئې څري شه زاهد له دِ صورتَ پند واخست ورانډِ روان شه شپي ته یوه ښهر ته وُ رسیده ور د ښهر پوري وه هر لورِ ته ئې جست و جو تکاپوي په طلب د لارِ کاوه ناګاه یوه بودئِ له سرګردانئِ د زاهد خبرداره شوه خپل کور ته ئِ وُ باله زاهد طلب د بودئِ غنیمت وُ ګانړه کور ته ئې وُ رغي په ګوښه د هغه کور په خپل عبادت مشغول شه قضاءً هغي ښځي چه په بد کاري او په نا هنجاري مشهوره او معروفه د عالم وَه وینځي به ئې د بد کارئِ دپاره واخستي د هغو په حاصل به ئې اوقات ګذاري کوله. یوه په هغو کښِ چه په حسن او په خوبي یګانه د روزګار وه دل بستګي د زړه ئې په. یوه شخص چه له مجمع دِ اوباشو نه وه پیدا کړي وَه یو تر بله ئې ګرم یاري چلوله نه هغي وینځي په بل سړي میل د زړه کاوه او نه به هغه ځوان بل ته پرېښوه هغه بودئِ چه میرمن د دي وَه د دیو له دي کارَ پهٔ تنګ رسیدلي وَه هر چه په ورځ بهٔ څه زر د دي د حاصل وه د بودئِ په لاس را نه غله په وا ویلا پهٔ داد فریاد به وَه همت ئې درست د دي ځوان په مرګ ګمارلي وه لکه پیشو و موږک تهٔ په څو ناسته وِي هغه شپه چه زاهد د دي و کور ته ننووت هغه شپه هغي ښځي تدبیر د هغه ځوان د مرګ کړي وه ډیر شراب ئې عاشق او معشوق ته ورکړه چه دیو دواړه ئې بي خودَ کړه د کور عالم ئې په خواب غفلت اوده شه بودئِ فرصت غنیمت وُ شماره څخو زهر هلاهل پهٔ ماشوره کښي کښیښول د ماشوري سر ئې د ځوان په پوزه ننیوست هغه سر ئې بودئِ په خوله کښِ وُ نیوه چه دا به ور پوکړم اثر به د زهرو د ځوان و دماغ ته وُ رسي ناګاه ځوان له تندئِ د زهرو نرِي وُ کړ په قوت د نرِي زهر واړه د بودئِ په حلق ننوتل په ځاي سړه ککړه شوه زاهد په لیدلُ د دي حالتِ پر ملالت آزرده شه سترګي ئې صبا ته وُختي چه یو څلَ صبا شولي زه له دي کورَ وُ وتي د صبا بانګ د ملا ویل د زاهد له هغه کورَ وتل په جست و جو د بل ځاي شه یو کفش ګر چه له مریدانو د زاهد

وه په لارئي وُ لیده خپل کور ته ئي بوت لازمه ئي د مهمانداريِ په ځاي راوړه او خود په کار پسي له کورَ وُ ووت ښځه د څمیار په یوه بل مینه وَه چه کورئي خالي وُ لیده د نائي ښځه چه ئي ریباره تر میانَ وَه عاشقِ فاسق ته ورستوله چه نن شپه له اغیارَ خالي یارِدِ نه کا معطلي نه وسواس د همسایه شته نه څوك شته د چغلي زلمي په تمام آرزو په جوش د زړه بورجل گاه ته چه مراد د دي له کورَ دي ور روان شه په ورَ ور تله د ده په ورَ راتله د څمیار دواړه نشول سره دو چار څمیار هم په دا کار پخوا تر دا متشکي وه چه په دا هسي باریك ځاي وُ لیده یقین د فساد ئي په کاله متیقن شه کور ته ننووت ښځه ئي ډیره وُ وهله په ستني پوري ئي مضبوطه وُ تړله سر ئي په بالش د آسائش کښیښ اوده شه زاهد په اندیښنه چه دا بي گناهَ وهل د ښځي او تړل له آدمیتَ لري دي بویه چه شفاعت مي ئي کړي ويِ ناګاه ښځه د حجام راغله دي تړلي ته ئي وُ وِ چه اي خوري هغه ځوان به ترکومَ په انتظارکښِ ناست لري دي په غمجن آواز سره وځان ته وُ بلله او له خپلَ احوالَ ئي خبرداره کړه ور ته ئي وُ وِ چه اي غمخواري خوري شاید دي بي مهرَمیرِه مي دي په ورَ وُ لیده لکه لیوني په ورَ را ننووت زه ئي ډیره وُ وهلم اوس ئي په ستني پوري تړلي یم که په موږو دواړو مینه ئي ما پرانزه ځان د ما په ځاي وُ تړه چه زه ورشم تسکین د شعلۀ محبت د هغه یارجاني وُ کړم را به شم تا به پرانزم ښځه د حجام له کمالي مهربانئي په پرانتل د دي په خپل تړلِ راضي شوه دا وُ وته زاهد په خپل زړه کښِ پښیمان شکر وُ کاره چه شفاعت مي ئي وُ نه کړ په دا میان کښِ څمیار ویښ شه ښځي ته ئي رږغ وُ کړ ښځي د حجام جواب نه ورکاوه چه مه بادا په آواز پوري مي وُ پیژني هر څو چه ده ناري کړي څواب نه وه اور د قهر په څمیارغالب شه رنبي ئي را واخست پوزه ئي د دي پري کړه په لاس ئي ورکړه چه دا تحفه و خپل عاشق ته یوسه ښځي د حجام له شامتَ د فکرِ خام د ځان له ویري

پرېکول د پوزي دولت غنیمت وُ گانړه آه ئي وُ نه کیښ له خپلَ ځانَ سره ئي فکر کاوه چه گناه نورچا وُکړه سزا نورچا بیا مونده خپل عیب تیره دي نه پوهیده چه سر د گنهکارو زه یم چه ځمیاره بیا راغله خپله خور ئي پوز پري کړي وُ لیده دل گیره شوه عذر ئي ډیر وُکړ دا ئي پرانته ځان ئي په ستني پوري وُ تاړه ښځه د حجام پوزه په لاس مخ و کور ته روانه شوه په تمامه حیراني کله په خندا کله په ژړا زاهد دا عجائبات واړه لیده حیران حیران کیده چه دا څه معاملي له پردهٔ غیب را ته څرگندیږي ناگاه ځمیاري لاس په دعا پورته کړل او په عجز په زاري ئي خواست آغاز کړ چه آلهي ځښتنَ زه په هغه گناه ته پوهیږي چه بي گناهَ یم دا هسي آزار او شرمندگي ئي را وُ رسوله ته عادل ئي که ستم گر دا ځما پوزه چه نور ځما د مخ دي بیا ئي به حال خود کړه ځښتن ئي په دا آواز بیدار شه رېغ ئي کړ چه اي نا بکاري تبه کاري دا څه آرزو دي چه ئي لري دعا د بد کارانو په درگاهِ آلهي مقبوله نه ده ښځي ور ته رېغ وُ کړ چه اي ظالمَ ستمگارَ د فاني دنیا د پارهِ نه دِ ځما حق وُ پیژانده نه دِ خپلي لوئي ته وُ کتل نه دِ یوي ورځي آشنائيِ دا هسي بد ترین کار دِ په ما وُ کړ پاڅه قدرت د آلهي تماشا وُ کړه چه خود خداوند تعالي په پاکي ځما گواهي لي چه تا پري کړي پوزه مي په څه قدرت سره پیونده شوه او زه ئي د خلقو له تهمتَ له رسوائيِ خلاصه کړم مرد ساده دل پاخیده ډیوه ئي بله کړه ښځي ته راغي پوزه ئي د دي وُ لیده د دي پوزه پري کړي نه وَه چه جراحت او پرهار ئي وُ لیدي دا ئي له بندَ خلاصه کړه تر پښو ئي پریووت په عذر د خپل گناه ور سر شه چه که صل گوسړي مي په سروهي عذر مي نه شته اوس مرید د تا د پاك دامنيِ شوم نور به هرگز په کار کښي تلوار هم نه کړم او ستا له حکمَ به قدم بیرون نه کښیږدم د حجام ښځه چه پوزه په لاس و کور ته وُ رغله په فکر شوه چه څه کړي بویه صبا به دوستان همسایگان ما گوري څه عذر ور ته کوم او خپل ځښتن ته څه وُ وایم په دا میان کښي حجام له

خوبَ ویښ شه ور ته ئې وُ وِ چه کسبت را کړه چه د فلانه کرَ ځم ښځي
ئې ورو څواب ور کړ یوه چاړه پاکي ئې په لاس ور کړه حجام چه په فرمان
برداري کښي ئې تاخیر وُ شه یواځي چاړه ئې په لاس ورکړه په تیاره کښِ ئې
چاړه بیا ور وُ غورزوله دي زیړئِ وُ کړي چه پوزه مي دِ پري کړه حجام
حیران شه خویښان همسایګان پرِ تول شول ښځه ئې په وینو لړلي پوزه
پري کړي وُ لیده هر لور ئې په حجام ملامت وُ شه دي بي چارَ حیرانَ او
پریشان په ځاي ولاړ نه ئې مخ د اقرار نه ژبه د انکار درله چه ورځ شوه
خویښان دِ حجام د ښځي جمع شول دي ئې محکمي ته د عدالت روان کړ
زاهد په آشنائي د هغه حاکم ورغلي ور سره ناست وه حاکم له حجامَ
پښتنه وُ کړه چه دا دِ ولي بي ګناهَ د دي پوزه پري کړه دا هسي ناشائسته
کار هم څوک کا حجام له تقریرَ د څوابِ دل پذیر عاجز پاتو شه حاکم وُ
فرمایل چه د حجام پوزه هم پري کاڼږئِ زاهد پاخیده ور ته ئې وُ وِ په دا
کار کښِ تحمل بویه او سترګي د فراست غړولي بویه په دا چه جامه د ما غله
پټه کړي نه وَه تروړئِ ځجیرو وژلي نه وَه او بودئِ په زهرو هلاهلو مړه نه وَه
او څمیار پوزه د حجام د ښځي پري کړي نه وَه دا همه بلا ما په سترګو وُ لیدي
او د ما دوړانډِ تیري شوي حاکم ترِ خپلَ حکمَ تیر شه مخ ئې زاهد ته راوړ
چه دا مجمل مفصل ویلي بویه زاهد هر چه لیدلي وَه له اولَ تر آخرَ واړه ئې
ور ته وُ وِ او دا ئې هم وُ وِ که ما هوس د مریدانو د نیوُ نه کولي په خوږو خبرو
د غله نه غلیدي چه په وقت د فرصت ئې څما جامه پټولي او تروړئِ حرص
نه کړي خوله ئې په خونخواري نه ککړه ولي چا به د دي کیده څیرله بودئِ
مکاري که قصد د وژلو د هغه څوان غافل نه کولي ځان شیرین به ئې په باد
فنا نه ورکاوه ښځي د حجام که مدد کاري په بد کاري د بد کارانو سره نه
کړي پوزه به ئې د حیا په لاس د بي حیائي وکور ته نه وړه بیت

"چه له بدانو سره مقیم شي که بیم ئې نه وِي هغه په بیم شي"

حاکم له حقیقتً د کار آگه شه هر یو ئي له دیو مناسب د پاداشِ عمل په جزا د سیاست ؤ رساوه هر څوک چه بد کا طمع دِ د نیکئي نه لري هر څوک چه کني غواړي مړه غوني دِ نه کري نکته "که کشت که نه درود که کرد که نه یاقت" ابیات

"به چشم خویش دیدم بر گذر گاه که زد بر جانِ موري مرغکي راه
هنوز از صید منقارش نه پرداخت که مرغي دیگر آمد کار او ساخت
سپهر آئینهٔ عدل است شاید که هر چه از تو به بیند وا نماید
منادي جهان آنرا که بد کرد نه بر جانِ کسان بر جان خود کرد
مکر نه شنیدي ازفراش این راه که هر کو چاه کند افتد دران چاه"

مقوله "مَنْ حَفَرَ بِیراً لِاَخِیهِ فَقَدْ وَقَعَ فِیهِ" بیت

"چنین گفت داناي آموزگار مکن بد که بد بیني از روزگار"

کلیله ؤ وِ دا حکایت مي په دا راوړ چه ته ؤ پوهیږي په دا لارد محنت په خپل اختیار په خپلو پښو روان شوي ئي ور دِ د رنځ او د حرص په خپله په ځان پرانتي دي نصیحت دِ خما قبول نه کړ بهره مند له عاقبت اندیشئي نه شوي دمنه ؤ وِ رښتیا وائي دا کار مي په خپله کړي دي لیکن تدبیر د خلاصئي څه ویني فکر د دي غوتي د پرانتو څه رنګ کړي بویه کلیله ؤ وِ الله تعالي د خپلو بندګانو په باب تر موره بهتر پوهیږي په درخورِ حال د هر یوه موره ته ئي دولت او نعمت را کړي دیً دا نن هر چه په عرصه ظهور راځي له روزِ اولً دي هر چه ستا د زړه مراد وه الله تعالي و تا ته میسر کړ مصاحبت د بادشاه دِ حاصل شه نیك نقشي د راست ګفتارئي د راست کردارئي دِ د بادشاه زهن نشین شه په سایه د ده د امن د هر چا له بدو په امان شوي درګاه د بادشاهانو منحصر په یوه سړي نه دي بیت

"شاه باید که لشکر انگیزد از سواري چه گرد بر خیزد"

شتربه هر چند که په آسمان والوزي بیا نوم ستا د دست ګرفتګئي پرِ پوري

دي نه بويه چه ته د ده په مرتبه حسد او رخنه کوي زه ستا بهبود د بادشاه له خدمتَ بل څه وينم دمنه وُ وِ بزرګانو ويلي دي عاقلان په پنځه کارَ هر څو ديرکوښښ کا معذر دي اول په هغه مرتبه پسي چه د ده پخوا وَه دويم په هغه تدبير پسي چه زيان ئې په تجربه رسيدلي وي دريم نګاه داشت د هغه حال د هغه وقت چه دي په کښي وي او بهره آخستل له خپلَ مالَ څلورم ځان يستل له هغه ځايَ چه هغه ځاي د بد ګمانئي او د آفت رسيدو وي پنځم په ملاحظه کښي د سود او زيان چه آينده راتلوني دي هر ګاه چه شتربه نيکي ځما د حقونو د خدمت په ځاي را نه وړه بلکه د ده رضا وَه چه ما ورك کا بيخ بنياد ځما په بادِ فنا ورکا اما تر اوسَ ما خداي تعالي د ده له ضررَ په امان کښِ ساتي اوس کوښښ ځما دا دي چه دي په هر شان چه شي آواره دشتِ ادبار کړم زه بيا په خپله مرتبه فارغ البال په خدمت د مزري سرګرم اوسم کليله وُ وِ هر لور ته چه پيك د زړه د انديښني زغلوم بي صبرَ او زياتيدل د اخلاص په خدمت د مزري بل څه نه وينم بارِ ستا څه فکر په خاطر رسيدلي دي دمنه وُ.وِ رضا مي ده چه يو مکر وُ کړم او په هر روش چه شي په شتربه پسي وزم چه حيات د ده د وجود په ممات بدل کړم يا ئې له درګاهَ د مزري مختوري پښي شني وُ باسم چه بهبود د مزري او ځما د کار دواړه په دا کښي دي په دا کارکښي تاخير او سستي عقل رخصت نه را کوي که په دا کار کښي سترګي پټوم خردمندانو ته به معذور نه يم

## بابو جان

۴۱۳

ځو د دِ دنیا شاهان وو هغه څه شو ابر باد د دوي تختونَ په هوا ورِه هغه
څه شو لك سكندر یا سلیمان چه بادشاهي د درست جهان كړه اتیا زره د
سكندر جماعداران وو هغه څه شو په شماره د دوي لښكري نه كیوزي له
سلیمانَ سره څلویښت لكه یاران وو هغه څه شو چه په دنیا كښ دعوي كړه
د خداهي څلویښت زره د نمرود فوجداران وو هغه څه شو هم ئي بادشاهي
كړه قاف تر قافَ نه لكه ئي سپین مقنع هتیان وو هغه څه شو چه آواز ئي
د جنت تر خلقو صاف وو د داوود په آواز زایل وحشي مرغان وو هغه څه
شو چه همیش به ئي له فرعونَ سره جنګ وو له موسي سره اتیا زره یاران وو
هغه څه شو د جنت مثال ئي روغ كړ په دنیا كښ چه شداد او شدید د
بادشاهئي په سهمان وو هغه څه شو چه خیمي ئي لال جوهر مزي د زرُ
كبرجن فرعون هامان وو هغه څه شو له سكندرَ سره تل د عود جام وو په
هیبت له دِ قیانوسَ خاص و عام وو هغه څه شو هم تاج د ضحاك د فریدون
مانړئي شوِ پاتِ د كسري د كیكاوس زر زر شاعران وو هغه څه شو د هغو د
سخاوت نوم شته دي ترابدَ لك محمود حاطم طائي نوشیروان وو هغه څه شو
عاج عفریت غرونَ مات كړه په خپل زور خو رستم غوند نامدار پهلوانان وو
هغه څه شو چه د سرو او د سپینُ حساب ئي نه وه ډیر غنیان لا له عثمانَ
وو هغه څه شو چه دلیل ئي په هر څه كښ چلیده حكمتي وو افلاطون یا
ارسطو بهلول لقمان وو هغه څه شو د سلیمان ګتي شوه وركه تخت ئي باد

یوور خزاني لال مرجان وو هغه څه شو آهینه د سکندر شوه ریز مریزه دا دواړو په قیمت هرکوز دیر گران وو هغه څه شو د موسي همسا به مار آتش مزري شوه جام د جم ذوالفقار او دل دل په لاس د شاه مردان وو هغه څه شو دا قصه که پسي کړم نه تمامیږي د دِ زمکي په مخ څوڅو نامداران وو هغه څه شو د دنیا په مینه څو عالم غولیدلي بابو جان غوند څو څو خریداران وو هغه څه شو که بادشاه د کل جهان شي یا په تخت د سلیمان شي چه تنها ځني روان شي دا هم هیڅ که سکندر غوند د دوو قرنو سلطان شي هم امیر حاکم د قاف قیروان شي چه بندي دِ گورستان شي دا هم هیڅ که سلیمان غوند د انسُ جنُ خان شي هم حاکم د خزنده و د مرغان شي چه د مرگ محصل درشي حیران شي دا هم هیڅ که غني لکه عثمان شي سوداگر هم د ایران هم د توران شي مسافر که د بیابان شي دا هم هیڅ چه حکیم لکه لقمان شي چه آگاه په ظاهر درد هم په پنهان شي چه د خپل مرگ علاج درنه کیده بي ځانَ شي دا هم هیڅ که په کشفُ کرامت د اولیا شي په دریاب باند په وچه پښه روان شي چه گرفتار د نفس په فعل په تاوان شي دا هم هیڅ که ته هرڅو صاحب راي اهل برهان شي چه په عقلُ تمیز خوښ د بادشاهان شي چه په سوال د کراماً کاتبین وران شي دا هم هیڅ که دِ عمر د خضر شي ژوندي په دا زمان شي په هزار کلونَ نه زړیږي ځوان شي چه د مرگ محاصل دریشي نا څار تر فرمانَ شي دا هم هیڅ که په سیر د مرغان شي یا ته تیر تر اوه واړه آسمان شي په صراط باند چه تیر نه شي حیران شي دا هم هیڅ که په دا ویل آگاه د بابو جان شي په آخر چه له فاني سراي روان شي چه خرڅي درځځه نه وي بیا د نورُ فاتحه ته نگران شي دا هم هیڅ څو د دِ دنیا شاهان وو دوي د زمکي بادشاهان وو کل همه واړه د مرگ په لور روان شو د سلیمان د سکندر له قصي واروه چه د مرگ په منزل ورغله حیران شو د فرصت ساعت يې غوښت هم يې بیا نه موند په تنها لاري تنها

مسافران شو بل د شداد د قیانوس له قصي واروه چه د مرګ ساعت پرِ
ورغي پښیمان شو په دینا کښ دعوي کړِ د خدائي اوس سر توري بندیوان
د ګورستان شو که ته وُ ګرزي د مرو په حدیره کښ څو د تا غوند غنیان د
ګور بندیان شو څو څو هسي شاهان د زمکي نور وو اوس نومونه ئي څوک
نه آخلي بي نښان شو په دنیا ئي بادشاهي په عزیزي کړه اوس په خاورو
کښ خاور استخوان شو چه همیش په مجلسونو د دوي خلق وو اوس تنها
ئي وطنون په بیابان شو چه ماشي مګس نه پریښو وځان ته اوس په غوښو
ئي لګیا لړم ماران شو د هغو چه کوهي ډک د خزانو وو اوس له دوي به
حساب غواړي حیران شو چه ئي سترګي د دینا په خزانو نه مړیدلي اوس په
سترګو کښ سرِ ویني روانِ د باران شو چه د نوس په خوښي تله حساب ئي
هیر وو اوس د لعنت طوق ئي په غاړه په زندان شو چه په دنیا کښ راحت
کا بابو جانَ مسافر دي له دِ زمکي پردیسیان شو څو نامدار تر زمکي لاند
آرویده شي نه ئي نام نه ئي نښان له دوي لیده شي د مرګ د خوب ور تله
په هر چا وُ شي که هر څو بیداري که آخر اوده شي هر چه وُ مري هغه خر
وي یا ډنګر وي چه دلي د نیکو نوم پاتو نه شي د حاطم د نوشیروان د سفر
ډیر کالون تیر شو د دوي نوم به تر قیامتَ ښه وایه شي د نیکئِ ورځي دِ دا
دي که نیکي کړي ناګهه به ډمامه د اجل وُ شي د راتلو لارِ به بنده شي تر
ابدَ هغه ځاي دِ تنهائي حال به دِ څه شي ستا صورت به بند په بند څبله
بیل شي هم هډونَ به دِ تار په تار خواره شي زیرمه د قیامت کړه بابو جانَ
د دنیا ساعت په هر حال تیراوه شي که هر څو دِ عمر ډیر شي هم به تیر
شي که خوراك دِ د دنیا شهد شکر شي هم به تیر شي که د دنیا ښادي واړه
و تا در که یا څه ښه لذتونه د دنیا تر حلقَ تیر شي هم به تیر شي که اوره در
باند سوري د غرمو که یا ښي خوشبوي وني په تا سیوري د چمبیر شي هم به
تیر شي که خوبي د زماني دِ تا حاصل شي یا آواز دِ د داوود نبي په څیر شي

هم به تیر شي که بهادر شي د فوزونۍ-یا توچق د بدخشان باد پاي دِ زیر شي
هم به تیر شي که سلیمان غوند دِ تخت په هوا د رومي لال یاقوت یا مرغلري در
سرهٔ شي هم به تیر شي که په اورهٔ دِ تخت روان شي یا چه نوم د سکندر غوند
په خیر شي هم به تیر شي که ضحاك یا فریدون دِ نوکران شي د لښکرو دبدبه
دِ د جام یا د قیانوس شي هم به تیر شي که دنیا دِ د قارون یا د شداد شي
چه نعمتونَ د بهشت دِ.د د دنیا په مینه هیر شي هم به تیر شي که د دنیا
سرفرازي وارهٔ ستا شي ولي نوس به صبر نه که نه به سیر شي زرهٔ پرِ ښاد
مه کړهٔ بابو جانَ د دنیا نعمت که ډیر شي هم به تیر شي د دنیا په حب
کمائي د بادسو سیور به دِ یوسي خود نمایه ستا د یاد په عهد هسي امید وُ شه
چه دوستي ئي په نقصان نه د بقا ئي هغه تخت د سلیمان چه باد صبا وړ هسي
باد په چرته یوورِ ته کومَ ځایه د هستئي په ځلیښو کښ بند لکه مکس شوي
د پنداي په زور به وُ نه وزي له لایه لکه د زاغ د پلتئي په بوي پرواز کړي
قناعت دِ تلقین نه شه له همایه تل په طمع پسي تللي سزا د دا وو په تش
لاس لاړِ د هر دربار کدایه د اخلاص عمل دِ نومِ طلبي وه د دنیا په مینه پور
وي سر تر پایه د ریا عمل به ستا د اور زنځیر که هغه په نام ور کړهٔ دِ وارهٔ دي
بي ځایه په آخر به نفعَ هیڅ ځني نه مومي هر عمل چه دِ څه کړي دي بي
خدایه دوارهٔ کون ئي بها دي بابو جانَ یکانه محبوبه پته پته ستایه خصمانه
مه کړهٔ پرایه خپل صورت له بدو بیایه پردي غم ته به نه رسي فارغ اوسه هم
له لورهٔ هم له زویه غم د هیڅا د رزق مکړهٔ دي رازق دي په دوهٔ سرایه ته
ژغوري د خپل وجود شه په ثابته لار ئي بیایه نا روا آواز مه آورهٔ بي هودهٔ
په خله مه وایه زرهٔ بادشاه نوس ئي وزیر شي سترګي غم راوړي له ورایه په
آرزو پسي چه ولاړهٔ د هغو پنګه شوهٔ برپایه بد عمل به هوري ستا د غاړي
طوق شي هم هوري په څه بلا که در نمایه نګاه بان د خپل صورت شه
بابو جانَ هغه قدیم آشنا وُ مه باسه له رایه هر چه خله ئي په حرامو شوهٔ

آلوده سینه ئي په غفلت شي خواب آلوده د نیکانو له صحبته په ستنَ شي
شیطاني سبق ئي واخست له جهودَ د شداد په دود دعوي د خداهئي که
روي گردان شي له سلیمانَ له داؤدَ چه جبل به ئي په سوك سره پاره کړ
عاج اِرم عنق هلاك شو له اخدودَ د بخت نصر پیاله د کبر شوه نسکوره
بادشاهي وه ترقافَ تر حد حدودَ جالوت طمع له غزا کړه کبر خوار کړ
د طالوت تکیه په حق شوله مذبوده د همایون پګړئ پریوته په اور کښ
د قارون خزانه غرقه شوه نابوده چه همیش به له موسي سره ستهزه ؤ
څکه غرق په رود نیل ؤ لا رِ مردودَ د دنیا په خود مستي دِ خپسر خداي که
په حیات خوراك د ماشیو شوي نمرود د کسري مانړئ هم ؤ لویدي له
ویخه دي منکر وه د رسول له ښه درود د کیکاوس د فریدون پوښتنَ ؤ کړه
عداوت ؤ له ایازَ له محمودَ د دنیا تختونَ څو هسي باد وړه بادشاهان ئي
دست خالي لاړل له سودَ دنیا مرداره طالب سپي دي د سپي تل وي په
مردارهِ خله آلوده دور خوي د زماني دي بابو جانَ خلقه ده تر مرګ
پورِ خواب آلوده اي غافلَ خداي دِ هیر شه ته د نس په خوښي لاړي وار
دِ تیر شه نوس دي پیر ته ئي مرید شوي شیطان در ته د ښه نیك خواه په
څیر شه دا دنیا ئي در ته ناوي ښایسته کړه زړه دِ درست د دِ په مینه ترِ
چاپیر شه د دنیا په آشنائي ته جهان وېني بي دنیا جهان همه در ته اندیر
شه د دنیا په خزانو دِ صبر نه شي که دِ تخت اګره ډیلي لاهور اجمیر شه
که ایران توران دواړه پرګنه شي یا رعیت دِ پښور صوات بونیر شه نه دِ
ژبه په دروغ ویل شوه ستړي نه دِ نوس په نا رواؤ خوړو سیر شه د حاصل
وقت دِ تیرېږي حیواني کړي دور خوي د زماني دي په بل پیر شه د پیرئ د
خزان باد درباند والوت د ځوانئ پسرلي بهار دور ئي تیر شه ملا دِ کوږه شوه
و مرګ وته سلام که درست صورت دي تحرك ؤ که سنګریز شه وارثانو غلبه
درباند ؤ کړه په حیات دِ حکم ورك شه صورت ګیر شه د بندي طوطا په

دود به نارهٔ وُکړي چه کورستان دوړاند تنبول لحد کوالیر شه زړه دي شه
سخت اثر پرِ نه شي د بابو جان د نصیحت سبق دِ هیر شه د دنیا په
خپلوي مه شه بي پرواه د دنیا آشنائي وصله ده له ساه هغه وقت چه
تنسته د ساه پوده شي نور ماکو به پرِ وا نه چوي جولاه رزق هم د عمر
په ساه پورِ تړلي اندیښني دِ لرِ تللي دي ابلاه هغه وقت چه ساه خارجه
شي له کالبوتَ هم جدا شي له ارواحَ آرویده لیده کاته به له تا لاړ شي
هم شماره د قدمونو شي کوتاه که ته نور خته تر پریوته بادشاه وي کل
لبکرِ به خوري شي له بادشاه که مانړئ وي په لاجبر و په شنګرف باند
روغه ورځ به تیرهٔ په کښ نه که تر بیګاه که سړي پیري وارهٔ په فرمان
وي یکتنها به ځني دروميي بي همراه د صورت بیړئ بنا د باد په ساه
ده هم د باد په خوځیده به شي فناه اصل د دنیا بنیاد په باد وه چه باد
وُ خوځي دنیا به کاند وارهٔ فو فناه پرِ باد ودانَ پرِ باد به شي ورانَ عارفان
ورځځه ځکه نا ویساه ارمان به وُکه بابو جانَ چه د باد په خزانو وُ نه
که لاه یوه ورځ به ملامت شي. په دوه ګواه د طاعت په خوا توبه کړه له ګناهَ
دغه پس و طاعت وته دریږهٔ د نماښام روښنائي ور ورهٔ تر صباه هغه ګنج د
سعادت به دِ په لاس شي که درود دِ وظیفه وي له سحرګاهَ د شها د خوښئ
داد په سحرګاه وه مستحقو ځره یورهٔ له درګاه طالبان په کمیني کښ وصال
مومي له غافله په لوئي کښ شوه پناه دا په ژبه یادول هم لوي حجاب دي
طالبان ئِ یادوي د زړه له تاه دا غافل طالب ناري وهي په زوره د حاضر خو
پاسباني له خپله ساه هرهٔ ساه ده بها د دواړو کونو له دِ هسي خریدَ مه شه بي
پرواه که سرمایه د آخرت دِ و باد ورکړهٔ بیا هوري به ارمان کړي چه دریغه
ساد په هرهٔ ساه کښ فائده د آخرت ده دا سرمایه د آخرت مه کړه تباه ته
په ورځ په تلاوت په روژه اوسه غافل مه شه د مسجد له انتباه شب قدر
نن دي بابو جانَ چرګ بانګ بي صبا نژدي شه شپه کوتاه ستا سینه

کړه د دنیا میني لتاړ زره مینه د تمام پسي لاړ د دنیا له میني هسي مبدل
شوي څه دروغ الا بلا ډ کړ په غاړ محرمان مستحقان ډ نا محروم کړه د حرامو
پوښتن نه کړي هر څه نغاړ که دنیا ډ اشتران غوا بزي وي په قیامت هغه
دنیا در پسي تاړ هغه مال به ډ بلا شي سیاه سرخه لك خوګ خنزیر پلنګ
ؤ وزي له جاړ تا به بیا مومي په همبره ډیر عالم کښ ستا بشره به په سومونه
که لتاړ په ښکرون به ډ آخلي یو ډ بله هیڅ ذره به ډ پري نه ږدي بي ګذاړ
که دنیا دي همه واړه سره یا سپین وي هره تنګه به ډ داغ کاند له ناړ په
صورت به ډ داغون ږدي له اوړ په عذاب به ډ بشره کاند ګرفتاړ هم لړم به پر
لګیا کاند له اوړ ایاتون واقع شوي دي له ماړ انبیا له بخیلان روي ګردان دي
عرض به نه که د ظالم بخیل دپاره د بخیل په باب راغلي ایاتون غذابون به
پر سخت کاند دو باره د بابو جان په بیانون باور نه که د هغو چه بخره
شوي ده له ناړ اي باري خداي اکبر و هر چا وته رهبر هر چه ستا کرم پر
ؤ شي د هغو بخره بهتره و تُعِزُ مَنْ تَشَاءُ وَ تُزِلُّ تا ویلي د هر چا بخره راغلي
له اول وَ مَا تِلْكَ بِيَمِيْنِكَ تا ؤ وِ چه په ښي لاس کښ ډ څه دي پیغمبر
موسي وِ دا همسا ده دا همسا را کړي تا ده دا همسا څما تکیه شي چه
مانده شم بي وقر هم زه وني پر وهم هم پاڼري تویه‌وم چه رمه مي وي نهر
دا همسا څما وصله ده په هر ځاي څما په ښه ده هم ته وي څما رهبر
آدم صفي همسا غوښتلي وَه له حق له جنت هغه همسا راغله مطلقه هغه
همسا د حق په نور وَه منوره شپاړس غاښه د ډ تیره وو دولس ګز ئ اوږده
وو ولخ ئ یو وه دوه ئ سره د همسا نوم علیق وه په موسي څښتن شفیق وه په
میراث وه راوړي له پدر هغي همسا به کړ موسي وته خبر د همت د نصیحت
واړه زره ورِ خداي پر تا یم راستولي په ضرور له تا سره یم په دښنو ډ یم غاوره
مار مزري څني دهشت کړ هم غلیم څني هیبت کړ چه به پر دا شوه برابره
هغه همسا به غیلي پوو نه لیوه به غیلي یوو لیوګان په وو له ډ به ویره که هر

څو به کوهي ستروه که به سل ګزَ يا زرَ وو دا به وياسته هم بوکهٔ شوه ډير
عالم به شه سيراب له اوبو خوره هم به ونه پرِسايه شوه رنګا رنګ به ئي ميوه
شوه هغه ميوه يو تر بله وَه بهتره چه په ده باند به شپه شوه دا چراغ هم
به ډيوه شوه هم ساته ئي له خطرَ هم توره وَه مصرئي و غليم ته وَه مزرئي دا
په هره بلا بره چه په لار ته دا ئي آس وَه خوش آواز لکه جرس وَه تله به په
غرونو په ښندونو برابره چه به وري شه نعمت وَه دا خوره لکه شهت وه د
جنت له نعمتونو له ثمره د همسا صفت لا ډيروه بابو جان يو قصه کړه مختصره
خبر شه له حکايتَ د کسري له عدالتَ د ده عدل په عالم باند سايه وَه
ظالمان کل سرنګون وو له هيبتَ د هرچا وه قناعت په خپله بخره ظلم تللي
وه د ده له ولايتَ په خوبي په خرمي ناز هوس وه کل غريب فقير د ده له
برکتَ پاس واني کړه د زړونو حاجت مند به ئي خشنود که له نعمتَ په
ژوندون ئي تازه ووکم زوري واړه هغه دعا به وَه د نيکو له رعيتَ هسي عدل
ئي په خلقو غوړيدلي د ظالم لاس به کوتاه وه له شدتَ که به زاله په لارِ تله
سره سپين ورڅخه ترس ئي نه وه د بدانو له ظلمتَ يو آهو ئي وه په ښکار
ورکيوتلي خپل ياران وو ورسره له جماعتَ د کباب حکم ئي وُکه مالګه نه وَه
بي له مالګي کل طعام وي بي لذتَ يو غلام د ده نمك لره روان شه.له
بازارَ به ئي راوړم تر ساعتَ نوشيروانِ وِ بها يوسه نمك راوړه بي بها به
وي له ظلمَ قباحتَ که په ظلم له چا څه آخلي به حرام وي که په خواست
غواړيَ سوالي وي بي عزتَ د ده سپاهي يو وري له زالَ واخست کم سپاهي
خالي وي له ظلمَ له شدتَ غه زال پرِ بادشاه باندِ عرضي شه چه له ما
وري سپاهي په زور واخست حضرتَ نوشيروان وِ دو چندان ته له ما واخله
چه هوري په عادلانو کيں زه نه شم هزيمت ده وِ په لښکر کښ دِ شته ظلم
عدل وُکړه اي بادشاهِ ولايتَ بادشاه وِ د پنځو بيع ته واخله ترس مي شي له
آزارَ له آفتَ بيا بادشاه وِ د لسو بيع واخله چه په ګرانَ ورځ زه نه شم ملامت

ده وِ عدل وُ کړه ظالمان به نه جاروزي له عادتَ بیا بادشاه وي د شلو بیع
واخله زه ویرېږم د هولونو له هیبتَ ده و عدل وُ کړه د کم زوري تکیه کومَ بي
حضرتَ بیا بادشاه وي چه د زرو بیع واخله چه بلا خلقو ته رسي د بدانو
له شامیتَ ده وِ عدل وُ کړه په دا به نه جاروزي له عادتَ هغه سپاهي دغه
وري په ځاي قصاص شه خبر شه خلق د ده له عدالتَ په ولایت ئي نوم د
ظلم پاته نه شه ظلم هیڅرِ چا نه که له هیبتَ عدلْ داد چه په چا وُ شي
ظالمان به روي سیاه وي سر په ښکته هم عادل هم سخي وي بابو جانَ
د هغو چه بخره شوي له جنتَ باري خداي له موسي رازکړ موسي دا ځواب
د رازکړ چه همسا ځنه شته دي ډیر هنر وَاَلقِهَا یَا مُوسَي ورته وُ وِ د موسي
په زړه پیدا شوه ډېره ویرِ د موسي امید کوتاه شه له آخستو دا ئي واچوله
دورستو دا خبره پرِ موسي وَه سخته تره چه ده واچوله مار شوه دا په قهر د
قهار شوه هم له قهرَ تله اوتره د دِ خله یوه دره شوه هره سترګه ئي لنبه شوه
وني غرونَ به ئي نغړدِ بیا به وړي وَه نهره موسي ډیر ځني لرزان شه شا ئي
ور ته کړِ روان شه یو الهام په موسي وُ شه له اکبرَ اي موسي ور نژدي کیږه
ته ئي نسه مه ویریږه د موسي له زړه خارجه شوه کلي ویرهِ موسي لاس کړ هغه
مار ته مار همسا شوه و خپل یار ته په زمان هسي کړه وُ شوه لهَ اکبرَ
کُنْ فَیَکُونْ دي بابو جانَ چه هیڅ کار ئي خالي نه دي له هنرَ فرعون چه
سیالي کړه له باري خداي اکبرَ د ده نه شوه له حضورَ خدايَ ویره ده له
خدايَ ویره نه کړه حنګ دعوي د خدائي کړه نه ویریږي له قهارَ و موسي
وته ئي وُ وِ جادوګرَ راشه په حضور وایه سحره هم دعوي به په حضور شي موثرَ
ځلویښت بارَ ئي راوړي رسئيَ د اشترو هغه رسئي واړه ماران کړِ سحرکرو هره
ویاسته ئي تور مار شوه دوه ئي سرَ موسي هم همسا واچوله مار شوه دا په
حکم د قهار شوه هغه ماران کل تمام کړه وړي پاتو شوه نهره ځلویښت زرَ
سحرګر ئي مسلمان شو هزیمت ئي کافران شو د فرعون په طالع نوي شو سفره

بیا فرعون په موسي پسي روان شه موسي تیښت وُ که دوان شه چه پر سند راغي حیران شه یو الهام په موسي وُ شه له اکبرَ دا همسا په سند ګذار کړه و لښکر وته روغه سپینَ لار کړه د موسي لښکر امان شه فرعون غرق شه هر څه سره د فرعون خزاني هم ئي مالونَ هم باغونَ واړه د موسي لښکر اولجه کړه هر څه سره چه دښني که له نیکانو بابو جانَ عاقبت به د هغو چارِ شي ابتره باور وُ کړه اي غافلَ دا خبره ده مشکله مردګان به پرِ ژوندي شو روغ به واړه لیوني شو چه موسي به پرِ همسا وُ ګرزوله په نوس به د مادر شه که دختر هم به پسر شه چه موسي همسا پرِ وُ وهله که به هر څو سخت رنځور وه یا ئي رنځ طاوون ناسور وه له هغه رنځه به فارغ شه چه همسا به ئي په ځان پورِ وُ مښله وچه به شوه تانده هم میوه پرِ آویزانده چه موسي به دا پرِونو وهله دوُلس چني ځني روانِ لورپه لوربه شوِ دوانِ چه موسي یه په کانړي وهله چه په سند به ئي ګذار کړه و عالم ته به ئي روغَ سپینَ لار کړه سلامت به خلق خلاص شه له مشکله دوُلس زرَ بیاستِ د فرعون تور ماران شوي دوي به یو د بله نغړدِ دیګران شوِ هغه به هم عظیم مار شوه د فرعون ماران ئي وُ خوارهِ پرِ بله که قصه واورِ له عاجه عاج ئي مړکه بي علاجه دا په رنګ د عزرائیل شوه د عاج دم وُ خوت په خپله هره زیرمَ به ئي خداي کا بابو جانَ چه هغو تکیه په خداي وُ نښلهوله د سلیمان دګتي ځرنګ برکت وه په څو رنګَ ئي صفت وه روغه شوي وَه په عرش کښ مشتمل په ډیر حسن په زینت وَه په سلیمان باند نزوله وَه له غیبَ نه د سلیمان په کښ آزار نه ئي محنت وه برکت د بادشاهيِ وه په دي کښ میسر ئي څکه روي د مملکت وهِ رجالُ الغیب به د ده په مجلس ناست وو هم حاضر د فرښتو به جماعت وو انس او جن هم و ده وته اکرام کړ دیو پیري ملك ئي واړه په خدمت وو مدلل د آسمان زمکي ورځخه وو ذَ اتیاوُ آسو د هریوه قوت وه په درِ پښي به تله له خیالَ یوه پښه به ئي وړه بالا د دوي عادت وو په بها ئي مشتریان

نه رسیدنه په قلم نه رغیده هسي خط وو یوه روښ سلیمان د دوي په ننداره
وه زړه ئي ډیر په خوشحالي په عشرت وه په سلیمان باند الهام ؤ شه له
غیبَ چه ترما و تا ته تیردغه لذت وه هغه آسونه ئي د ښښتن په رضا ور
کړه سلیمان ډیر د خداي له ویري په هیبت وه باد صبا خداي دغو آسو په
ځاي ورکړ نه ساتل نه ئي تړل نه خذمت وه هغه تخت به باد د ده په حکم
واخست په غه ملك به ئي ور وړ چه د ده نیت وه باد صبا دغو آسو په ځاي
بیا موند دغه هسي برکت د سخاوت وه هیڅ ئي نه خواړه مګر له خپله کسبَ که
ئي ډیره وَه دنیا ډیرئي دولت وه ته شغرب ته مغرب ئي وه حکم دغه واړه زیات
زکوة برکت وه په دوه کونَ به روي داروي بابو جانَ د هغو چه په ازل بخره همت
وه خبر شه له دِ بیانَ عنایت وه له رحمانَ آهنه ئي روغه شوي په قدرت وَه هم په
فضل د قدرت ئي وه روښانَ په سکندر باند راغلي وَه له غیبَ تمامي دنیا
په دي کښ وَه عیانَ له نظرَ به ئي هیڅ پوشیده نه ووځو تعریف د دِ وایه
شي له صفا نه د دنیا احوال کلي په کښ معلوم وه له نظرَ ئي ذره نه وَه پنهانَ
یمین یسار په کښ لیده شو شنوائي ئي وَه ترقافَ و قیروانَ برکت د آهیني
ورسره مل وه په همت ئي صفا واخسته له دارا نه که به هرڅو په ده ؤ
رغله مشکله په دعا د فقیرانو به مشکله شوه آسانَ یو د غیب قوت هسي ور
سره وه د دارا لارئي بنده کړه له جهانَ سل څلور لکه سواره د ده موجود وو
همیشه به ئي بري وه له جولانَ نَصْرٌ مِنَ اللّٰهِ دي ویلي تل د خداي په
حمایت ئي وَه مرانَ ولایت ئي د دارا کړ واړه فتح حقاني کرم ئي مل وه له
سبحانَ چه سفرئي په نا لیدلي لار وه آهینه ئي مدلله وَه دیدوانَ چه ده به د
آهیني په مخ نظرکه نهایت به ئي حاصل شه ترپایانَ د سلیمان په حکم
باد وه د ده ابر آهینه ګوښي بخره له سلیمانَ په دینا به څه امید که
بابو جانَ چه هغه هسي شاهان لاړه له ارمانَ سکندر لړه ورکړي حق
سبب وه قیاس نه کیږي عجب وه د عاقل د هنر درك په کښ نه وه نه

نقره وه نه ذهب وه نه کانړي وه نه خښته نه حشيش وه نه حطب وه نه
دي روغ په آب خليس وه نه په خشک نه په رتب وه هيڅ مثال ليده نه
شه تر روڼ تيز روان په شب وه آلواته ئې وو بي پرو په هوا به د ده سير د
سحب وه رسيده به له يمينَ و يسار ته له شغربَ به روان شه په مغرب وه
چه ځښتن د دواړو کونُ ورته وائي دا خطاب د ده په اسم مرتب وه بل چه
اسم اعظم د ده په ياد وه حاصل شوي کلي واړه مطلب وه بل د حيات د
چشمي يافت د ده ضحا وه له حياتَ خضر لياس وړي منصب وه بل حکماً
مدلل د لرِ ملك وو روزي شوي د هر مهم مطلب وه نه په خوا ئې وه ثاني نه
به پيدا شي لکه و ده سبب ورکړي مسبب وه د فلوس ظلم ئې نه کړ په کم
ژوري چه دوراندِ بادشاهان دا مذهب وه نيکو بد به د بادشاه په باب دعا
کړه چه بادشاه د فقيرانُ د سر سبب وه په خوښي سړي و خلقو وته دروند
وي د سليمان د سکندر څو په دنيا درب وه تر قيامتَ به ئې نوم وي
بابو جانَ د هغو چه په اخلاص پسي مطلب وه د حاطم نوم به جاري وي
تر قيامتَ د ازل بخره ئې وَه له سخاوتَ حاجت مند په ځني نا اميد تللي
نه وو ورکول ئې وو بي اجرَ بي منتَ د سوال ګرزيړه به ئې روغ په مرحبا کړ
کاهل نه وه د فقيرانو له خدمتَ هر سوالي چه به د ده په درحاضر شه
هغه رنځور به فارغ روغ شه له زحمتَ په جهان نوم پريشان د سخاوت شه
فقيران به پرِ ور تله له ولايتَ په ښهرونو ئې نوم لاړ د سخاوت ښه بادشاهان
په غوصه شول له شهرتَ چه د ده د سخاوت بيان به وُشه بادشاهانو به له
شرمه که سر ښکته د بادشاه هغه خبر اعتبار نه وه خپل وکيل ئې ورستاوه
له جماعتَ چه ته ورشه احوال ئې واړه زده کړه هم خبر شه د ده له مروتَ
يو ښه آس ور څخه شته دي و ئې غواړه دلالان ئې نه رسيږي له قيمتَ که ئې
درکه هم کريم دي هم سخي دي که ئې در نکه بخيل دي بي همتَ هغه
سائل چه په دربار د ده حاضر شه د حاطم خوي دلاسه روي تازه خندان

عادت په هغه ورځ پرِهغه ملك آفت نزول شه کل چارپاې په بیدیا بند شه له آفتَ بل خیز ورځخه نه وه هغه بـه آس ئي حلال کړ چه زه نه شم ترمیلمه پوري بي پتَ هغه آس په وکیل کران وو زړه ئي بد شه درست خبر شه د حاطم له حقیقتَ غه سائیل په بیارته لاړ شه له حاطمَ سائیل پوره ملن یوړه له نعمتَ د ده حال ئي و بادشاه وته معلوم کړ آفرین بادشاه پرِ وُکه له رحمتَ نور خلق په صفت واړِه مشغول شه څو قصي کیږي د ده له سخاوتَ همت د خداي له خزانو دي بابو جانَ همت ناك دي څښتن نه که بي همتَ اي جبارَ جهان دارَ بادشاهي دِ ده قرارِه فرعون چه دِ بادشاه کړ چه په مصرئي خداهي کړله اظهارِه رود نیل ئي په فرمان شه تا دوستان زهیرول د ده دپاره لکه به دي په غره روان شه سخت کمر به ور ته زمکه شوه هوارِه په دعا به ئي وریځه سیلي باران شه هم به زمکه په نعمت شوه مرغذاره په دریاب به ئي که حکم کله کله درگوهر به ئي خارج کړِه په کنارِه ده به هر رنگ استدراج په زمکه وُ که ساحران د ده په حکم وو بي شمارَ فَقَالَ اَنَا رَبُّكُمُ الْاَعْلَي وُ وِ په ویل ئي خلقه شوه اعتبارِه د فرعون په عزت به دوي قسم کړ دشواري دروغ رِن ته شوه دشوارِه بادشاهي ترکمالَ شوه کاملَ اتیا لکه ئي سوارِ له کارِ و زارَ وَ تُعِزُّ مَنْ تَشَاءُ ویلي له هرَجنسَ دنیا ډیره وَه بي شمارَ ذَالْاَوْتَادِ الذِّیْنَ ئي ویلي د خیمو موږي وو د سرو زرو سرِه لعل ئي روښنائي وه له نارَتمام ښهرئي خوشبوي وه په عمبرو خوشبوئي همیشه وه له عطارَ توریتیانو د موسي حالِ وربیان که بادشاهي ئي شوه په موسي هم نگونسارِه په کشتن ئي د هلکو حکم وُکه شهیدان ئي کړِه طفلان هشتاد هزارَ عورتیني ئي په زور ورځخه بوتي د مردانُ خلاصي نه وَه له بیکارِه فَاَکْثَرُوْا فِیْهَا الْفَسَادَ آیات د دوي په باب راغلي گناهونَ ئي بي حده کړِه بي شمارَ ظلم جور ئي ډیر وُ کړ په خلقو هم ئي ډیر په بني اسرائیل شوه دشوارِه بیا ئي روغه و آسمان ته منارِه کړِه پونسو کروه په هیندارِه چه په دا کښ به زه ور شم تر آسمانَ بیا به آسمان په الماسونو

کړم دو پاره چه د ځلورو میاشتو لار ئې پورته وتهٔ ملائیك شوي پر نزولِ له قهارَ هغو فریښتو منارهٔ پورِ وهله هغه سخته مناره لور په لور شوه تار په تارَ د ځلویښتُ میاشتُ لارئې خپنتي ولاړي له هیبتَ خلقهٔ وُ مړه بي شماره فَصَبَّ عَلَيْهِمْ دي ویلي هلاکت په ذوي نازل شه له قهارَ زن فرزند مال متاع ئې غنیمت شوه بني اسرائیل ئې وارثان شوه په تیاره فرعون آزار ورك کړ بابو جانَ هامان قارون دواړه غرق شوه له آزارَ د فرعون اعتباري همراه هامان شه ځکه دي له لاري وُ وُت بي ایمانَ شه د بد یار آشنائي زهر قاتل وَه چه اثرئې په ده باند عیان شه لکه بابا آدم چه وُ وُت له بهښتَ بد همراه مصلحتي ده شیطان شه اَعُوْذُ بِاللّهِ مِنَ الشّیطَانِ الرّحِیمِ دي ویلي بد همراه مثال شیطان د هر انسان شه ده به هسي د فرعون مثال تعبیر کړ چه فرعون به و خداهي ته بد گمان شه د دنیا په هوښیاري کښ کامل که زیرکي د دین ورکه شوه نادان شه هسي کبر غرور په کښ پیدا شه چه ناځیز ئې تر نظر پورِ انسان شه د سلام په ځاي سجده کړه ور ته خلقو هغه تمام عالم په کفر کښ لغزان شه په حضور به ئې ثنا کړه هرچا ډیره د ده صفت به په زړه د دوي نشان شه لوي هلکو به مدام د ده صفت کړ د ده زړه به په صفت د دوي ښادان شه هرثنا به د ده کیده د نیکو په صفت ئې ښه هم بد واړه انسان شه په ده زیري وي خبرِ د پیریانو درست باور د زړه یقین ئې پرِ پیریان شه غروري ئې زړه ته پریوته د کفر اَنَا رَبُّکُمُ الاَعْلَي وُ وِ مدعي دي د رحمان شه چه دلي ذوق وه هوري طوق شه ترابدِ ورځي پوري په زندان شه د نوح نبي زوي لایق د نبوهٔ نه وه د بدانو په مجلس شه بي ایمانَ شه بد همراه دِ د چا نشي بابو جانَ د بد یار په ویل ډیر خلق لغزان شه

امام عمر نسفي هسي ويلي مبرهن دي چه صوفيان د حق دوستان دي
م د زړه په پاك كردن دي دوي پريښي غيره مينه آشنائي ئي ده له خداي
رافق ځي له كتابَ آراسته د پاك رسول پر ښه سنن دي پاك الله دي
ه دوستي واړه نيولي چه له خلقَ تبرا دي هم چه نغښتي د رسول د شريعت
ه پيراهن دي په دا فساده زمانه كښ هر څوك لاف د درويشۍ كا دوي
رو لس فرقي شوي غه يوه طائفه ناسته د پاك رسول پر ښه سنن دي غه
رو لس گمراهان دي د نبي له منځَ ورا دي دوي به واړه وُ شميرمَ افغانان ور
مبر نه دي و دانا ته مبرهن دي اول فرقه حبيبيه اوليائيه شمراخيه اباحتي
ي حاليه حلوليه دي حوريه دي دوي واړه په غلته چار برند دي واقفيه
جاهليه متكاسليه الهاميه دي په ظاهر دوي درويشان دي په باطن دوي
شيطانَ سرهِ پيوند دي ـ فرقهٔ اول ـ د حبيبي مذهب زده كړه د نبي له
سروۍ دي وتلي دوي وائي د هغو چه د ښه خداي مينه روزي شوه عبادت
نِ نور وُ لاړ شه په بندگي نه دي نيولي دښني كا له عالمانُ هم حرام
للاوينَ د نبي په دين كښ نه دي چه فرضونَ ئي برمنډ دي ولِ دوه گتي چوتي
ي وهلي دوي كفتار كا په مثال د اولياوُ هم ډير خلق گمراهوينَ سكه حتياط
نِ وُ كانړۍ دوي د كفر په گرداب دي كښيوتلي څوك پيران شوُ ولِ ډير
ليفه ئي كړل لومه خلقه ئي كړه گمراه عامي خلق للكَ مرغي په كښي نښلي
وي بي شكَ كافران دي درويشي تركِ وجود دي ولِ دوي په هوډه غواړي

چي په توره په توبري وبلَ ته زغلي په هره زمانه کښ چه دا گمراهان پيدا شي بادشاهان به پر هغه خلق باند ظالم وي هم به هر رنگَ بلا هله پيدا شي دا حضرت رسالت هسي ويلي سکه پرهيز دِ هر څوک وُکا له دي هسي گمراهئي زيات هغه چه دوي په خداي او په رسول لاس لکولي دا روايت که دي امام عمر نسفي په فارسي کړي افغاني ئي درويزه ځنِ ويلي - فرقهٔ دويم - بل مذهب اوليائيه دي ته ئي گورِ چه د دوي کفر څه بلا روښان دي دوي وائي هر بنده چه اوليا شي پر ده امر نهي ورک شي د دوي هم تللي ايمان دي وسکه سنت جماعتي دِ ور ته وائي چه که امرنهي نه واي پر نبي باند به نه ووُ چه نبي په انبياوُ کښ ترخان دي شفاعت به دي د نورو رسولانو د امت کا چه د پاك نبي م روي پر الله گران دي هم هسي دا سپي وائي چه ولي به هم افضل تر نبي وينَ په دغه بده خبره بد مذهب د حق په دين کښ هم لغزان دي ته پناه له خدايَ غواړه له دي هسي گمراهئي د درويزه خبره پند کړه دا فقير م د نبي د دين جويان دي - فرقه سيوم - دريم مذهب د شمراخي کافران دي نا روا روا کوينَ دوي وائي د هغو چه له ښه خدايَ آشنائي شوه امرنهي څه لرِه پرځاي کوينَ هم هسي هر آواز چه وي د دف يا د شپيلئي هم له چنگَ له ربابَ دغه سپي ئي آرويده روا کوينَ هم ئي کفر پيدا کړي چه ئي زنا دي حلال کړي دوي وائي دا عورتي دي گلونه گل هم هر څوك بويوينَ دغه قوم د عبدالله شمراخي دي په ظاهر دوي صالحان دي په باطن کښي کافران دينَ اوس څمورِ په زمانه کښ لکَ خوك تاريك پيدا شه دا خبرهِ ئي انشا کړه ولِ دير افغانان ئي وُ ياسته له دينَ د دوي خون دي مباح شوي نبي هسي دي ويلي چه پر مرگ ئي سرفه مه کانړئي امتَ هر چه څمارِ دين به بدلوينَ درويزه بيان پښتو کړ له قرآنَ له حديثَ بل هر چه مؤمنان دي په سينه هم پر تتر دِ کيږدينَ - فرقه چهارم - څلورم مذهب اباحتي دي په بدانُ کښ بتر دي دوي وائي پر خپل ځان وُم قوت نشته چه ئي

بیارته کړو له بدٔ سکه په نور چا وُم څه چارده په دغه وئ کافر دي نه و چا ته
وائي چه نیکي کړه نه څوک له بدٔ آړوینَ پردي مال او هم زنا حلالوینَ ترکافرُ
لا بتر دي گفتارکردارئي دي د کفرهم آزار حجاب گنړینَ دوي بي شکٔ کافران
دي ترکافرُ هم بتر دي دا هسي گمراهان په دا فساده زمانه کښي ډلِ ډلِ به
دوي گرزي برمنه کړي به ئ فرض وي سکه حتیاط څنِ وُکانړئ چه د کافرانو
سر دي سکه څمورِ حجت هم دا دي امر نهي په رسول باند راغلي هر چه
امر نهي نه کاند نه ئ وائي مسلمان نه دي اوتر دي د امام اعظم اقوال دي
درویزه په کتابونو کښ لیدلي هر چه امر معروف نه کا شیطانان دي دوي ناست
پر شور شر دي ـ فرقه پنجم ـ پنځم مذهب ئ حالیه دي دوي سر هوا چاري
به کاند هر چه مرد او زن ئ گوري دوي سماع حلالوینَ گاه بي هوښَ شي
دوي پریوزي کهي لاس پر بل وهینَ کهي څرخ کا کهي ښوري دوي په زوره کا
خبري هم سرونَ خوځوینَ دوي وائي دا وُم حال دي للٔ پیري ورته حاضر
شي دوي وائي فرښتگانِ دي راغلي را ته گوري مریدان ئ وهي لاپِ چه دا
حال څمورِ د پیر دي عالمان ور خبر نه دي هر چه پیر وائي سفیدي ده چه
علمان وائي غه توري په دا رنگٔ ضلالت او بدعت سړي کافر شي په قیامت
به ئ مخ تورکا چه اته لس زره قامَ به ئ گوري هر چه سرهوا خبره کاند له
نبي سره ئ جنگ دي او هغو چه د نبي سنت خلاف کړ ور به نه یشي د
شفاعت په لوري درویزه کتاب پښتو کړ بل واړه افغانان دِ هم یاد کا چه
فرقي د گمراهانُ دوي زده کا هم ایمانِ له دوي وُ رغوري ـ فرقه ششم ـ شپږم
مذهب د حلولي دي چه ئ کفر پیدا واردي دوي وائي د شهوت نظر حلال
دي دغو سپیو دغه حال دغه کردار دي للٔ ښه صورت وُ ویني رقص کاند
چه د خداي جمال م وُکوت دا اقوال د کافرانُ دا کافر هم په دغه کفر گرفتار
دي د درویزه بنده گفتار د زړه صیقل دي که ئ نغوري هر چه وائي له قرآنَ له
حدیثَ د نبي د چهار یارو مینه دار دي ـ فرقه هفتم ـ اوم مذهب د حوریه و

ځان درویش او شیخ شمرینَ نه پوهیږي لکَ دوي په خلوت شي شیطان وائي چه خداي را کړه دوي په هر رنګ لیده به غلطیږي لکَ ور شي د شیطان لښکرونَ دوي واړه رنګارنګ شي ولِ ځنِ لکَ حوري چه په لاس ئي صراحي وي هم چراغونَ ور نمائیږي لکَ بي هوښ شي په څرخ کښ وسکه تخت به د شیطان ور ته څرګند شي چه دا عرش دي هم شیطان په ښه صورت ور ته څرګند شي چه زه خداي یم ستا له خدايَ لیده کیږي بیا به دا ور ته وُ وائي له علمانُ خپلوي مه کړه دوي راه زن دي ستا له حالَ دوي منکر دي چه دا حال ئي نه حصلیږي هم به دا ور ته وُ وائي چه موسي لیده صفات وو ته ذات وین اوس په هسي مرتبه شوي چه موسي غندِ نبي در نه رسیږي ګاه پیري شي ورحاضري وائي حوري دي راغلي موږ به ملاست ور سره کړونَ چه په هوښ شي غسل کاند پر دا واړه ګمانونَ چه یقین کا کافر کیږي دا بیان چه افغاني دي په دغه رنګَ ویلي عبد الله یافعي دي په رسالهٔ مکیهٔ کښ ئي وُ غواړه که باور دِ په پښتو ژبه نه کیږي درویزه دي بیان کړي روایت ئي آوریدلي له جملهٔو اماماُ ـ چه آګاه له دي څلورَ علمَ نه وي پیري کاند مریدان به ئي ښوئیږي اول علم تفسیر دي له حدیثَ له کلامَ څلورم علم تعاط دي که له درِ واړه اګاه وي له تعاطَ آګاه نه وي عاقبت به وُ ښوئیږي او که لاپ کا له تعاطَ له تفسیرَ له حدیثَ له کلامَ خبر نه وي دي ګمراه دي خلق ګمراهوینَ ولِ هر رنګَ سړي نه ور پوهیږي ـ فرقهٔ هشتم ـ اتم مذهب د واقفي دوي له شناختَ منکر شوي دوي وائي خداي به پیژانده را نه شي دوي په شناخت کښ حیران شوي دوي وائي خداي دي خپل خپسر ښخپل پیژاندلي په بنده به پیژانده نه شي په دغه وئي ګمراه دي غلط تللي له اسلامَ بیرون شوي ولِ اهل سنت وائي پیژانده د حق آسان دي پر بنده باند راغلي هر بنده دِ هنمبره زده کا چه خداي یو دي کل کارونَ ئي په حکم پیدا شوي درویزه بیان دي کړي بل هر څوک دِ دا زده کا چه خداي یو دي هر چه وائي

خداي به پېژانده را نه شي غه کسان دي گمراه شوي ـ فرقهٔ نهم ـ نم مذهب
متکاسلیه دي دوي له کسبَ لاس وُ ښکلي تل بنئي کاند په غاړه درویزه کا
هم کچکول ئي دي په ملا پور ترلي تل له خلقَ به زکات صدقه غواړي په
زاري تل بي عذرَ درویزه کا دوي خلاف دي د نبي له کفتَ کړي نبي وِ که
وُم وچولي خولي شي یا وُم لاس شي په تنراکه کسب کانړئي هر چه آساني
کا کسب نه کا رزق به غواړي تل له خلقَ هغو دین دي پرولولي چه مطلق
آساني کا نه به کډ وي نه به شل وي نه طالب به وي د علم نه به زوي لور
ودوینَ نه به ډیر عیال لرینَ چه ته فصل به نه رسي نه به دي وي پوروړي
هم هسي تل بي عذرَ درویزه د ده عادت وي په قیامت به ئي د مخ غوښې وُ
رژیږي چه به دي وي شرمولي او که دا هنمبر عذرونَ چه م یاد کړهٔ ولِ یو
پر ده پیدا وي باك ئي نشته که به خواست کا په قیامت نه دي نیولي
درویزه چه دا بیان کړ روایت له معتبرو کتابونو ئي را وُکیښ هر چه پسروي
به کا د کتابونو د نبي پاکیزه راه هغو نیولي ـ فرقه دهم ـ لسم مذهب متجاهلیه
دي څه به وایم د بد بختو له بیانَ دوي قوم د دهریانو چه منکر دي له
حدیثَ له قرآنَ بیزار شوي دي له علمَ له علمانُ سر هوا خبري کاند دلیل
وائي دوي وتلي له ایمانَ دوي وائي چه قرآن حجاب د راه دي دا بدلي دي
بر حقي چه قرآن د طریقت دي څه به وایم دغو سپیو له گمانَ دوي عمر
په بدلو هم په کفر گمراهي کښ تیروینَ کله وائي چه دا پیر خمور خداي دي
یا نبي دي یا ولي دي کله وائي چه مهدي آخر زمان دي په دا بده
زمانه کښې اوس هر رنگ گمرهان ډیر شوُ ولِ زیات ئي په افغان کښ بنیاد
دي له تاریکَ پیر روښان او که ته طالب د خداي ئي ته به بي د پاك
رسول له پسروئي قبول نه شي د درویزه خبره پند کړه ده ویلي له حدیثَ
له قرآنَ ـ فرقه یازدهم ـ بیا هم زده کړه دا مذهب د حلولیه د دي سپیو څرنګ
بد گمان دی شوي دوي وائي خداي په خلق کښ خلق په خداي کښ

محو شوي خاورِ ئې په خله شه چه هيڅ نه وُ هله خداي وُ هسي دي هسي به وينَ هر چه څه په کښ وي ميان کاواك وي او هغه چه په څه کښې وي غه عاجز وي پيدا شوي بل مذهب د الهامي په حلوليه پورِ تړلي نفل نمونځ روژه به نه کا له فرضونَ ولِ مخ ئې له قرآنَ هم له علمَ له علمانُ جاروتلي نيک بد پرِ بل وهينَ دوي وائې مورِ خراباتي يوُ له قرآنَ له معراجَ ئې منکر دي دوي د ګمراهانُ شعر د قرآن پر ځاي نيولي دوي عمر په دا بيهوده بدلو تيروينَ دوي بي شکَ کافران دي هر چه دا خبره وائې غه کافر دي هم عورته ئې طلاقه دا حديث د پاك رسول تر خلي وتلي درويزه چه دا بيان کړ افغانانُ لرِه بس دي که يقين باند وُ کاند هر چه دا خبرِه زده کا پرِ باور کا هغو لاس په پاك نبي ور لګولي ـ فرقه دوازدهم ـ دولسم مذهب ته زده کړه چه دا پاکيزه مذهب دي د سنيانُ دوي سنت جماعت دي هم پيرو د پاك نبي دي هم دايم مدام صحبت ئې دي له علمَ له علمانُ د خداي فرضونَ نه قضا کوينَ له حرامُ پرهيز کاند له جمله حرامَ فعلَ له شرابَ هم له رقصَ له سماعَ له بازئې حتياط کاند يارانُ کسب کاند د حلالو هم معراج بر حق ګڼرينَ چه په تن وُ تل دايم صحبت ئې له سنت جماعتي نيک کارَ پرهيز کاند ناسته نه کا له بدانُ که څوك ور ته ښکنځل کا دوي به بد ور ته نه وائې چه شريك به په لعنت شي دوستي کا د خداي له خلقَ ولِ کبر او مني نه کا تر هر چا خپسر کوز وينينَ دغه خوي دي د خاصانُ په فارسي په عربي هر څوك پوهيږي درويزه بيان پښتو کړ په فارسي په عربي کښ علمان دي و خپل قام وته پخپلَ ژبه وائې ولِ کم څوك پيدا شوي له افغانانُ

بسم الله الرحمن الرحیم

بسم نام د الله خداي دي کار ساز د کل عالم دي د بندګانُ رحمان مهربان خداي دي رزق روزي وُ رسوينَ و مومن و کافر و جملهوُ ځانورانُ رحمان رحيم دواړهِ مشتق له رحمتَ د رحمان معني مِ وُ وِ رحيم بسيار بخشاينده دي هورِ ډير به ور کوينَ دي خاصهوُ مومنانُ ما چه دا کتاب آغاز کا د خداي نوم مِ بدرګه که هم امان غواړم له خدايَ له شيطانَ مِ ګريز دي بلَ نه شم دِ پښيمانَ جمله صفت ستاينه چه چا وُ وِ يا به وائِي دا لايق د الله ده چه خالق د کل عالم دي هم پرورنده د جهانيانُ د هغه جهان ښادئِي د هغو دي چه پرهيز ئِي کړ له کفرَ له ګناه به ئِي خلاص کا هم جزا به ور کوينَ له خاصانُ د خداي درود رحمت پر پاك رسول شه چه ښه نوم ئِي محمد دي هم ئِي پر اصحابُ پر امتي دغه پس پر علمانُ ته زده کړه چه بنده دي آزميلي په نيکي هم په بدي کښِ د نيکانُ به ثواب وِي د بديو به عذاب وِي د عاصيانُ په آزميښت کښِ ئِي فاعل بنده ترلي په روا په نا روا دي څوك دِ کاندِ څوك دِ نه کا پس هيڅ څارهِ مِ نشته د روا د دواړهِ نوع له بيانَ هم هسي د روا د نا روا معني به وايم له حکمونُ چه آسان پر طالب شِي ولِ زيات پر افغانانُ درويزه بيان کا اوس توفيق غواړي له خدايَ فرض واجب سنت مستحب سره روا دي پنځم مباح هم ور سرهِ کانړئِي يارانانُ حرام مکروه ئِي نا روا دي بل مفسد ور سره مل دي مفسد چه په روا عمل کښي راشيَ دي تباه کا تاسُ وا روئِي دوستانُ پس دا واړهِ اته رنګ ـ هر چه فرض دي ثابت شوي په آيت هم په حديث دينَ بي شکَ پس حکم ئِي ثواب دي د کامل

هم عذاب دي د بي عذرَ تارکانُ هر چه له اتفاقي فرض منکر شي به کافر شي لکه پنځه وقت ئې نمونځ دي لازم کړي پر عورتُ پر مردانُ - هرچه واجب دي ثابت شوي په آيت يا په حديث دي لبکي شک به په کښي وينَ د کړو د نه کړو حکم ئې د فرض دي اعتقاد ئې هسي نه دي چه منکر به ئې نه وي د کافرانُ - سنت چه به نبي دايم مدام کړ ولِ يو څله يا دوه ئې ووُ پريښي ثواب ئې په کردن دي په دي نه کړه ملامت په مؤکده کښ چه به دي شي له پښيمانُ - مستحب چه نبي يو څله ووُ کړي نور ئې نه کړ امامانُ کړ پرِ مهر په کردن کښ ئې ثواب دي په نه کړه ملامت نه دي ولِ ډير ارمان به وُکا لکه لوي بخره ويني د نيکانُ - په مباح کښ مخير دي که ئې کاندِ که ئې نه کا هم ثواب عذاب ئې نشته دا خبر په روايت د بينايانُ - په حرام کښي ده نهي ثابتَ شوي اوس مطلق چه د هيڅا جګړه نشته هر چه ئې د خداي د ويري پريږدي ډير ثواب دي او په کړه کښ ئې عذاب دي د بدانُ - هر چه حرام اتفاقي حلال ګڼيَ به کافر شي لکَ سرود وي يا شپيلئ وي يا آواز به ئې څوکَ آوري يا به رقص کاندِ په دوي دغه فعل د شيطان - هم هسي پر مکروه نهي ثابتَ ولِ ګاه په ضرورت کښ به مباح شي په کړه کښ ئې عذاب دي په دا نه کړه ئې ثواب دي که حلال ور ته وُ وائې دي نه دي د کافرانُ - مفسد چه په روا عمل کښ راشي غه عمل به حبطه کا په قصد کړه کښ ئې عذاب دي که په وهيرخنِ پيدا شي دي نه دي د فاسقانُ هسي زده کړه په نمانځه کښ جمع شوي دا څلور خيزَ ورنبي دِي ولِ دا نور هم پيدا کيږي ګاه ګهي له مصليانُ پس هيڅ څاره م نشته د دوي واړه له بيانَ هره نوع به تمامَ وُ شميرمَ چه لفظونَ ئې کوتاه وي او پوره په کښ بيان وي مسايل د مصليانُ سکه دا واړه اته رنګ اته بابَ به ئې کړم چه آسان پر مؤمن شي ولِ زيات پر افغانانُ

## باب اول در بیان فرایض نماز

پنځه لس ځیزَ فرض دي په نمانځه کښ ځوك درون دي ځوك بیرون دي عزیزانُ تن ځاي جامه دِ پاك وِي خپسر پټ کانړۍ یارانُ وقت نیت قبله زده کړه له تکبیره دا اته سره پیرون دي بیا قیام له قراتَ له رکوعَ له سجودَ هم ورستي ګذار کښیني مصلیانُ ترتیب فرض د غو ځیزونُ هر چه یو ځله مونده په هر رکعت شي لکه قیام له قراتَ له رکوعَ هر چه یو شي ځنِ پاتَ نمونځ ئې مات شي مصلیانُ هم هسي ترتیب فرض د غو ځیزونُ چه په درست نمانځه کښ یو ځله مونده شي لکه ناستَ په ورستي ځله یا تکبیر وي له اولَ که له ځايَ شي بي ځايَ نمونځ ئې مات شي انسیانُ په یوه چارِ له نمانځه ؤ وزه که سلام وِي کهٔ کلام وِي دا اوه واړه درون دي ؤ پوهیږۍ طالبانُ

## باب دویم در بیان واجبات نماز

واجبات دِي واړه یو ویشت ځنِ عام په هر نمانځه کښ هم پر واړه مصلیانُ ـ عام لفظِ تکبیر تحریمه دي هم ورښي ګذار کښیني هم په دوه قعده تحیاتِ د پاکانُ په رکوع سجود آرام کړه فرض واجب له خپله ځايَ لرِ مه کړه هم په لفظ د سلام له نمنځه ؤ وزه دا طریق د مسلمانُ او که ځوك قرات درست کا و رکوع وته زر نه ځي یا ورښي ګذار چه کښیني درود وائي په طریق د ساهیانُ دغه نفي تاخیر واجب وه ؤ ئي نه کړ دغه نمونځ په نقصان شه په نورځه به پوره نه شي مګر دوه سجده پرِ ؤکاندِ د سهوي په اقوال د امامانُ هم که ضم سورت به پریږدي و رکوع وته را کوز شي بیا په بیارته ؤ جارووزي سورت ضم کا دا واجب وه لکه بي ځايَ شه له ځايَ سکه سجده سهوه دِ ؤکاندِ یارانو ـ اوه عام ووُچه مِ ؤ وِ ـ ځور لس خاص دي اوس به وایم د فرضِ په ورښي رکعت کښ لولي هم الحمدُ تر بل سورت دوړاندِ یو ځله لوستلي بویه مومنانُ له الحمدُ سره بل سورت پیوند

کړه يا که يو آيت دراز يا دړ کوتاه وې دغه واړه پر امام پر منفرد دي ولِ
نه پر مقتديانُ هم په وتر کښ قنوت دي دړ نمانځه په زوره دوه په ورو
لوستلي بويه چه امام په زوره لولي. تاسُ غور باسئي خلقَ هم خله پټه ولاړ
اوسئي يارانُ هر چه ورشي ته امامَ او امام وي په نمانځه کښ ور سره وتلي
بويه وسکه څه شؤ که رکعت ئي په حساب د نمانځه نه شي دغه خوي د
پس روانُ بل سجده سهو هم پر امام پر منفرد ده چه واجب د نمانځه
ترک کا په مانند د ساهيانُ د واړه عامُ که يو ترک کا مګر طمانيه چه وجوبت
ئي د نور چا د پاره شوي او د خاص که وړنبلي اته وهير که سکه سجده سهوه
دِ وُکا زاهدانُ

باب سيوم در بيان سنتهاء نماز

اَو ويشت سنت دي په نمانځه کښ دا اَو لس په کښ عام دي فهم کانړئي
يارانُ - اول لاس پورته کول د تحريمي او د قنوت دي هم د اختر په تکبيرونَ
د فقيرُ د شاهانُ هم کړه ګتي څله بيارته په دا واړه چه نه دوي سره پيوستِ
وي نه لرِ هم سُبحان کَ اللّٰهُمَ لوستلي بويه هم چه ښي لاس پر کينړ کيږدئي
بندګانو هم چه کښته پورته دروميِ تکبير وائي هم دا هسي د قنوت تکبير
سنت دِي د رکوع تسبيح درِ څله وُ وائي هم دا دواړه زانو نسه په رکوع کښ
چه وي ګتي څله بيارته طالبانُ هم قومه جلسه وُ کانړئي هم سجده پر دا
اوه اندامَ کانړئي عالمَ د سجدي تسبيح درِ څله وائي لړ دي منفرد که ئي تر
لس څله کم وائي دغه خوي د زاهدانُ په تشهد پسِ درود پر پاك نبي دي
په درود پسِ هم بلَ دعا وائي هر چه ياد مي په کښ خپل ځان کړه هم دعا وُ
کړه پر واړه مومنانُ ولِ هسي دعا مه کړه چه د خواست وي له سړيَ دغه
نمونځ به دِ تباه کا هم ښي کينړ سلام جارباسه په کښ نيت کړه د سړي هم
د دواړه فرښتکانُ اوس بيان به کړم د خاصُ چه د څنُ نماز ګذار په نمانځه
کښ وي راغلي هر امام دِ خپل تکبير په زورَ وائي مقتديان دِ هم دا خپل

تکبیر پیوند کا په تکبیر د اماماڼ د امام ته پسروي په هره چارِ کړه هم تعوذو
تسمیه دواړه په ورو لوستلي بویه دا څلور واړه پر امام پر منفرد دي له تامینَ
پورِ لولي عالماڼ او که امام په زوره لولي مقتدي دِ آمین وائي بي خلافَ هم
تسمیع پر امام ده او تحمید پر منفرد پر مقتدیاڼ بل په دواړه قعده کېنړه
پښه پرِ باسَ ته پرِ کښېنه ښئي ولاړه کړه اي یاره ولِ عورته دِ دا دواړه پښې
په ښي لوري وُ باسي پر سرین باند دِ کښېني محباڼ

باب چهارم در بیان مستحبات نماز

مستحب دي واړه درِ ویشت ولِ څور لس په کښ عام دي انسیاڼ ښي
کېنړ کاته ته پرېږده پر هر حال و هغه ځاي وته ته گوره چه ویلي فقیهاڼ که
اروږي در باندِ زور کا یا سرفه وي دواړه شونډي پرِ بلَ کېږده پري ئي مه ږده
څو توانیږي هم تر درِ آیتَ زیات لوستلي بویه هم قرآن په مخرج لولئي قاریاڼ
په رکوع کښ ملا له سرّ برابره کړه طالبَ چه قدح پرِ وُ درېږي دوه زانو
وړنبلي تر لاسونو لاس تر پوزي دا تر وچولي وړنبلي و سجدي وته یبود دي
مصلیاڼ په دوو لاسو کښي سجده کړه چه قیام لره به درومي واژگونه آخله
چه یاد شوي د لاسو د پښو د گتو مخ و قبلي ته په رکوع هم په سجود کښ
لك کړه پیغمبراڼ که دِ وچولي په خاورو په خلو وي څو بیرون له نمانځه نه
شي پاك ئي مه کړه لك و خداي وته دري په نمانځه کښ د دوو گتو تر
میانَ څلور گتي ځاي پرېږدئي صالحاڼ دواړه لاس په ورانه کېږدئي په قعده
کښ هم پر دواړه لوري مخ څرگند کانړئي چه سلام لئي نیکاڼ ـ خاص واړه
سره نه دي اول لاس پورته کول په تحریمه کښ ته غه پورِ څوئي حد وي
مرداڼ د دواړه نوك د کتو گتو ته نرمه د خپل غوږ رسوینَ ته اوږو پوري
هسك کانړئي زناڼ بیا مرداڼ دِ دواړه لاس تر نامه د کښي کېږدي او عورته
دِ پاس پر سینه پرېږدي بل چه تحریمه تړي دواړه لاس هم تر لستوڼي بیرون
کا مرداڼ ـ اماماڼ دِ په نمنځوڼ کښڼ وُ لولي هغه رنگ سورتونه چه راغلي

په حدیث په روایت دي هم صباح دِ دا وارِه ورنبلي رکعت اوږد کا نر
ورستلي دغه خوي د مومنانٌ منفرد تر دِرځله تسبیح زیات وائي چه طاق
وي دوه بازو هم کشاده لرئي له ګیډي ولِ ګیډه له ورنونو له پنډئي هم له زمکه
په رکوع هم په سجود کښ کشاده لرئي مردانٌ او عورته دِ دا وارِه پیوسته کا
هم دِ تولَ سره پریوزي بل یو ځاي له بله لري نه وي د فرض په ورستي رکعت
یو الحمدُ لولي بي سورتَ دا مذهب د عالمانٌ پر هغو چه قرات دي تسمیه
دِ تر الحمدُ ورنبي وائي په هر ځله او مسبوق دِ هم بیا هنمبرِه منتظر وي و
امام ته هر څو دي نمونځ تمام کاند یارانٌ

باب پنجم در بیان حرامهاء نماز

حرام وارِه سره ځورلس ـ هر چه عام دي پرهیزکانرئي متقیانٌ تسمیه چه
له تامینَ بلند لولي هم چه ښي کینږ به ګوري ِاو څه مخ ئي ګرزولي وي
بندګانٌ و آسمان ته چه ګوري یا بي عذرَ به پرستن یا پر لاس باند تکیه
کا یا به لاس پورته کوي پر هغه ځاي چه روایت به باند نه وي د فقیهانٌ
هر چه په رکوع هم په سجود کښ دي د پښو ګتي کا پورته دا حرام دي او
که سر ئي یښي وي پښي کا پورته بیا چه سر واخلي و پښي کیږدي دغه
نمونځ به ئي تباه شي په دا فعل د ترکانٌ و هر چه تشهد لرِه پر پنډئي باندِ
کښیني یا په تن یا په جامه به ځوك یو دوه ځله بازي کا هم که اشارت پر
سبابه که للکَ مذهب د شافعي دي ولِ دا فعل حرام پر حنفیانٌ هم سلام
پریو لورکا هم دعا قنوت به بي وترُ دي لولي په تکبیر او په ثنا په تسبیحات
په تشهد کښ به څه زیات کا تر غه قدر چه امامِ اعظم ویلي له یارانٌ که
له یو ویشت واجبَ یو عمداً ځنِ خطا شي دا حرام دي په محیط کښ ئي
حرام او مکروه یو رنګَ ویلي مصنف دي طالبانٌ

باب ششم در بیان مکروهات نماز

هر چه په نمانځه کښ مکروهات دي دوي شپیته په یوه کم دي واعظانٌ

دو ځلويښت ئې په کښ عام دي لکه تکبير چه څوك تکرار کا رفيقانُ
هم هر څوك چه په کته آيتونَ تسبيحات حسابوينَ دا مکروه دي هم هسي
هر چه لاس پر تشي کيږدي يا پيدا کا په نمانځه کښ دي بد خوي د جابرانُ
هم هر چه بي عذرَ توخيږي که حرفونَ پيدا نه شي کراهيت دي بل که
پوزه پاکيزه کا يا پوکي کا په نمانځه کښ که هر څو آوريده نه شي مومنانُ
که په خوله کښ ئې درم وي يا څه نور څه چه خواندن ئې منع نه کا يا هم
هسي په قومه او په جلسه کښ کا مخ پورته و آسمان ته يا غاښ سکوي تر
حلقَ وُ لاړ شي که هلك غه تر نخود وي اديبانُ هم هسي که سنت پريږدي
دِ سنتُ يا په کښته هم په پورته وږل د تحميد د تکبيرونُ يا بي عذرَ دواړه
لاس پر زمکه ږدينَ و سجدي ته تر دا دوه زانو دوراندِ دغه خوي د ضعيفانُ
هم چه ئې پس له زانو آخلي چه دريږي يا دِ سپي په دود به کښيني په
قعده کښ هم چه بي اړريَ خله کا وبله تولَ يا به سترګي پر بلَ ننسي دا
سنت د جهودانُ هم هسي که يو دوه څله کانړي کا له سجده لري او مګر که
سجده نه شي مکروه نه دي هم هسي خوله له خاورو کا پاکه په نمانځه
کښ يا جامه پورته کوينَ دغه خوي د جاهلانُ چه جامه کا اويزانده يا به
بي عذرَ اړري کا يا به خپسر پروښنَ يا به ګتي ماتوينَ هم چه ګاه پر
يوه پښه وُدري ګهي پر بله هم چه ګتي کاند ډيري څبله لري مګر رکوع سجود
وي نديمانُ هم چه ډير په تلوار لولي هم چه سر به دي له شا سره سم نه
کا په رکوع کښ هم چه تر درِ ګامَ يا زيات بي عذرَ واخلي که پر هر قدم
دريږي صالحانُ هم چه خوځي په نمانځه کښ هم تر درِ سپړي کم وږني يا
ئې ښخي کا په زمکه هم چه لاړي آچوينَ هم موزه په لږ عمل دي په آخرد
قعده وُ کاږي طالبانُ هم چه خوش بوئي په لاس کښ واخلي بوي کاند يا
يو يا دوه څله دي باد کا په جامه يا په ببوزي هم که يو سورت تعين
کا په نمانځه کښ چه به بي له ده بل نه لولم دغه خوي دي د

عامیانَ هر چه دوه سورت په یوه رکعت کښ لولي ولِ یو سورت د دوارِه تر میانَ پریږدي یا چه دوه آیت لولي او تر میانَ ئي پاتِ شوي یو سورت وي دغه فعل د نادانَ هم چه ورستي سورت به تر وړنبلي وړنبي لولي اگرچه په دوه رکعت وائي دا مکروه دي هم چه تسمیه تر هر سورتَ دوراندِ به په هر رکعت کښ لولي دا مکروه دي امتیانَ هم چه هلك آخلي په نمانځه کښ دغه بي عذرَ ښه نه دي مکر ویرِه وي له پړانګَ هم له اورَ له لړمَ له مارانَ - خاص مکروه وارِه اَولس په نمانځه کښ یو امام چه منتظر شي په رکوع کښ چه آواز د کوښُ واروي دا ئي زده وي چه څوك غتِه دي دغه خوي د فاسقانَ هم ورستي رکعت چه اورِد کا په دا فریضه نمانځه کښ یا آیت چه د رحمت یا د عذاب وي وُ ئي لولي او په فکر کښ دریږي ښه به نه وي مصلیانَ توقف په فریضه په نافله-کښ مقتدي او امام دِ نه کاند منفرد په فرایض کښ او منفرد په نفل په سنت کښ کا فکر دي بهٔ شي د خاشعانَ هم هر چه د دستار په وله سجدهٔ کا یا مړونه چه به ګیډه له ورنونَ یا بازو به له تخرګونَ پیوسته کا یا په لړ عمل قمیس خولئي وُ کاږي یا ئي واغندي یارانَ هم امام چه په نمانځه کښ اورِده سورتونَ لولي چه پر قوم ئي ثقیل شي یا تلوار کا د دي دپارِه چه آسان شي پر دوي یا امام له مقتدیانُ ښول غواړي ولِ هنمبرِه ئي وي لوستي چه ئي نمونځ پر جایز کیږي انسیانُ یا د ورځِ په نفلونَ کښ که څوك امامت کا په زورِه لولي یا د سجدي آیت وُ لولي امامان په ورو نمانځه کښ مکر دا چه دا سورت په دنباله وي فاضلانَ که د غم یا د ښادئي یو آیت وي دي ئي بي عذرَ تکرار کا په دا فریضه نمانځه کښ هم چه یو سورت د فرض په یو رکعت کښ ډیر څله تکرار کا موحدانُ هم مړونه لك نمونځ کا او لستوڼي ئي پورتِه تر څنګلَ وي یا امام لك د ویري د امید آیت وُ لولي او مقتدي وائي رښتیا دي خدای ویلي هم راوړي رسولانَ هم که بي عذرَ په فرض کښ تکیه کا پر دیوال پر

ستن باند دا مکروه دي او په نفل کښ که هر څو دي بي عذرَ تکیه کاند دي نه دي د کارهانٌ

باب هفتم در بیان مباحات نماز

مباح کل سره یوَ لس او اته ئي په کښ عام دي امامانٌ لك د سترګو په ګوښه څوك نظر کاند منع ئي نه وي جاریستلي دا مباح دي مسکینانٌ هم که ځاي به د سجدي سري یو دوه څله هوار کا که وي عذر یا ماز وژني په نمانځه کښ دا مباح دي که هر څو سري محتاج په چوب و سنګ شي بل هره نوع چه وینَ د مارانو که په خله کښ یا په لاس کښ ئي درمِ وي چه طریق ئي لوستنِ او د یبهو منع نه کا یا به درست قرآن وُ لولي ته اولَ ته آخرَ په ترتیب لك دا خوي د حافظانٌ هم چه جامه ور ګردوینَ په رکوع کښ د دِ دپاره چه په تن پروته نه شي هم که دنباله د دووُ شورتو دي په دوه رکعت لولي ده مباح په روایت د راویانٌ خاص واړه سره درِ دي لك یو سورت د نفل په یو رکعت کښ ډیر څله تکرار کا هم چه بي عذرَ په نفل کښ تکیه کا پر دیوال یا پر ستن دغه خوي د کاهلانٌ هم چه د امام په زړه کښ شك شيَ او د سترګو په ګوښه په بیارته ګوري که دا قوم م به کښیني یا ولاړیږي زه به هم دا هسي کړم دغه خوي دي د وهیر غاړي امامانٌ

باب هشتم در بیان مفسدات نماز

مفسدات واړه پنځه دي په تحقیق روایتونَ واړه عام دي مصلیانٌ - یو خبره د سري که په قصد وي یا اوده یا بیدار وي یا ئي وائي په طریق د ساهیانٌ که خبره حقیقي وي لك م ِوُ وِ یا حکمي وي چه په لوستنَ څوك پوه وینَ یا به خاندي هم هسي ډیر عمل چه صلاح نه وي په نمانځه کښ او پیدا شي له نادانانٌ هم چه فرض د نمانځه پریږدي په نمانځه کښ نمونځ ئي مات شي که په قصد ئي وي پریښي یا په وهیر او په خطا وي پاتِ شوي دغه فعل د نادانٌ هم که په قصد څوك اودس مات کا نمونځ ئي مات

شي او که قصد ئې باند نه وی سکه بنا به ئې روا وي دي به وي د مصليانۍ

خلاصه م ِ په پوښتو کړه بل هر څوك دِ ئې زده کا که بنده وي که آزاد وي
هم عورته که مېړه وي دي به شي د کاملانۍ افغانان په زمانه کښ دي بي علمَ
څکه مخ ئې له شرع جاروتلي که له خدايَ له رسولَ ئې بايده دي سرهوا رسم
دِ پرېږدي وسکه پيروي دِ کاند د علمانۍ لك دا زده کړه پر هر چا باند لازمه
درويزه بنده د خداي دپاره ۇ و ِ هر چه خداي رسول مني له قيامتَ وَم
شي ويره آساني په کښ مه کانړېِ افغانانۍ د فقير پر افغانانۍ شفقت دي
څکه ډير بيان د دين ور لره کاند هر چه ياد ئې په دعا کا هغه کس دِ
ودريږي له مؤمنانۍ

۳۴۴

# ګل دسته

## د سبدالقادر خان ځوي د خوشحال خان ختک

## ترجمه د ګلستان د شيخ شعدي

۳۴۵

# ګل دسته د عبدالقادر خان

## باب اول په بیان د خوي خصلت د بادشاهانو

### حکایت

یوه بادشاه په وژلو د یوه بي ګناهٔ اشارهٔ وُکړ هغه بي چارهٔ چه له حیاتَ نا امید شه هرچه په ژبه ورتله بادشاه ته ئې ښکنځل کړه هرڅوك چه لاسونه له ژوندونه پرېوینځي هرچه پر زړه ورځي ترخوله ئې وُباسي بیت

چه وقت په سړي تنګ شي نه خلاصیږي له ضروره
لازم ورلره دا شي چه لاس وړي په تیره توره
پیشو چه شي عاجزه سپي ئې کا ترسینه لاندِ
خواه نا خواه غصه پیدا کا حمله کا په سپیو باندِ

بادشاه پښتنه وُکړه چه څه وائي یوه له وزیرانو چه نیك ذات مبارك سرشت وه عرض ئې وُکړ چه دعا کاندِ او هسي وائي چه هرڅوك چه غصه وُ نغري ګناه کار سړي وُ بخښي احسان وُکا حق تعالي د احسان څښتن دوست لري د بادشاه پرِ رحم وُ شه معاف ئې کړ او له وژلو ئې تیر شه بل وزیر چه د ده ضد او مخالف وه بد نهاد څښتن د عناد وه وُ ئې وِ چه دي سړي بادشاه ته ښکنځل او نا سزا ویل کول تا په خلاف بادشاه ته عرض وُکړ بادشاه مخ د ده له خبري وُ جاریوست اعراض ئې ورځني وُکړ وُ ئې فرمایل چه د ده دروغ ویل څما پسند شول ستا له دي رښتیاوُ ویلو چه د هغه په دروغو کښ مصلحت وه او ستا په دا رښتیا کښِ خباثت دي چه هوښیارانو ویلي دي دروغ چه له مصلحت سره آمیزوي له هغو رښتیاوُ بهتر دي چه فتنه انګیز وي

بیت

هغه ځوك چه بادشاه کاندِ هر چه دي ور ته وُ وائي
چه به بي له ښو څهٔ وائي په هغه باندِ نه ښائي

دا لطیفه یعني نرمه خورہ خبرہ په ایوان د فریدون بادشاه لیکلي وَه بیت

دا جهان به پاتِ نه شي چا ته وروره — د جهان پیدا کوونکي و ته گوره
په هر څه چه دِي خشنود شي هغهٔ کارکړہ — ځان په ښه خوي د نیکانو سره شمارکړہ
تکیه مه کړہ په دنیا په ملك په اصل — البته به دِ تا شي ور څني فصل
دیرئي هسك کړل بیا ئي وُ ویشتل په زمکه — مینه نه کا هوښیاران په دنیا څکه
چه نیت وُ کاندِ د تللو ارواح پاك — څه مرگ پاس په تخت باندِ څه په خاك

حکایت

یو بادشاه د خراسان د ملك په خوب کښ سلطان محمود د سبکتگین ځوي وُ لید سل کالَ پس د ده له مرگَ چه درست وجود ئي رژیدلي وه خاوري شوي مگر سترگي ئي چه په کولکونو کښِ غړیدلي نظر ئي کاوه وارہ حکیمان معبران ئي له تعبیرَ عاجز شول مگر یو درویش وُ وِ چه اوس ئي سترگي وُ غړیدي چه ملك ئي د نورو شه بیت

تر اوسَ کوري په سترگو تورو — چه ملك ئي وُ نیو شاهانو نورو

قطعه

یر نامدار ځوانان ئي لاندِ کړہ تر خاورو — چه په زمکه له دوي پاتِ نښان نه شته
ښو نوم ئي لا تر اوسَ په جهان شته — مدت وُ شه چه حاطم نوشیروان نه شته
خیر خیرات کړہ اي فلانه تر هغه وړاندِ — چه ناگاه وُ شي بڼغ چه فلان نه شته
چه د بل له مرگَ واړوي ځان وُ ژاړہ — چه ستا هم له هغي ورځي امان نه شته

حکایت

یو ملك زاده وه کوتاه قد او حقیر نور ورونړہ ئي ښائسته بلند قامت دل پذیر یوه ورځ مگر پلار ور ته نظر په حقارت وُ کړ دي په فراست وُ پوهیده

چه پلار را ته په خوار نظر کاندِ عرض ئې وُ کړ اي پلارَ خبره کړم که دِ نه وي په خاطر ګرانه چه کوتاه هوښيار بهتر دي تر نادانَ په قامت مهتر هاتي که لوړ دي مردار دي ګډ که وړوکي دي حلال هسي رنګ لړ مال چه حلال وي بهتر دي تر هغه چه درځنه حرام ډير مال وي قطعه

کوهِ طور تر همه غرونو ظاهر کم دي دا خبره و هرچا ته ده څرګندهه

په نژدي د حق چه قدر د ده ډير دي مرتبه ئې ده تر قافَ لا بلندهه

قطعه

يوه ورځ احمق څاربه ته په جدل کښِ وُ کړ دا رنګه ډنګر هوښيار مقال

تازي آس تر ښو څربو خرونو بهتر دي که هر څو ضعيف لاغروي بد ئې حال

پلارئې په دا خبرهِ وُ خندل او ورونړه ئې وُ رنځيدل قطعه

څو خبرهِ مردِ تر خولي پستلي نه وي په کښِ پټ وي د ده هنر عيب و هنر

په څنګل کښِ ګمان مه کړه چه خالي دي ښائي وي چه په کښِ پروت وي شيرنر

اتفاقاً هم په هغه مدت کښِ بادشاه ته سخت غليم مخ ښکاره کړ چه دواړهِ لوريه لښکري څبله وُ رغلي اول چه ميدان ته وُ ووت او آس ئې وُ ترپاوه هم هغه هلك وه دا ئې وِ قطعه

هغه نه يم چه غليم وته به شا کړم که په جنګ کښِ په سينه په مخ واهه شم

جنګيالي په خپلو وينو بازي کاندِ يا مي فتح يا په تورو به ورژه شم

دا ئې وُ وِ نورئې ورګډه کړهِ څوانان کارنده ئې پرييستل پلار لرهِ راغي زمکه د خدمت ئې ښکل کړهِ وُ ئې وِ قطعه

اي چه تا ته مي صورت حقير ښکاريږي زنهر مه ګڼرهِ د تن څربښت هنر

ډنګر آس په ورځ د جنګ په کار را درومي د سوارئِ په وقت نه څورب ګاو خر

راوړي دي چه لښکر د غليم ډير وو لږو څني قصد د تيښتي وُ کړ دي هلك پرِ آواز وُ کړ چه اي مردانو بهتر دي تاسو ته مخ په وړاندِ کوښښ چه در وا نه غنډي د ښځو پوښښ نورو څوانانو لرهِ په ويل د ده غيرت وُ رغي

تهور ئې زيات شه وارو په يوه ځل په غليم حمله وُکړه حق تعالي فتح ور کړه بري ئې بيا موند پلار پر مهربان شه په سر و سترګو ئې ښکل کړ په غيږ کښ ئې وُ نيو ورځ په ورځ ئې متوجه په حال شه نظر د تربيت ئې پر کاوه تر هغه چه خپل ولي عهد ئې کړ ورونړو ئې حسد پيدا کړ زهر ئې د ده په طعام کښ واچول خور ئې له دريچي وُ ليدل تنبه ئې وُ وهله ده په فراست سره معلوم کړ لاس ئې له طعامَ وُ نيو وُ ئې وِ محال دي چه هنرمندان وُ مري او بي هنران د دوي ځاي وُ نيسي قطعه

که هماي مرغه له ملکَ ځوك معدوم کا د هماي سيوري به کله حاصل بوم کا
له ازلَ ځوك مسعود ځني منحوس شول سعد و نحس نه آسمان نه ئې نجوم کا

پلار ئې په دا حال آګاه شه ورونړه د ده ئې وُ بلل ګوشمالي ئې لکه حق وه هسي ورکړه هريوه لره ئې حصه د ملك معينه کړه فتنه ئې تر مينځ دفعه شوه حکيمانو ويلي دي لس درويشان په يوه تغر کښِ ساعت تيروي دوه بادشاهان په يوه ملك کښِ نه ځائيږي قطعه

حقاني سړي که نيم کوکړي وُ خوري ور به کا و بل فقير ته هغه بل نيم
که اووه اقليم خپل کا ګمان مه کړه چه به نه کا بادشاه غم د بل اقليم

حکايت

يو جماعت د عربو د غلونو په غره کښِ ئې ځاي کړي وه لار ئې د کاروان بنده کړه رهزني به ئې کوله رعيت د هغي نواحي پريشان او ترسان شه او لښکر د بادشاه مغلوب په دا سبب چه سخت ځاي وه چه دوي په غره کښِ نيولي وه ور ختل د لښکر محال وه هرچه تدبير کوونکي د هغه ملك وو سره کښيناستل مصلحت ئې د دفع د مضرت د دوي کاوه چه په دا روش څو مدت دوي په دا ملك تير کا مقاومت به ور سره مشکل شي چه لا تازه دي زور قوت ئې نيولي نه دي دفع کول ئې بويه قطعه

هره ونه چه تازه وي نهال شوي په قوت د سړي وُ خيژي له ځايَ

چه ئې ولي زرغوني شي ستهٔ لويه  په څوكسَ به ؤ ښكي شي را ته وايه
له اولَ زيم د چيني په لړخه بند شي  چه نم تراوش .كا له كل و لايه
په څو ورڅو چه ئې زور د اوبو ؤ شي  هاتي هم څني جارباسي مخ له ورايه

آخرالامر اتفاق په دا ؤ شه خبره ئې مقرره كړه چه جاسوس دِ ور پسي تعين شي تجسس ئې جاسوسانو كاوه يو وقت چه غلونو په يوه قوم بانډِ تاخت ؤ كړ ورستو څاي د دوي خالي پاتو شه يو څو ځوانان چه كار ديده آزموده وو ؤ رغله د غره په ملن كښِ په ناله كښِ پټ كيناستل په شپه چه غلونه له تاختَ ستړي راغله سفر ئې كړي وه خوب پرِ زور شوي وه ولجې ئې كيښوي ملا ئې پرانتي اول غليم چه تاخت ئې پرِ ؤ كړ خوب وه هرګاه چه كللك اوده شول هغه ځوانان له پڅوني ور پاڅيدل واړه ئې ؤ تړل صبا ئې په درګاه د بادشاه كښِ حاضر كړل بادشاه حكم د واړو په وژلو ؤ كړ ناګاه په منځ كښِ د هغو غلونو يو ځوان وه ښائيسته امرد چه خط د عذارينُ ئې نوي توكيدلي وه بهار ئې د حسن تازه غړيدلي وه يوه له وزيرانو پايه د تخت د بادشاه ئې ښكل كړه عرض ئې ؤ كړ مخ ئې د شفاعت په زمكه كيښو چه دي هلك د ژوندون له باغَ ميوه نه ده خوړلي اميد له كرمَ د بادشاه څنِ دا دي چه په بخښل د ده د خون په بنده منت كيږدي بادشاه مخ له دي خبري ؤ جاريوست موافق ئې د بلند فكر را نه غله ؤ ئې فرمايل بيت

تربيت كله آخلي چه بد ذات وي بد نهاد  مردكي كولي نه شي په كنبذ بانډِ ايستاد

نسل اولاد د دوي چه منبع د فتني او فساد دي قطع كول ئې بهتر بيخ تبار د دوي له اصلَ را ؤ ښكل صواب اور مړول او بڅري پريښول كار د نادانانو دي

قطعه

كه وريځي د ژوندون اوبه كا توي  ؤ به نه خوري هركز څوك د ولي بر
له بد ذات سره روزګار كول ضائع دي  له درمو نه به څوك بيا مومي شكر

قطعه

که اوريځ د ژوندانه اوبه باران کا   په تاثير به ئي شي واړه ونې لويي
بيا به واړه ونې اصل ته رجوع کا   شنډه ونه به ميوه نه کاندي تويي

وزير چه دا خبره د بادشاه واوريده خواه نا خواه ئي پسنده کړه او په فکر د بادشاه ئي تحسين ؤ کړ آفرين ئي ؤ وِ عرض ئي ؤ کړ هر چه صاحب فرمائي عينِ صواب دي او مسئله بي جوابه ده اما دي لا هلك دي د بدانو د خوي اثر په کښِ شوي نه دي بغي عناد ئي په وجود کښِ متمکن نه دي ممکن دي که په صحبت کښِ د نيکانو داخل شي چه له ښو خويونو واصل شي اثر پرِ د صحبت ؤ شي تبديل ئي د اخلاقو ؤ شي   قطعه

د نوح خوي چه له بدانو سره کيناست   د بدانو له صحبتَ نا خلف شه
پيروي ئي د اصحابِ کهف ؤ کړه   هغه سپي په سپيو کښِ اهل شرف شه

دا ئي ؤ وِ نور بيا عرض مکرر ؤ کړ امرايان مصاحبان نور هم ور سره په شفاعت کښِ مددگار شول بادشاه د هغه له خونَ تير شه وزير ته ئي معاف کړ ؤ ئي فرمايل ؤ مي باخښه اگر که مصلحت نه وه   بيت

و رستم وته زال پند وايه اي زويه   کم غليم په زړه کښِ لوي گنړلي بويه
ما له کمي چيني دي هسي رود ليدلي   چه له بار سره ئي اوښ دي رغړولي

وزير د هغه هلك په ناز و نعمت پرورش کاوه اديب ئي ور ته مقرر کړ لائق د بادشاهانو د ځواب و سوال شه ناسته ولاړه ئي د ملوکانو د خدمت حاصله کړه د هر چا په نظر کښِ مقبول شه يوه ورځ وزير د ده له شمائيلو صفت بادشاه ته ؤ کړ چه صحبت د عاقلانو پرِ اثر کړي دي جهل قديم ئي له وجودَ ؤ ووت بادشاه ؤ خندل ؤ ئي فرمايل   بيت

عاقبت به د ليوه بچړي ليوه شي   که هر څو ئي پرورش له سړي ؤ شي

دوه دري کالَ چه تير شول د محلت له اوباشو سره ئي موافقت ؤ کړ په وقت د فرصت ئي وزير سره له دوو زهمنو ؤ وژي دولت ئي ډير تر قياسَ

زيات واخست په هغه ځاي کښ چه ئي پلارونه ناست وو ؤ رغي کيناست عاصي شه بادشاه وارويدل گتي د حسرت ئي په غاښونو د حيرت چيچلي ؤئي وِ

قطعه

له ترخي وسپني کله ښه تيغ کيږي کاريگر که هرڅو ښه لري دست رس
که هرڅو ئي تربيت حکيمان ؤ کا دا محال دي چه ناکس سړي شي کس
باران کله په بارش کښِ تفاوت کا ښه خوږه زمکه گل کاندِ ښوره خس

بيت

په ښوره زمکه کښِ کله زراعت شي د اميد تخم هرگز پرِ ضايع مه کره
له بدانو سره ښه بدي له ښو شي دا وينا ده هر چا وته کره
عاقبت به د ارمان ورغوي ژوئي يو زمان دِ بدان نه شي چا کره

حکايت

شيخ سعدي قَدَّسَ اللّٰهُ سِرَّهُ الْعَزِيز وائي چه يو سرهنگ زاده مي په وره کښِ د اغلم د سراي ؤليده چه عقل او پوهه ئي زيات تر بيان وه فراست او دانائي تيرهِ تر حدّ تخمي د بزرگِي ئي په وچولي کښِ پيدا وي او نور ئي د هوښيارِي په مخ کښِ جلوه کر بيت

پاس په سر ئي د دولت ستوري درخشان وه خوش منظر شيرين کلام عالي نشان وه

په لږ مدت کښِ مقبول د نظر د بادشاه شه چه هم په حسن صاحب جمال وه هم په عقل خښتن د کمال وه حکماؤ دي ويلي توانگري په زړه ده نه په ډير مال عقل په سر دي نه په ډير والي د کال بيت

چه په عقل هلك پير وي و دانا وته کبير وي

نورو سيالانو ئي حسد ښه پيدا کړ د ده په منصب ئي کينه ؤ کړه د ده د وژلو ئي سعيه بي فائده ؤکړه مصراع "دښمن هيڅ کولي نه شي چه پرِ مهر لري دوست

رباعي

چه هنرمند وي هغه حاسد لري اغزي گلونه رقيب شاهد لري

په څو به خویشي د بومو زاغو  بازچه مسکن د شاه ساعد لري
بادشاه پښتنه ورځنې وُکړه چه موجب د دوي د دښمنۍ له تا سره څه
دي آزار ئې په کم سبب له تا زړه دي عرض ئې وُکړ چه په سیوري مې
ستا د دولت هر څوك خشنود کړي دي مګر حسود چه دي نه راضي کيږي
بې څما د نعمت له زوالَ ستا اقبال دولت دِ ذو الجلال باقي لري  قطعه

توانیږم چه هرګز بـه زړه د هیچا آزار نه کړم
بې حاسده چه زحمت لري په زړه کښې د حسد
دي به خلاص له دي زحمتَ هم هاله شي چه دي وُ مري
تر حسدَ په رنځونو کښې هیڅ نه شته بل رنځ بد

قطعه

بد بختان په آرزو غواړي  د نیك بخت زوال د جاه
شاپیرك په ورځ نه ویني  نمر هیڅ نه لري ګناه
دوي دِ واړه پرِړانده شي  نه د نمر سترګه سیاه

حکایت

یو له بادشاهانو ظالم وه لاس ئې د ظلم په مال د رعیت اوګد کړ خلق د ده
له ظلمَ په ځان شه بې وطنَ آواره په جهان شه محصول د ملك په نقصان
شه خزانه ورکه سپاه پریشان شه غلیمان له هره لوریه پرِښکاره شول  قطعه
په محنت کښې که څوك غواړي چه دِ مل شي  په راحت کښې د هر چا کړه دلبري
په احسان به بیګانه لکه برده کړې  شتا دپاره به په شا څکوي وري
عدل داد کرم انصاف ور لره بویه  شلطنت هسې کار له دي سر سري
مل هغه چه په لري کښې در سره وي  تمامي جهان دِ مل دي د بري
یوه ورځ په مجلس د هغه کښې شاه نامه لوستې شوه هر کله چه قصه
په زوال د ملك د ضحاك او د زماني د فريدون راغله وزير له بادشاه نه
پښتنه وُکړه چه فريدون خزانه لښکر نه درله څه رنګَ ملك په ده مقرر

شه بادشاه وُ وِ لکه چه آرویدلي دِ دي خلق په تعصب چه د ضحاك له ظلمَ پریشان شوي وو په ده را تول شول قوت ئي وُ نیو بادشاهي ئي واخسته وزیر عرض وُ کړ هرگاه چه جمع کیدل د خلقو موجب د بادشاهئي دي ته خلق ولي پریشان لري مگر خواهش د سلطنت دِ نه شته بیت

شاهانو لره بویه پرورش د سپاهي بي لښکرو نه شي په ملکونو بادشاهي

بادشاه وُ فرمایل سبب د جمعیت د لښکر د رعیت څه دي عرض ئي وُ کړ بادشاه لره کرم بویه چه خلق پرِ تول شي رحمت بویه چه ملك ئي ودان شي تا څخه له دوارو یو نه شته قطعه

لکه نه شي له لیوانو شباني هسي نه شي له ظالمَ سلطاني

خرابي د ملك له خپله لاسَ کاندِ هر بادشاه چه ستم کا په خلقو باندِ

بادشاه تَه پند د ناصح وزیر دل پذیر نه شه موافق ئي د طبعي را نه غي زندان ته ئي واستاوه په لږ مدت کښِ وارثان د ملك چه د ده تربرونه وو خروج ئي وُ کړ میراث ئي د پلار طلب کړ هغه قوم چه د ده له ظلمَ پریشان شوي وو په دوي جمع شول قوت ئي وُ نیو ملك ئي له ظالمَ را نیو دوي پرِ مسلط شول قطعه

چه ستم په زیر دستانو باندِ ډیر کا په معني د زورور غلیم دوستدار دي

د عادل بادشاه لښکر خپل رعیت دي د عادل بادشاه هم عدل لوي حصار دي

حکایت

یو بادشاه په کښتئي کښِ ناست وه یو مریي عجمي هم ورسره په خدمت حاضر وه مریي کله سیند لیدلي نه وه د کښتئي ناستي ئي آزمیلي نه وه ژړا زاري فریاد ئي آغاز کړ اندامونه ئي واړه په لرزه شول که هرڅو مهرباني دلاسا ئي کوله آرام ئي نه کیده د بادشاه طبیعت ور څخِ برهم شه له علاجَ ئي عاجز یو حکیم په هغه بیړئي کښِ ناست وه عرض ئي وُ کړ که حکم وُ شي زه ئي خاموش کړم بادشاه وُ وِ ډیر منت به دِ را باندِ بار شي حکیم حکم وُ کا

چه مرېي سيند ته واچوه څو غوټې چه وُ خوړې تر وينښتو ئې وُ نيوه بيړۍ ته ئې را واچاوه په لاس ئې بيړۍ کلکه وُ نيوه په گوښه کيناست آرام ئې وُ نيوه بادشاه تعجب وُ کړ وُ ئې فرمايل چه په دا کښې څه حکمت وه حکيم عرض وُ کړه چه ده محنت د سيند د غرقيدلو ليدلي نه وه دا د بيړۍ ناستي ده ته زحمت وه هم هسې رنګ قدر د عافيت هغه څخه وي چه په مصيبت گرفتار شي

قطعه

د ماړه تر فهمَ هيڅ نه ده غنمينه — ولي وږي ته حلوا ده اوربشينه
جنتيانو ته اعراف لکه دوزخ دي — د دوزخ عالم اعراف جنت ګڼينَ
تفاوت دي چه ئې يار پغيږ کښې پروت وي — له هغه چه گوري ور چه به را شينَ
واصلانو ته څنبل ستر کې حجاب شي — مهجوران په تش سلام سره پائينه

حکايت

هرمز شاهزاده چا وُ پښتيده چه د پلار د وزيرانو څخه دِ خطا وُ ليده چه دِ وُ تړل وُ ئې وِ خطا ئې معلومه نه ده اما وُ مې ليدل چه څما هيبت ئې په زړه کښِ دير دي را څنِ په ويره دي باور ئې را باندِ نه شته وُ ويريدم چه له خپلې ويرې به قصد څما د هلاکت وُ کا پس په حکم مې د حکماؤ د قول کار وُ کړ چه ويلي ئې دي

قطعه

که په پوهه په دانش نه ئې سقيم — هميشه اوسه په نغتة د حکيم
چه له تا نه ډار لري ور څنِ ډار کړه — که په زور په قوت ته وي ستا سهيم
پشو هم د څان له ويرې په پړانګ زغلي — که هر څو حقير جثه ده پړانګ جسيم
څکه مار گذار په پښه د شپانه کاندِ — چه له کاڼي ئې په ويرِ دي په بيم

حکايت

يو د عربو له بادشاهانو رنځور شه په وقتِ پيرې ئې اميد له ژوندونَ پرِ کړې وه چه ناګاه يو سور تر وره را ننووت زيرې ئې پرِ وُ کړ چه فلانه کوټ مو ستا له اقبالَ فتح کړ دښمنان څوك وُ مړل څوك بند شول دوستان ښادکام او

خورسند شول سپاه رعیت د هغه ملك مطیع او فرمان بردار شول هر چه
مفسدان وو ورك ئې بیخ او تبار شه بادشاه سور آه له گرمي سیني ؤ کیښ
چه دا زیري څما نه دي بلکه څما د غلیمانو دي یعني د وارثانو د ملك

نظم

حاصل شول مقصودونه د دنیا له هره بابَ عاقبت به په ارمان ورځني ځم سینه
دا امیدئې چه پوره شه لائې زیات اندوه د زړه شه تللي عمربه را نه شي روح له تنَ په وا

قطعه

اوس د کوچ نغاره ؤ شوه حکم راغي له اجلَ اندامونو تاسو واړه تودیع ؤ کړئې یو
دا بیلتون څه هسي نه دي چه بیا ویني بي محشرَ څما سترگو تاسو دواړه وداع ؤ کانړئې ل
تر قیامتَ به هم هسي تار په تار ځبله اوسي د صورت خاوري به گوره نصیب چړته چرته
د غلیم په نغته مه ځئې عبرت واخانړئې له ما نه تاسو اي څما دوستانو غفلت لري کړئې ل
مال و ملك که خزاني دي که حشم که سلطاني ده خالي لاس ورځني درومي تر حاصله پښیم

حکایت

شیخ وائې قَدَسَ اللّهُ سِرُهُ الْعَزِیزِ چه څو ورځي په جامع کښِ د دمشق په
زیارت د یحي پیغمبر عَلَیْهِ السّلَامُ معتکف وم یو له بادشاهانو د هغه ملك
چه په بي انصافئې مشهور وه په زیارت راغلي نمونځ ئې ادا کړ زیارت ئې ؤ
کړ حاجت ئې ؤ غوښت بیت

درویش دي که غني دي محتاج واړه د دي در دي
بلکه لا تر درویشانو چه غنیان دي محتاج تر دي

بیا ئې ما ته ؤ وِ چه همت د درویشانو یمنِ برکت لري امید چه توجه د
خاطر له موږه سره کړئې په دعا مؤ یاد لرئې چه له زوروره دښمنَ اندیښمن
یم ورته مي ؤ وِ چه په ضعیف رعیت څاندِ رحمت کوه چه له غلیمِ قوي
څخه زحمت ؤ نه ویني قطعه

په قوت د لیچو زور په ضعیف مه کړه چه ؤ نه ویني د بل زورور زور

۳۵۶

ه غوك خوږ كړي ؤ پوهيږه چه به خوږ شي   دا متل دي هرگز نه زړيږي پور
يك و بد د خپل عمل درته جاروزي   بي هوده په نورو كړي د گتو تور
ستگيري د افتاده څكه هوښيار كا   چه كه پريوزي دستگيري ئي ؤكا نور
ښه ؤ كاږه له غوږو عدل و داد كړه   چه غليم دِ سرنگون وي كر و كور
ا چه نن درته كم زوري ترميږي دي   عاقبت به ئي په تا كاندِ منگور

قطعه

ه معني كښِ آدم زاد واحد صورت دي   پلارئي يو اصل ئي يو يو ئي فطرت دي
چه په دردِ شي يو اندام د آدم زاد   بل اندام كله له غمَ وي آزاد
ه پيدا د ښي په نوك باندِ الم شي   دردِ آموده سرو لاس پشت و شكم شي
ه له غمَ چه د بل آدم بي غم ئي   نه پوهيږم چه حيوان ئي كه آدم ئي

حكايت

و درويش مستجاب الدعوات په بغداد كښِ ښكاره شه حجاج بن يوسف
خبر كړ درويش ئي ؤ باله ورته ئي ؤ وِ چه دعا را ته ؤ كړه درويش ؤ وِ
خدايَ څان ئي واخله حجاج ؤ وِ الله الله دا څه دعا وه ؤ ئي وِ دا دعا د خير
ه تا لره او مسلمانانو لره كه ته ؤ مري ته به له گناهونو خلاص شي مسلمانان
ه ستا له ظلمَ خلاص شي

رباعي

چه دِ له لاسَ آزار وي زړونه   مرگ دِ بهتر دي له دي ژوندونَ
څو به دِ بلي لنبي د ظلم وي   آخر به ؤ سوځي دا اور ستا خونه

بيت

هسي رنگ ؤ مره چه خپل څان له خلقَ خلاص كړي
نه چه ئي سبب د خلاصِي شي ستا رحلت

حكايت

يو له بادشاهانو چه په بي انصافي په ستم مشهور وه يو عالم رباني ته ئي
وِ چه په عبادتو كښِ كم عبادت فاضلتر دي ؤ ئي وِ ستا خوب ترنيمي

ورځي چه خلقو ته ځو ته اوده ئي آزار ؤ نه رسي له جوره دِ په آرام وي

قطعه

د چا چه خوب له ویښ والي ښه دي بیدار ئي مه کړه پریږده اوده وي
د ساعت خوب ئي چه هونبره سود لري ته خود قیاس ؤ کړه مرګ به ئي څه وي

حکایت

یو له ملوکانو درسته شپه په عیش په عشرت مشغول وه په عینِ مستي
کښِ ئي ؤ وِ بیت

په جهان کښِ ما ته به تردي دم نه شته چه د چا د ښود بدو مي غم نه شته
درویش په ساړه کښِ د ده تر قصر لاندِ برمنډ پروت وه جواب ئي ور که

بیت

اي چه نن د تا څوک سیال په عالم نه شته
ستا کا هیڅ نه شته اندوه څما هم نه شته

د بادشاه د ده په ضعف حال رحمت ؤ شه همیاني د زرو دینارو ئي له
دریچي را ؤ یسته غږ ئي کړ چه اي درویشَ لمن ؤ نیسه درویش وي لمن
له کومَ راوړم چه جامه نه لرم د بادشاه شفقت پرِ زیات شه سر و پاي ا
هغه زر ئي ور لره زاستول درویش هغه زر په څو ورځو کښِ تار په تار کړ
بیا راغي رباعي

صبر په زړه کښِ د عاشقانو دنیا په لاس کښ د آزادګانو
لکه اوبه په غلبیل کښِ نه دري هسي قرار نه کا اي تجربه دانو

و بادشاه ته دا د ده صدا موافقه را نه غله په غضب شه مخ ئي ترِ
جاریوست څکه هوښیارانو ویلي دي چه دَ بادشاهانو طبیعت شامل لازم دي
کله چه دماغ ئي صاف وي په کنځلو خلعت ورکا او کله چه فقیر ور ته دع
ؤ کړي له دره ئي بدر کا قطعه

په هغه نعمت حرام دي د بادشاه چه فرصت د عرض نه لري نګاه

۳۰۵۸

چه بي وقتَ دولتمند ته کا عرضونه و هغه ته ترخه کيږي جوابونه
حکم ئي ورکړ چه دا شوخ چشم ګداي بد خرڅ بي باکَ لري کانړئ نور
ئي مه را پريږدئ چه دا هونبره ډير مال ئي په څو وقت کښِ ضائع کړ خزانه
د بيت المال لقمه دَ مساکينو ده نه طعمه د اخوانو شياطينو قطعه
هر ابله چه په ورځ شمع د کافور بڼدي بي ډيوي به ئي په شپه ؤ ويني کور
چه په خرڅ کښِ انداز نه لري ساتلي زر يا سوال ته ؤ دري يا غواړي پور
يوه له وزيرانو چه ناصح خير خواه د بادشاه او د خلق الله وه عرض ئي ؤ کړ
چه مصلحت دا دي چه د دي هسي خلقو وظيفه په قدر د دوي له حاجتَ سره
معين شي چه روز مره ور ته رسي اسراف په کښِ نه شي کولي اما زجر و
منع د محتاجانو مناسب د صاحب همتانو نه ده يو خل اميدوار کول بيا
نااميد له دره شړل خوي د ځوان مردانو نه دي قطعه
چه يو څله ځان مشهور په سخاوت کا نوم د داد و دهش کاندِ په ځان پوري
نور هرګز بائيده نه دي و هغه ته چه به ورکا په محتاج د ورکړو پوري
په شيرينو اوبو جمع ډير عالم شي نه هغه اوبه چه تلخ وي يا شوري
حکايت

يو بادشاه په نګهباني ملك ئي سستي کوله لښکر ئي په سختي ساته په دا
سبب سخت غليم ور ته مخ ښکاره کړ لښکر ئي ور ته شا کړه قطعه
بادشاهان چه له سپايانو ساتي زر په تنګښه کښِ به ئي سپائي ؤ ساتي سر
په ميدان به څرنګ جنګ کا له غليمَ چه لاسونه ئي خالي له زر و سيمَ
په راحت کښِ آسوده ساته سپايان چه په وقت د محنت تيرشي ترخپل ځان
هغه څوك نچه د سرونو بها خورينَ کم انصاف دي چه ئي څوك وړي لرينَ
شيخ وائي يو له هغه سپايانو څما اخلاص مند وه ملامت مي کړ چه سفله
حق نا شناس دي نمك حرام نا سپاس دي چه په لږ تغير حال خپل
صاحب ته شا کا د کالونو حقونه پايمال ؤ ئي ويل که عذر مي قبلوي شايد

آس مي په سبب د لوږي له سوارۍ پاتِ شوي وي او زين مي د خپل قوت د پارۀ گهنه وي بادشاه چه په زر ورکول د سپاهي سرۀ بخيلي كا سپاهي به په سر ورکول څرنگ څوان مردي كوي قطعه

د ملك بادشاه كه دِ كشور بويه تخت د شاهۍ تاج دِ د سر بويۀ
شرم ساتوني زر غورزووني شه له سپاهي نه سر بويه له تا نه زر بويه

حكايت

يو له وزيرانو له وزارتَ معزول شه په مجلس د درويشانو كښِ كيناست د صحبت اثر پرِ وُ شه جمعيت د زړۀ ئې حاصل شه حرص ئې د دنيا كل زايل شه رباعي

د خو د بدو صحبت تاثير لري چه مس پرِ زر شي اثر اكسير لري
له درويشانو سرۀ چه كيني زړۀ ئې نور بيا مومي زړونه منير لري

بادشاه څو ورځي پس د ده له عزلَ پښيمان شه بيا ئې خدمت د وزارت پرِ سپارۀ نه ئې قبلاوه وُ ئې وِ اي بادشاهَ ما لرۀ دا معزولي ښه ده نه مشغولي

نظم

چه په گنج د عافيت ئې زړۀ آرام شي عاقبت د عافيت په گنج ښاد كام شه
د دي گنج ويرۀ هرگز د زوال نه شته هيڅ دولت له دي دولت سرۀ سيال نه شته
چه قانع په خامتاين شي په پتيره غم ئې نه وي لـه بادشاه لـه اميرۀ

بادشاه وُ وِ ما لرۀ البته هوښيار وزير بايده دي چه د ملك بندوبست بي د ښه وزير له تدبيرَ نه كيږي وزير عرض وُ كړ چه هوښيار صاحب تدبير هم هغه دي چه دي كار ته هوس نه كا قطعه

چه قانع په يوه څاڅكي شه صدف قيمتي گوهر ئې څي په هر طرف
چه هماي مرغه قانع په استخوان شه په مرغو باندِ ئې بيامونده شرف

حكايت

سياه گوش ته چا وُ وِ چه په څهِ سبب دِ ملازمت د مزري اختيار كړي دي

وُئي وِ پس خورده د ده د ښکار خورم او له دښمنانو په پناه د ده په آرام یم ور ته ئي وُ ویل چه هرگاه اقرار د نعمت دِ وُکړ او په حمایت د ده فراغت ئي ولي نژدي نه ور درومي چه له خاصانو مقربانو دِ شمار کا وُئي وِ هسي رنګ ئي له حملي او له قهرَ په امن هم نه یم بیت

که سل کاله پرستش د اورګبران کا یو ساعت که په کښي پریوزي څان به زیان کا

کله ندیم د بادشاه زر بیا مومي کله ئي سر لاړ شي مثنوي

له صحبتَ د شاهانو کړه پرهیز طبیعت د دوي تر اورَ دي لا تیز

که دا اور هرګور رڼرا لري پر نور دي فراغت وي هم هغه چه څنِ دور دي

په خپل قدر وقار کار د حکیمانو ظرافت بازي .روش د ندیمانو

حکایت

شیخ وائي یو آشنا څما وه چه د روزګار له ګردشَ ئي کار تنګ وه اوقات ګذاري ئي نه کیده په قدر حاجت ضرور درمانده شوي وه شکایت ئي د احوال خپل یوه ورځ ما ته بیان کړ چه عیال مي ډیر دي آمد مي هیڅ نه شته طاقت د فاقي نه لرم څوځله مي په خاطر کښِ وُ ګرزي چه بل ملك له لاړ شم څان له وطنَ وُ باسم بیت

چه دِ قدر په کښِ نه وي وطن څه په کار بي ننګَ

پاڅه زر څنِ روان شه تا ته نه ده دنیا تنګه

په هر صورت چه وي په نا آشنا عالمِ کښِ ګذران کوم څوك مي به په ښه بد حال واقف نه وي نظم

یر مسافر وړي څوك ئي نه پیژني څوك که شاد که امرا وي څوك پر نه وي خبر د

خپل وطن کښِ ګران شي ګذران د نیست کارانو مرګ ئي دي هر دم چه نور عزیز ویني دي خو

ر څو وطن خوړوي هم تر خواه ناخواه روان شي وړي که برمنډ وي روزګار کا په بل دي

بیا له پیغوره د دښمنانو اندیښنه وُکړم چه را پوري به خندا کا سعي به

ځما چه په حق ئې د عيال کوم حمل به ئې په بي مروتي په بي حميتي کا
دا به وائي قطعه

ؤ به نه ويني هرګز بي حميتَ په دنيا کښې مخ د بخت و د اقبال
د خپل ځان په خوشحاليو پسي ورک شه و خواريو ته ئې ؤ سپاره عيال

په علم د حساب کتاب البته پوهيږم که ستا په سپارش مي چرته نوکري ؤ
شي په يوه خدمت منصوب شم چه موجب مي د جمعيت ؤ شي بقيه عمر
به ستا شکرګذارم ؤ مي وِ اي وروره عمل د بادشاهانو دوه لوريه لري حاصلول
د نان ميا نقصان د ځان قطعه

درويشانو لره هيڅوك نه ور دره مي چه خراج د زمکي را کړه يا د باغ
کله مور کله فاقه روزګار بهتر دي چه آرام دي د صورت د زړه فراغ
يا قبوله پريشاني کړه غصه نغره يا زړه ورکړه چه تونګي پرِوهي زاغ
زاغان څوك دي حاسدان معاندان دي چه پرِ سوځي چه بل ويني د چا چراغ

ؤ ئې وِ دا خبره دِ موافقه له حالَ ځما سره ؤ نه کړه جواب دِ ځما د سوال
ؤ نه کړ آرويدلي دِ نه دي چه حکيمانو ويلي دي هر څوك چه خيانت
پريږدي لاس ئې په وقت د حساب نه ريږدي قطعه

چه کاږه وي د هغو له اوره غم وي څه ئې ويره له آتش وي چه سم وي
له رښتنيو سره مل پروردګار دي را ته ؤ وايه څوك ورك په سمه لار دي

هوښيارانو ويلي دي څلور تنه له څلورو تنو په ځان دي مفسد له سلطانَ
غل له پاسبانَ فاسق له غمازَ روستائي له محتسبَ هر چه په حساب کښې
پاك وي له محاسبي ئې څه باك وي قطعه

که دِ زړه دي چه خوله بند کړي د چغلو په عمل کښې روزګار مه کوه بي ننګَ
ته پاك اوسه باك په زړه کښِ له چا مه کړه خيژن نمري به وهي دوبي له سنګَ
په نيت صاف په خوله شيرين اوسه ښه وينه چه په امن ئې د خو بدو له جنګَ

وِ مي حکايت د هغي لونبړي مناسب ستا د حال دي چه چا ليده چه

تښتیده کله پریوته کله پاڅیده یوه ؤ پښتیده چه سبب د دي خوف څه دي
چه دا هسي گریزانه لرزانه ئي و ئي آرویدلي مي دي چه اوښان په بیگار
نیولي شي هغه شخص ور ته ؤ و د اوښ له تا سره څه مشابهت دي او ستا
له اوښ سره څه مناسبت دي ؤ ئي و که حسودان ور ته ؤ وائي چه دا د
اوښ بچړي دي څوك به غم څما د خلاصئي کاندِ تر هغه چه تحقیق کاوه
شي زه به هلاکه شم

بیت

له عراق چه تریاق ور ته را درومي مار چیچلي به د مرگ پیاله ؤ شومي

هسي رنگ لکه وائي ستا فضل دیانت او تقوي امانت شته اما دښمنان
قابو طلب دي څو ئي وهلي وي که په خلاف ستا د سیرت د خصلت تقریر ؤ
کا د بادشاد په غضب چه کیوزي څوك به وي چه ستا د خلاصئي غم ؤ کاندِ
د چا قدرت به وي چه ستا حقیقت په واقعي عرض کا مصلحت دا وینم
چه د قناعت په ملك سکونت ؤ کړي او ترك د ریاست

بیت

که سودونه په دریاب کښِ بي شماره دي خلاص هغه چه تر ولاړ په کناره دي

دا څما دوستانه ویل په موافق د ده د طبعي را نه غله له دي جهته چه
صاحب د غرض لیوني وي خبري ئي را ته رنجش آمیزي ؤ کړي آزرده خاطر
شه و ئي حکماؤ رښتیا ویلي دي چه دوستان هغه دي چه ته په زندان کښِ
وي ستا په کار شي که نه وي په وقت د سفري دښمنان هم لکه دوستان
ښکاریږي

قطعه

دوست ئي مه شمارِ چه لافي د اخلاص کا په هغه ساعت چه ته ئي په نعمت کښِ
هغه یار رښتني یار کنړلي بوید دستگیري چه د یار ؤ که په زحمت کښِ

ؤ پوهیدم چه متغیر شه نصیحت څما په غرض کنړي یو صاحبِ دیوان
چه مي آشنا وه دم ئي را سره د اخلاص واهه هغه لره ؤ رغلم د ده احوال
او قابلیت مي ور ته بیان کړ سپارش ئي قبول کړ په یوه مختصر کار ئي نصب
کړ پاکیزدگي د طبیعت ؤ لیده امانت دیانت ئي ور معلوم شول له ادني مرتبي

ئې پورته کړ په اعلي مرتبه متمکن شه هسي رنګ ستوري د بخت ئې په ترقي وه تر هغه چه مقرب د بادشه شه په دا حال د ده مي شکر وُکړ خوشحال شوم وي مي

قطعه

په محنت کښِ نا امید له خدایَ مه شه محنتونه که هر څو در باندِ ډیر شي
پټ مهرونه د ښتن په بندګانو چه وقت راشي عاقبت باندِ برسیر شي
په ظلمات کښِ د حیات چینه موندي شي په غمجن باندِ مژده ښادي به ویر شي
چري نه وي وار خطا کړي په محنت کښِ د دنیا محنت کوتاه دي زر به تیر شي

هم په هغه مدت کښِ اتفاقاً یاران ښما حج لره روان شول زه هم ور سره لاړم پس له ګذارلو د حج څنِ چه را وُ جاروتم دي دوه منزل وړاندِ استقبال ته ښما راغي ډیر پریشان احوال وي مي دا څه حال دي وُ ئې ویل لکه چه تا ویل هسي رنګ حاسدانو حسد ښما په مرتبه وُ کړ په خیانت ئې منصوب کړم بادشاه تحقیق د کار وُ نه فرمایه یاران دوستان له حق ویلو چپ شول حق ئې د صحبت هیر کړ

قطعه

د دنیا دولت چه مخ کا و سړي ته خلقي ور سره کاندِ یاري ډیري
چه نکبت ور ته دوچار شي اقبال شا کا همګي یاران ئې کاندِ یاري هیري

هسي رنګ څو مدتَ په انواع عقوبت ګرفتار وم په دي هفته کښِ چه د قافلي د حجیانو بادشاه ته خبر وُ رسیده په شکرانه ئې بندیان آزادول زه هم ور سره خلاص شوم وي مي ما خو اول درته ویلي وه چه عمل د بادشاهانو لکه سفر د دریاب دي سود ئې هم ډیر دي خطر ئې لا تر حدَ تیر دي بیت

سوداګر کله حاصل له سیندَ سود کا کله سیند ئې کنګښړ سره وجود کا

زیات مي تر دا مصلحت نه لیده چه څه مي ویلي مالکي مي د ده په پرهار دوره ولي خو په دا دوه بیت مي خبره کوتاهَ کړه قطعه

نیکخواهان نه کا تقصیر د پند ویلو نیك بختان بویه چه غوږ دوي په پند کا
په سوراخ کښِ د لړم چه ګتي ږدینه خود به خود نادان خپل ځان وته ګزند کا

حکایت ۳۶۳

شیخ وائي قدس سره چه یو څو تنه یاران ځما په صحبت کښې وو ظاهر ئي آراسته په شریعت باطن ئي ښائسته په طریقت وه یو له دولت مندانو چه په حق د دي طائفي نیك گمان او معتقد د درویشانو وه وظیفه ئي د دي یارانو مقرره کړي وه ناکاه له یوه نه هسي حرکت ظاهر شه چه مناسب د دوي د حال نه وه اعتقاد د هغه شخص ورځني مات شه بازار د دوي سوړ هغه چه ئي څه مقرر کړي وو منع ئي کړه ځما خواهش ؤ شه چه په یوه طریقه هغه کفاف بیا په ځاي کړم قصد مي د هغه دولت مند د ورتلو ؤکړ دربانان مانع شول نه ئي پرېښوم معذور مي کړه لکه هوښیارانو ویلي دي قطعه

اول بویه چه حاصله وسیله کړي له هغه پس په وره ورشه د بادشاه
سپي دربان چه مسافر سړي ؤ ویني ښپي کریوان د سړي نیسي خواه ناخواه

هرګاه چه مقربان د بادشاه په دا حال خبر شو په اکرام په عزت ئي ور وستم ښه هسك ځاي د ناستي را ته معین کړ اما. زه از روي تواضع کوز کیناستم وي مي بیت

د مسند لیاقت نه لرم کمین یم له کمینو څخه ناست په زمین یم
و از براي خدا دا څه خبره وائي بیت

پاس په سر ځمونکه کینه دل نشین ئي ستا نازونه به په سترګو ورو نازنین ئي

آخر الامر کیناستم له هره بابَ گفتگو مذکورونه کیدل عاقبت خبره د یارانو د مذلت په مینځ کښې راغله وي مي قطعه

لږ تقصیر ځني واقع یا واقع نه دي صاحب منع د یارانو کړ ادرار
بزرګي په خداي ښائي بنده نوازدي هره ورځ ګا ګناهونه ګناه کار
عقوبت ئي هرګز دي په تلوار نه کا رزق روزي ئي په دستوروي برقرار
سل زر عیبَ د بنده ورته ښکاره وي دي ستار د همه واړه دي ستار

حاکم چه دا خبره وارویده اسباب ئي د یارانو د معاش لکه وه په هغه

شان بیا مقرر کړ او گذشته چه پاتِ شوي وو هغه ئې هم ورکړه شکر مي د
نعمت ؤ وِ زمکه مي د خدمت ښکل کړه عذر مي د دي گستاخۍ ؤ غوښت
رخصت شوم وي مي

قطعه

د مقصود کعبه که لري په هواد وي هم ور د رومي که اصيل وي که آزاد وي
تا ته بويه تحمل د محتاجانو برهم مه شه په تصديع د فقيرانو
شنډي وني وته کله خلق گوري کاڼري تل په ميوه داره ونه اوري

حکايت

يو بادشاه زاده وه خزانه ئې بي قياسَ د پلار له ميراثَ په لاس کيوته لاس
ئې په سخاوت کيخود دولت ئې ډير تر حسابَ تير په سپاه په رعيت ښانده

قطعه

له اولَ چه څان ؤ سيځي په اورکښِ خشبوئې هاله مونده شي له اگره
دهقانان اول کندوان په کرل تش کا له غه پس ئې بهره آخلي له بره
که بزرگي غواړي کرم ورکړه عادت کړه نوم بي ورکړو د چا نه د رومي پسره
يوه هم نشين از روي دولت خواهي نصيحت آغاز کړ چه بادشاهانو چه
گنجونه جمع کړي دي د يوه مصلحت دپاره دي جهان ځاي د حوادثو دي
لاس له دي حرکتَ کوتاه کړه چه په وقت د حاجت در مانده نه شي

قطعه

خزانه که واړه ؤ ويشي په خلقو لکه وريجه هر گدا ته ؤ رسيږي
له هر چا که د اوربشي بر زر واخلي خزانه به در ته هره ورځ توليږي
شاهزاده مخ له دي خبري ؤ جاريوست موافقَ ئې د طبعي را نه غله ور
ته ئې قهر ؤ کړ ؤ ئې فرمايل خداوند تعالي چه دا دولت ما لره را کړي دي
بويه چه هم ئې خورم هم ئې بخښم نه چه ئې ساتم نگهبان ئې شم قطعه
د قارون که هر څو ډير مال و دولت وه څه په کار چه ئې سبب شه د وبال
په ښه نوم د سخاوت حاطم ژوندي دي که ئې نه وه د قارون عندِ ډير مال

٣٦٦

حکایت

نوشیروان چه په عدل په انصاف مشهور وه یوه ورځ ښکار ته وتلي وه ځه ئې وژلي وو کباب ئې کاوه مالګه حاضره نه وَه خدمتګار ئې کلي لره واستاوه چه ور شه مالګه په بها راوړه چه بدرسمي وُ نه شي کلي به خراب شي چا وُ ویل په دا هونبره مالګه راوړل به څه خرابي کیږي وُ ئې وِ بنیاد د ظلم اول لږ وه هر څوک چه حاکمان کیدل په وار وار ئې زیاتاوه چه تر دي حده وُ رسیده

قطعه

که بادشاه د چا له باغَ شفتالو په ظلم وُ خوري د باغ وني به له ویخَ وُ کاږي د ده مریونه

که ستم په یوه هویه د غریب بادشاه روا کا سپاهیان به ئې چرګان د رعیت کا په سیخونه

حکایت

یو عامل وه ظالم د رعیت خوني به ئې ورانولي د بادشاه خزانه به ئې آبادوله بي خبرَ له دي خبري وه چه هر څوک چه خداي تعالي آزاروي د مخلوق د زړه ښه کولو دپاره حق تعالي هم هغه مخلوق پرِ وُ ګماري چه مکافات د خپل کردار ور ښکاره کا بیت

هسي رنګ خرابي اورنه کا په خس لکه آه په جهان کاندِ د بي کس

ویلي شوي دي چه سرد حیواناتو مزري دي او کمترین د جانوزانو خر په اتفاق د خردمندانو هغه خر چه بار وړي بهتر دي له هغه مزري چه مردم در دي

نظم

خر که هرڅو بي تمیز دي چه بار وړي هسي عزیز دي

اوښ غڅکي چه باربرداروي له ظالمَ بزرګوار وي

دد چه وُ مري ترِ ددي ځي دي دوزخ ته په بدي ځي

بادشاه ته ئې په وار وار حقیقت د ظلم د ستم معلوم شه په شکنجه کښِ ئې را ښکه په انواعو عذابونو ئې مړ کړ قطعه

که دِ زړه وي چه بادشاه له تا خورسند شي شفقت کوه د خدای په خلقو باندِ

په هر څه کښِ رضا جوي د کردګار شه چه راضي له تا نه خپل بندګان کاندِ
په دا حال کښِ یو مظلوم چه د ده له لاسَ ئې ډیر ستم لیدلي وه په هغه لار تیریده دي ئې وُلیده وُئې وِ قطعه

که هرڅوئي جاه منصب تسلط ډیر وي ور ته نه بویه چه آخلي آزارونه
دا بي کسَ عالم مه ګڼړِ بي کسَ خپل ښِبستن پورهِ کوي د دوي کارونه
نمونه ور ته ښکاره دِ خپل عمل شوه په قیامت به ئې وُ ویني انبارونه

حکایت

له یوه مردم آزارهِ حکایت شوي دي چه د یوه صالح سړي سرئې په کاڼړي ویشتلي وه هغه درویش عاجز وه توان ئې د انتقام نه وه هغه کاڼړي ئې ځان څخه ساتلي لارهِ تر هغه چه بادشاه په هغه بر ګشته بخت باندِ په قهر په غضب شه په کوهي کښِ ئې واچاوه بند ئې کړ درویش راغي هغه کاڼړي ئې د هغه ظالم په سروُ ویشت وُئې وِ ته څوک ئې او ولي دِ په کاڼړي وُ ویشتم وُئې وِ زه فلاني یم او دا کاڼړي هم هغه کاڼړي دي چه په فلانه تاریخ دِ زهِ پرِ ویشتلي وم ظالم ویل تر اوسه چرته وي درویش وُ وِ ستا له جاهَ مي اندیښنه کوله اوس چه مي په څاه کښِ وُ لیدي فرصت مي غنیمت وُ ګاڼړه انتقام خپل مي واخست قطعه

نا لایق سړي چه وُ ویني بخت یار عاقلان ور ته تسلیم کاندِ اختیار
چه قوت د انتقام درڅخه نه شته لا علاج د ظالمانو وړهِ آزار
صبر وُکړه خود به دور د ده تیر شي مخالف به شي له ده سرهِ روزګار
ور جاروزي به و ده ته کردي خپلي په سرهِ سینه ترِ وُ کارړِ دمار

حکایت

یو له بادشاهانو په هسي زحمت ګرفتار شه چه له یادولو ئې نه یادول بهتر دي حکیمان د یونان متفق شول چه دي زحمت لرهِ نور هیڅ دارو نه شته مګر تریخي د سړي چه په دا سن په دا صفت موصوف وي طلب ئې کړ یو

دهقان بچه ئي بيا موند مور و پلارئي ؤ بلل زر ئي ډير ور کړه خشنود ئي کړل قاضي هم فتوي ور کړه چه د بادشاه د سلامتئي دپاره ئي مرګ روا دي جلاد چه قصد د هلك د وژلو ؤ کړ هلك آسمان ته ؤ کتل ؤ ئي خندل بادشاه ؤ پښتيده چه په دا ځاي چه ته ئي څه ځاي د خندا دي ؤ ئي و اي بادشاهَ ناز د فرزندانو په مور و پلار وي او دعوه قاضي لره وړي ور درومي داد له بادشاهانو مومي مور و پلار په علت د دنيا څما په مرګ راضي شول قاضي فتوي څما د مرګ ور کړه بادشاه د خپل صحت دپاره حکم څما د کشتن ؤ کړ اوس بي له خدايَ بله اثره پاته نه شوه قطعه

چه مي به طمع د زړه و چا ته شوه له همه واړو په وار وار ماته شوه
اثري د خپلو د پردو ؤ لاړي اوس مي يواځي اثره و تا ته شوه

بادشاه ډير رقت ؤ کړ سترګي ئي له اوښيو ډکي شوي ؤ ئي فرمايل هلاك څما بهتر دي له وجلو د هسي بي ګناه د هلك سر سترګي ئي ښکل کړي په غيږ کښِ ئي ؤ نيوه ډير څه ئي ور انعام کړه آزاد ئي کړ حق تعالي چه ده دا رحمت په مظلوم ؤ کړ خپل رحمت ئي په بادشاه ؤ کړ صحت ئي ور عنايت کړ هم هغه دم روغ شه رباعي

چه ئي رحمت په عالم اظهار شي په هغو رحم د کردګار شي
نه په نمونځونو نه په روژه ده چه رحم کار شي شيخ رحمکار شي

قطعه

د درياب په غاړه پاس په هاتي سور وه مهاوت کاوه له ځانَ قال و قيل
که تر پښو لاندِ احوال د ميږي زده کړي هسي ځان ګڼړه تر پښو لاندِ د فيل
په اولادِ د اسرائيل فرعون غالب وه حق غالب کا په فرعون رود نيل

حکايت

يو مريي د عمرليث بادشاه تښتيدلي وه ځوك ئي ور پسي واستول ؤ ئي نيو را ئي ووست د وزير ور سرهِ څه عداوت په زړهِ کښِ وه عرض ئي ؤ کړ چه

وجلي بويه چه د نورو عبرت وُ شي داهسي دِ نه کاندِ هغه مريي بادشاه ته سر په زمکه کيښود عرض ئي وُ کړ بيت

هر چه په ما درومي چه ئي ته پسندِ روا دي
ته صاحب زه دِ بنده يم څما څه دعوي له تا دي

اما په موجب د دي خبري چه پرورده د نعمت يم نه غواړم چه په قيامت څما په خون گرفتار شي که خواه نا خواه وژلي شم بارِ په تاويل د شرعي سره مي وُ وژنه چه په آخرت ماخوذ نه شي بادشاه وُ ويل تاويلِ شرعي څه وُ کړم وِ ئي حکم وُ کړه چه زه وزير وُ وژنم پس له هغه ما ئي په قصاص کښِ وُ وژنه بادشاه وُ خندل وزير ته ئي وُ ويل څه مصلحت ويني وزير وُ وِ چه په صدقه د خپل پلار د گور دا شوخ ديده بي حيا معاف کړه چه زه ترِ خلاص شم گناه څما وه چه په قول مي د حکيمانو کار وُ نه کړ لکه ئي ويلي دي قطعه

له جاهل سره چه جنگ کوي هوښياره خو به مات کړي خپل تندي په نادانه ئي
چه گذار دِ په غليم د غشي وُ کړ ترِ حذر کړه چه ئي ناست په نښانه ئي

حکايت

د يوه بادشاه وزير وه ډير نيک خوي او خيرخواه د خلائق وه دلبري ئي د هر چا کوله رو به روي د هر چا حرمت کاوه پسي شا به ئي د دوست د دښمن صفت اتفاقاً له ده هسي حرکت واقع شه چه د بادشاه پسند نه وه محبوس ئي کړ هغه نگهبانان چه ممنون د ده د احسان وو څو ورځي چه دي په قيد وه واړو ئي خدمت کاوه او په هر کار کښِ ئي ور سره رفق او ملائيمت د ده په دلگيري واړه دلگير وو چه بند د ده د احسان په ځنځير وو

قطعه

خاطر د هر چا په ښه ويل ښاد کړه چه بد دِ ياد کا ته ئي په ښه ياد کړه
وائي که بد در ته د چا وُ نه رسي په دوست دښمن باندِ احسان کرم زياد کړه

څو مدت په سبب د باقي تاوان په زندان کښ پاتِ شه يوه له بادشاهانو د هغه نواحي چه د ده په ديانت په کفايت واقف وه پټ ئي ور لره خط کتابت راستاوه چه دغه بادشه څخه ستا قدر نه وه څکه ئي په لږ تقصير دا هونبره بي حرمتي بي عزتي در وُ رسوله که په دي لور دِ نيت د راتلو دي دا عالم خاص و عام وارهِ ستا اشتياق لري وزير چه په دا حال خبر شه مختصر ځواب ئي هم پر شا د هغه خط وُ ليکه روان ئي کړ يوه د ده له معاندانو چه په دا حال واقف شه بادشاه ته ئي وُ وِ چه فلاني چه محبوس دي د فلاني بادشاه سره آمد و رفت تر مينځ لري خط کتابت ور درومي بادشاه برهم شه جاسوسان ئي وُ گمارل چه کشف د دي کار وُ کا قاصد ئي وُ نيو خط ئي وُ لوست ليکلي ئي وه چه نيک گماني د بزرگانو په بنده زياته د بنده تر فضيلت ده اما در تله د بنده چه په خدمت د حضور مشرف شي امکان د دي امر د اجابت نه شته بنده پرورده د نعمت د دي خاندان دي په لږ تغير حال له مخدومَ قديمَ جاروتل خدمتکار لره مناسب نه دي بي وفائي کيږي

بيت

د هر چا چه عنايت په تا هر دم وي     بار ئي ورهِ که ئي په تا کله ستم وي

د بادشاه د ده دا خوي د وفادارئ او د حق شناسئ دير پسند شه خلعت او نعمت ئي ور ته عنايت کړه عذر ور غني د ما سبق وُ غوښت چه ما خطا وُ کړه چه ته مي بي گناه آزرده کړي عرض ئي وُ کړ چه د صاحب په دا کار کښ هيڅ خطا نه شته بلکه تقدير د حق عزَّ اِسمهُ په دا مقدر شوي وه چه دا محنت به ما ته رسيدنه ښه وُ شول چه هم ستا د لاسَ را وُ رسيده چه حقوق دِ د نعمتونو را باندِ ثابت دي رباعي

که دِ دوستان دي که دښمنان دي     چه رسووني د سود و زيان دي
وارهِ له خدايَ گڼرلي بويه     غير به نه ويني چه عارفان دي

۳۷۱

## حکایت

یوه بادشاه د عربو حکم وُکړ په خپلو دیوانیانو چه د فلاني خدمتګار یومیه تر سابق مضاعفه کانړئ چه همیشه په خدمت حاضر دي او نور په لهو و لعب مشغول دي او په خدمت کښ کاهل یوه صاحب دل وارویدل وُ ئي ژړل وُ ئي وِ چه مرتبه موندل په درګاه د حق تعالي هم دا مثال لري قطعه

په خدمت کښ چه حاضر وي د بادشاه یوه ورځ پرِ آخر وُ کاندِ نګاه
عابدان چه عبادت په اخلاص کاندِ البته پرِ رحم وُ شي د اله

## مثنوي

که مهتري غواړي فرمان بردار اوسه په عبادت کښ د کردګار اوسه
په ورځ انصاف کړه په شپه بیدار اوسه د بل آزار وړه ته بي آزار اوسه

## حکایت

یو ظالم وه شریر چه لرګي به ئي له درویشانو پیرودل ارزان په زور توانګرانو لره به ئي ور کول ګران په سود یوه صاحب دل ور ته وُ وِ بیت

مار ئي ته چه په هر چا باندِ ګذار کړي یا ګنګي چه چرته کیني زمکه غار کړي

## قطعه

زور قوت که دِ خي پیش په فقیرانو د خواب قوت دِ نه شته و یزدان ته
زنهار مه آخله، آزار د غریبانو چه آهونه ئي لاړ نه شي و آسمان ته

ظالم له دي خبري وُ رنځیده مخ ئي وُ جاریوست التفات ئي وُ نه کړ ناګاه د باورچي خاني اور ئي په انبار د لرګو وُ لګیده درست کور ئي سره له متاع وُ سه اتفاقاً هم هغه درویش چه نصیحت ئي ور ته کړي وه ده مخ ترِ جاریستلي وه په هغه لار تیریده هغه ظالم له خپلو یارانو سره خبري کولي چه نه پوهیږم دا اورخما په کور له کمه لوریه وُ لګیده درویش ور ته وُ وِ چه له آهٔ د درویشانو

## قطعه

په حذر اوسه د خوږو زړو له آهٔ چه آخر د زړه لنبه ژبه ښکاره کا

یو کورخه چه له دي اوره لوي ښهرونه هسي سوځي چه عالم ئې ننداره کا

دا لطيفه پرتاج د کیخسرو بادشاه لیکلي وَه بیت

څو څوکالونه به را بانددِ تیر شي شیرین صورت مي به په بل بل پیر شي
دا ملك د نورو و ما ته راغي بل ته به هسي له ما نه هیر شي

حکایت

یو پهلوان وه چه په هنرکښِ د پهلوانئي کامل وه تیر سو شپیته هنره ئي فاخرد دي کسب حاصل وه هره ورځ به ئي یو هنرښکاره کاوه مگر په یوه شاگرد ئي مهرباني تر نورو زیاته پیدا شوي وَه تیر سو یو کم شپیته هنرونه ئي ور ته وُ ښیل یو هنر ئي څنِ پټ کړ په ښیل کښِ ئي دفع الوقتي کوله عاقبت هغه هلك هم په هنرکښِ د پهلوانئي سر آمد شه نورشاگردان ئي پس کړل د چا مجال نه وه چه له ده سره ئي برابري وُ کړي یوه ورځ ئي د بادشاه دورانِد لافي وهلي چه د استاد په ما باندِ فضیلت از روي حقوق د استادئي دي چه تعلیم ئي را ته کړي دي او که نه په قوت تر ده کمتر نه یم او په صنعت کښِ ورسره برابریم بادشاه ته دا خبره دشواره ښکاره بده پرِ وُ لگیده حکم ئي وُکړ چه سره دِ مصارعت وُکاندِ میدان ئي د پهلوانئي ور ته جوړکړ بادشاه ارکانِ دولت امرایان واړه جمع شول خلق ډیر ټول شه هغه ځوان لکه مست هاتي راغي په هسي دماغ چه که د وسپنو غر ئي په مخ کښ وي هم به ئي لوړولي وه استاد ئي فکر وُکړ چه دي ځوان دي په قوت ترما ډیر دي هغه هنرئي چه پټ کړي وه ور ته ئي واچاوه شاگرد ئي دفع کولي نه شوه عاجز شه استاد په دواړه لاسَ پورته کړ تر سرئي خارکړ په زمکه ئي وُ ویشت شور له خلقَ پاځیده بادشاه وُ فرمایل چه استاد لره ئي خلعت او نعمت ورکړئي او شاگرد ئي ملامت کړ چه له خپله استادَ سره دا هومبره شوخي کول لاف څه مناسب دي وِ ئي اي بادشاهَ استاد په زور په قوت پرما غالب نه شه بلکه له ما ئي یو هنر پټ کړي وه زه ئي نن ورځ په هغه هنرلاندِ کړم استاد

و ما هم د دې ساعت دپاره له تا دا يو هنر دريغ کړې وه چه هوښيارانو ويلي دي چه دوست لره هومبره قوت مه ورکوه چه که احياناً غليم شي برابري در سره وُ کا

قطعه

يا وفا په دي جهان کښې پخوا نه وه يا ئي نه کا څوک څمورِ په زمانه
له هر چا نه چه ويشتل د غشيو زده کا هم هغه به عاقبت کا نښانه
دد و دام له دي سرِيو وفادار دي ښه چه ګرزي ليوني په ويرانه

حکايت

يو درويش وه مجرد گوښه نشين په صحرا ناست وه د بادشاه پرِ گذر وُ شه درويش په ملك د قناعت توانګر وه هيڅ التفات ئي پرِوُ نه کړ بادشاه په خپل سلطنت مغرور وه ورځنِ برهم شه وُ ئي وِ چه دا طائفه په مثال د حيواناتو ده آدميت اهليت ورځنه نه شته وزير درويش لره راغي ورته ئي وُ وِ چه بادشاه د ملك په دا تيرشه تا ئي ولي خدمت او ادب په ځاي را نه وړ درويش وُ وِ بادشاه ته وُ وايه چه اميد د خدمت له هغه کوه چه اميد د دولت له تا لري بل دا چه بادشاه ساتندوي د رعيت دي نه رعيت ساتندوي د بادشاه دا ئي مګر په غرور نه دي رسيدلي سَيِّدُ الْقَوْمِ خَادِمُهُمْ

قطعه

په معني بادشاه خادم د رعيت دي که هر څو ښتن د حکم و حکومت دي
رعيت لکه رمه بادشاد ئي شپون دي چه خدمت د رمي نه کا شپون زبون دی
هم ئي ژغوري له ليوه هم ئي ښه پيائي هم ترِ قوت هونبرهِ آخلي چه په پائي
د رمي څښتن مالك پروردګار دي تصرف دِ شپون پرِ نه کا که هوښيار دي

قطعه

د يوه که کل مراد د زړه حاصل وي د بل زړه په نا مرادي زير وزبر
نا مراد دِ يو څو ورځي صبر وُ کا مرګ به زرکاندِ دوي دواړه برابر
د بادشاد د ګدا هيڅ تفاوت نه شته چه څيري د مرګ اره د دواړو سر

که قبرونه ئې څوک وران کا وُ ئې گوري څوک به وائې چه دا خوار دي دا توانګر

بادشاه ډير په دا ويل د درويش خوښ او ممنون شه ور ته ئې وُ وِ چه څه غواړي وِ ئې دا غواړم چه له ما نه څه نه غواړي غرض را سره نه لرې بادشاه وِ پند را کړه وِ ئې

بيت

دا څو ګاه غنيمت دي نګه بان شه د انفاس
که دِ ملك که دِ دولت دي لاچار دروِمي لاس په لاس

قطعه

عدل و انصاف کړه د ملك بادشاهَ څو دِ لاګرزي په تن کښِ ساهَ
را تلنه کيږي د مرګ نا ګاهَ په ځان خبر شه د ځان ګمراهَ

حکايت

يو وزير په خدمت د ذو النون مصري رَحْمَةُ اللّٰهِ عَلَيْهِ راغي همت ئې وُ غوښت چه شپه او ورځ په خدمت د بادشاه مشغول يم له خيرهِ ئې اميدوار يم له شرهِ ئې په ويرهِ ذو النون وُ ژړل چه که زهٔ له خپلَ خدايَ هسي په ويرهِ په هيبت وي لکه ته له بادشاهَ له جمله د صديقانو به وم قطعه

که بي خدايَ ئې اميد و چا ته نه کړي د درويش قدم به پاسه په فلك وه
که وزير له خدايَ هسي ترسنده وي لکه ترس کا له ملكَ نور ملك وه

حکايت

وزيران د نوشيران جمع شول تدبير او بندوبست ئې د يوه ملك کاوه هر يوه په موافق د خپل فکر مذکور کړ بادشاه يو تدبير چه په زړهِ کښِ جوړ کړي وه بيان ئې کړ بذرجمهر د بادشاه راي پسنده کړه نورو وزيرانو وُ ويل چه د بادشاه په راي کښِ دِ څه خوبي او مصلحت وُ ليد چه په هونبرهِ وزيرانو کښِ ستا د ده مصلحت غوره شه حکيم وُ وِ په دا سبب چه آخر د کار په يقين معلوم نه دي او فکر د واړو په مشيت کښِ دي د اَللّٰه تعالي وَاللّٰهُ اَعْلَمُ خطا دي که صواب نور موافقت د بادشاه له رايَ سره بهتر چه که احياناً

خلاف صواب راشي چه متابعت د ده د فکر دي له غضبً به د ده ایمن یم

قطعه

د بادشاه متابعت ور لره بویه که څوک ځان عزت د ده له قهرَ ژغوري
رنړا ورځي ته که وُ وائي چه شپه ده وایه وُ خته پیروني غټ ستوری

حکایت

یوه شخص ویښته د سر گیسو کړه چه زه سید یم د حجاز له قافلي سره راغي چه له حجً راځم قصیده ئي د شعر بادشاه لره یووړه چه ما ویلي ده بادشاه خلعت نعمت ور وُ باخښه یو د بادشاه له ندیمانو هم په هغه کال له سفره راغلي وه عرض ئي وُ کړ چه ما دي د لوي اختر په ورځ په بصره کښ لیدلي وه حاجي څرنګک دي بل وُ وِ چه زه ئي پیژنم پلارئي نصراني دي سید په څه دي شعر ئي په دیوان کښِ د انوری بیا مونده د شعر دزدي کړي وه بادشاه پرِ په قهر شه حکم ئي پرِ د وهلو وُ کړ چه دا هونبره دروغ دِ د څه دپاره ویل وُ ئي وِ یوه بله خبره که حکم وي وایم که هغه دروغ شي نور هرعقوبت چه را رسوي سزاوار یم بادشاه وُ فرمایل چه وُ وایه وُ ئي وِ قطعه

چه یوه کاسه اوبه چمچه شونبلي وي د فقیر کره هله اګره شي سپینه
په دروغو د بنده په غضب مه شه جهان ګرد سړي اکثر دروغ وائینه

حکایت

د هارون رشید له زهمنو یو پلار لره راغي چه فلاني امیر زاده ما ته کنځل د مور کړي دي هارون رشید ارکانِ دولت وُ پښتیدل چه سزا د هسي سړي څه ده یوه اشارت په وژلو وُ کړ بل وُ وِ د ژبي پرِکول ئي بویه بعضوئي قید مصلحت وُ لیده هارون وُ وِ اي زويَ نیک خوئي او کرم دا دي چه عفوه ئي کړي او که نه توانیږي ته هم ور ته کنځل وُ کړه نه وي چه له حدَ تجاوز وُ کړي ظلم به هاله ستا له لوري شي دعوي به دربانډِ د ده بیت

مست هاتي خوني مزري سره که جنګک کا که به لاف د مردئي کا ورته نه نهائي

مرد هغه دي چه په نزد د ښو خوانانو چه په قهر کښِ باطل چا ته نه وائي

حکايت

شيخ وائي قَدَسَ سرُّهُ چه له بزرگانو سره په بيړۍ کښِ ناست وم يوه کښتۍ د وروستو څموږ ډوبه شوه دوه ورونړه په گرداب کښِ پريوتل يوه له بزرگانو ملاح ته وُ وِ چه دا دواړه وُ کاږه سل ديناره به در انعام کړم ملاح يو خلاص کړ يو ډوب شه وي مي سُبحَانَ الله باقي عمر ئي پاتِ نه وه څکه په وِستلو کښِ د هغه تاخير واقع شه ملاح وُ خندل وِ ئي چه يقين دي په دا کښِ هيڅ شك نه شته مرګ د هر چا په خپل وار دي اما بل سبب هم وه وي مي هغه څه دي وِ ئي دا چه خلاص شه يو وقت په بيابان ستړي شوم د تلو قوت مي نه وه په اوښ ئي سور کړم تر منزلہ ئي وُ رسولم او د دي بل له لاسَ مي تازيانه خوړلي وه وي مي صَدَقَ اللّٰهُ تَعَالي مَنْ عَمِلَ صَالحاً فَلِنَفْسِهِ وَ مَنْ اَسَاءَ فَعَلَيهَا

بيت

چه ښه بد عاقبت څان ته را جاروزي زنهار مه آخله د هيچا آزارونه
په دنيا په دين خپل کر سړي آخلي کر د گلو کوه مه کره خارونه
تل حاجت پوره کوه د محتاجانو چه ستا هم څبستن پوره کاندِ کارونه

حکايت

هارون رشيد چه ملك د مصر وُ نيو وُ ئي وِ په خلاف د هغه باغي چه په غرور ئي د دي ملك دعوي د ربوبيت کړي وه وُ به نه بخښم دا ملك مگر خسيس ترين وته د مريونو يو حبشي مريي د ده وه خضيب نوميده هغه ته ئي ملك د مصر وُ باخښه وائي چه حماقت ئي تر دي حدَ وه چه رعيت ور لره راغي شکايت ئي وُ کړ چه پنبه مه کرلي وه په کناره د رود نيل باران بي وقتَ وُ شه سيلاب راغي واړه تلف شول وِ ئي مناسب وه چه تاسي وړي کرلي وي يوه صاحب دل وارويدل وُ ئي وِ قطعه

رزق روزي كه زياتيدي د چا په پوهه په دنيا کښِ به تل خوار زو نادانان

په کم عقلو باندِ هونبره دولت ډیرکا په حیرت شي ور ته پاتو دانایان
کیمیاګر هنرمندان په خواري ؤ مري ابلـه مومي خزانه په بیابان

حکایت

یوه بادشاه ته ئي وینځه له ختنه راوسته خواهش ئي ور سره د صحبت ؤ شه په هغه حال کښِ چه دي مست وه وینځي ځان ته نه پرینبود منع ئي ؤ کړه بادشاه په غضب شه غلام حبشي ته ئي ؤ بخښله چه ډیر بد رنګ بد قیافه وه پاس شونډه ئي تر پوزي رسیدلي وه او کوزه شونډه ئي په ګریوان پریوتلي وه

قطعه

لکه ختم په یوسف د حسن کار وه هسي دي په بد رنګ والي کښِ اوځاروه
دیو به هم ور ته نظرکاوه په کرکه هسي رنګ کړیه منظر بغل مردار وه

راوړي دي چه نفس د هغه حبشي د مدتونو طالب وه شهوت پرِ غالب مهر ئي پرِ پیدا شه مهر ئي تر واخست صبا په وقت چه بادشاه وینځه یاده کړه احوال ئي ورته ؤ وایه بادشاه په غصه شه ؤ ئي فرمایل چه دواړه دِ سره ؤ تړي له کوتي دِ ئي خندق ته واچوي یو له وزیرانو چه خیرخواه د خلایقو وه عرض ئي ؤ کړ چه بي چاره ګناه نه لري خطا ترِ صادرد شوي نه ده بلکه واړه بندګان امید وارد صاحب له انعامونو وي او پرورده د نعمتونو بادشاه ؤ فرمایل چه که یوه شپه ئي تاخیرکړي وي ما به بها د وینځي دو چنده ورکړي وه ؤ ئي وِ مکر صاحب نه دِ آرویدلي چه چا ویلي دي رباعي

تږي چه ؤ ویني اوبه دوړاندِ که مست هاتي وي په اوبو باندِ
تږخانَ به تیرشي اوبه به ؤ څښي که ئي هاتي که د بسپو دَ لاندِ
ملحد وي وږي خونه خالي وي دك لـه طـعـامَ ینبي تالي وي
غم به هیڅ نه کا له رمضانَ روزه خوړل به ئي په خوشحالي وي

بادشاه په دا لطیفه د وزیرخوش شه ؤ ئي فرمایل چه حبشي مي تا ته بخښلي دي اما دا. وینځه څه کړم وزیرعرض ؤ کړ چه وینځه هم حبشي ته

ؤ ښځښه پس خورده د سپي هم سپي لره بويه قطعه

که هرڅوئي ښه پوښاك ښه ئي زيوروي د بازار لولئي بد بويَ وي خبيثَ
پس خورده د سپيو سپيو لرهِ ور کړه نصيحت واخله څما له دِ حديثَ
اَلطَّيِّبَاتُ لِلطَّيِّبِيْنَ وَالْخَبِيْثَاتُ لِلْخَبِيْثِيْنَ په کتاب کښِ راغلي دينَ

حکايت

سلطان سکندر رومي چا ؤ پښتيده چه ملك د مشرق و مغرب دِ په څه وينو ترڅا ښخوا بادشاهان چه تيرشوي دي لښکرخزانې عمرونه ئي ترتا زيات وو دا رنگ فتح ور ته ميسرهِ نه شوه سکندر ؤ فرمايل په مدد د الله تعالي هرملك چه به مي ؤ نيو رعيت مي نه آزاراوه او نوم د بادشاهانو مي بي له نيکئي په بدي نه ياداوه بيت

په بزرگي به ئي هوښيار سري نه ستائي سپك ويل چه بزرگانو و ته وائي

قطعه

وارهِ هيڅ دي چه تيريږي که دِ بخت دي که دِ تخت
د ښو نوم په ښه آخله په دوو کونو شه نيك بخت
له هرچا شه په خوي نرم جهان دي له سختو سخت
په خپل وقت عدل انصاف کړه تل به نه وي دِ تا وخت
د ښه بد قماش معلوم شي هرڅو ؤ نغاړي خپل رخت

حکايت

چا زيري په نوشيروان عادل باندِ ؤ کړ چه فلاني دښمن دِ حق تعالي له جهانَ واخست وِ ئي هيڅ دِ آرويدلي دي چه ما به پريږدي قطعه

د غليم په مرگ چه واروي هرگز مه کړه ښادماني
نن دي لاړ صبا به ته ځي دا ځاي نه شته وداني
عاقبت له دي جهانَ تله د هرچا په نا کام دي
ته هم نورو غوندِ ؤ کړه يو څو ورځي کامراني

# فهرست د غلطو

| PAGE. | صحيح | غلط | سطر | صفحه | نسخه |
|---|---|---|---|---|---|
| 23 | ګاهي تور کودي | ګاهي کودي | ۱۰ | ۲۳ | ديوان د عبدالرحمان |
| 29 | دي د | د دي | ۹ | ۲۹ | |
| 54 | ماتري | ما تري | ۱۴ | ۲۴ | ديوان د خوشحال خان |
| 109 | آشنائي و چا ته | آشنائي و ته | ۱۸ | ۷ | ديوان د خواجه محمد |
| 114 | محمد | محمه | ۲۰ | ۱۲ | |
| 118 | و ما ته | و ماته | ۱۲ | ۱۶ | |
| 122 | په کثرت کښي | پد کثرت کښي | ۲۰ | ۴ | ديوان د ميرزا |
| 124 | تمام کثيف | تمام کسيف | ۱۷ | ۶ | |
| 137 | له پردي | له پر دي | ۴ | ۵ | ديوان د شيدا |
| " | کښي | کنبي | ۲۳ | ۵ | |
| 159 | سامان د کوچ | سامان کوچ | ۱ | ۱۱ | ديوان د اشرف خان |
| 172 | پوري | پيوري | ۱۱ | ۱۰ | يوسف و زليخا |
| 178 | ګناه خان به په رحمت کا | کاګناه خان به په رحمت | ۱۴ | ۱۶ | |
| 182 | درغيدلم | ورغيدلم | ۱۴ | ۲۰ | |
| 189 | که | کا | ۱۱ | ۳ | ديوان د عبدالقادر |
| 203 | څانکندن | څانکند | ۴ | ۳ | ديوان د احمد شاه |
| 211 | د زمکي | د زمکه | ۱۳ | ۱۱ | |

۳۸۲

## عبدالرحمان

بسم‌الله الرحمن الرحیم

گوره هسي کردګار دي رب څما — چه صاحب د کل اختيار دي رب څما
همګي بزرګواران چه څوک وائي — تر همه بزرګوار دي رب څما
نه ئي هيڅ حاجت پچا باند موقوف دي — نه د هيچا منت بار دي رب څما
له نيستي د هستي صورت پيدا که — هسي رنګ پروردګار دي رب څما
هم صانع دي د جملهٔ مصنوعاتو — هم سامع د هر ګفتار دي رب څما
چه ئي هيچرته نه مثل نه مثال شته — د هغه عطرو عطار دي رب څما
هر تعمير چه د دنيا او د عقبي دي — د همه وارو معمار دي رب څما
خوانده د نا نويسو صحيفو دي — دانده د هر إسرار دي رب څما
که ظاهر دي که باطن دي که مابين دي — له همهٔ خبردار دي رب څما
شريک نه لري پخپله بادشاهي کا — بي شريک شهريار دي رب څما
هسي نه چه واحدي ئي ده له عجزه — په واحد وجود بسيار دي رب څما
حاجت نه لري د نور چا و ياري ته — له هغو سره چه يار دي رب څما
څه حاجت دي چه ئي بله خواته غوارم — پخپل کور کښي همکنار دي رب څما

هيڅ تغيير و تبديل نه لري رحمنَ
تل تر تله برقرار دي رب څما

تر حده تيره شوه په يار پسي ژړا څما — نه ګروهيږي په ژړا سره آشنا څما
که مي هره وينا در و مرغلري شي — لا لائق د غوږو نه ګنړي وينا څما

په نارو به مې بیدار کړ که خوب وړي وي بارِ ویښ را ته اوده شه دلربا ځما
زه مکتوب غند په پټه خوله ګویا یم خاموشي ځما تیري که تر غوغا ځما
ګښت د عشق په توده زمکه امان چرې سمندر بویه چه زیست کا په صحرا ځما
دا یار نه دي چه هجران له ما بیل کړي روح ځما دي چه له تنَ دي جدا ځما
زه رحمان بي خپله یاره نور څه نه غواړم
که قبوله شي د خداي په دردعا ځما

دوباره دِ راتله نشته په دنیا نن دِ وقت دي که دروغ کړي که رښتیا
هره چارچه تر وقت تیره شي عنقا شي عنقا ندي په دام نښتي د هیچا
تر ورځ تیرې اوبه بیرته نه جاروزي نه جاروزي تیر ساعت په بیرته بیا
تیر ساعت په مثال مړي د لحد دي مړ چا نه دي ژوندي کړي په ژړا
که مقصود لري تلوار کړه وقت کوتاه دي غره مه شه د دي عمر په بقا
هره نښه چه صحیح ګڼري په زړه کښ پغرور به هغه نښه کړي خطا
په امید امید ئي خلق نا امید کړه د ایام له مکره مه شه بي پروا
چه د مرګ په تماچه دِ شي خوله ماته ترو په ماته خوله به څرنګ کړي ثنا
ویره ژلي ارتني چه وینا وائي تا ته وائي که پوهیږي په وینا
هلك نه ئي چه په زور دِ څوك تعلیم که هم عاقل ئي هم بالغ ئي هم دانا
په عمل د نیکو بدو فهم وُ کړه چه په دا کښ دِ بهبود دي که پدا
سر د نن په ګریوان کړه سترګي رونړي دیر په بیرته بیرته مځه سرهوا
سرهوا سرهوا مځه و آسمان ته ته په اصل کښ له زمکي ئي پیدا
د عمل په ځاي به دا پوښتنه نه وي چه ته څوي ئي یا نمسي ئي د فلانا
هغه ناوي چه په ځان ښائیسته نوي څوك ئي څه کاند ښائیست د مور وُ نیا
په خپل ځان ښیکړه وُ کړه وُ ویریږه په ښیکړه غره مه شه د ادي او د ابا
دا خبره زه و ځان ته کړم اي یاره دلګیر مه شه که مي نوم واخست دِ تا
نوم د ستا او د بل آخلم ځان ته وایم نه مي کار نه مي غرض شته په نور چا

هر چه وایم همه وارهٔ ځان ته وایم دا عـیـبـونَ دیِ همه وارهٔ ځما
که مي ځاي د دِ غمونو وايَ په زرهٔ کښ ما به څهٔ لرهٔ کوله دا انـشـا
چه د مرګ سختي خواري دِ پخوا دي
اي رحمانَ ولي نه مريِ لا پخوا
هیڅ ثابته نه کړهٔ چا د دِ دنیا وفا وارهٔ سترګي پټي مینه کا په دا دنیا
هرڅوک چه دعوي په دنیا کاند د خپلويِ وارهٔ غلط وائيِ دنیا نه دهٔ د هیچا
دا فلك کلال دي سازول او ماتول کا ډیر ئي ما و تا غند پیدا کړلِ هم فنا
هر سنګ و کلوخ چه لیدهٔ کیږيِ د دِ دهر وارهٔ ګکري دي څوك د شاه څوك د ګدا
دام دِ هیڅوك نه ږديِ د دنیا و رهګذرته ښکار به کړلي نهٔ شيِ د سیمرغ و د عنقا
هرڅوك چه له دي فاني نفس وابستګي کا نه به شيِ ترلي په زنځیر سرهٔ هوا
ماه دي که آفتاب دي عاقبت وارهٔ خراب دي ګل که همیشه ويِ هم څهٔ نه تر ابدا
مه درومه رحمنَ پخلاف د دانایانُ
مینه د دنیا پسندلي نه دهٔ هیڅ دانا
که څوك یار په جهان غواړيِ یار دي دا یار دي دا که د جهان بسیګار دي دا
نه به ما غند شیدا ويِ په جهان کښ نـه بـه تـا غندِ دلبره شيِ پیدا
ما به صبر ستا په جور و جفا وُ کړ ولي نه شيِ د ژړا په ځاي خندا
جدائي به دِ هیچري قبوله نه کړم څومي نه دي روح کالبوت سرهٔ جدا
لك ورستو مقتدیان وړاند امام ويِ ما په تا پسي دهٔ کړي اقتدا
زهٔ یو نه یم درست جهان په تا مین دي که بادشاه دي د دِ دور که ګدا
کشکي خط د اماني و ما را کړي چه له ما سرهٔ وعدي کړي د فردا
زهٔ په خپله په تا نه یم مین شوي ستا لـه لوریه په ما شوِ وه ندا
زهٔ په تا باند مین یم له ازله نه چه کړي مي نن ورځ دهٔ ابتدا
چه د ستا د عاشقيِ په تیغ ادا شيِ
د رحمان به هـلـه غارهٔ شيِ ادا

راشه مه کوه له چا سره جفا | لږ ژوندون دي ضايع کيږي بې وفا
په دنيا کښ هيڅوک نه دي پاته شوني | واړه تلوني دي که نن وي که صبا
دا ياران چه نن و تا و ته جلوه کا | په دوه روځي پس به واړه شي فنا
که ديدن دِ د چا خوښ وي ور ته ګوره | چه فنا شي بيا به کله شي پيدا
د خزان پاڼري چه بيلي شي له ښاخَ | په حکمت به ئي پيوند نه کا حکما
چه په زمکه څاڅکي پريوزي له آسمانَ | بيا له زمکي ختي نه شي په سما
ګمان مه کړه چه بيا سترګو لره ور شي | هغه اوښي چه له سترګو شي جدا
دا په هره ورځ چه خيژي بل بل نمر دي | هر چه پريوزي هغه نه شي ختي بيا
که جنت په زهد نه دي بي کرم | هر سړي دِ خپله غاړه کا ادا
که د نفس د پاره سل محنت وُ کړي | يو محنت به دِ پکار نه شي فردا
که تمام جهان په خپله ګيډه وُ خوري | ياد به نه شي په درود او په دعا
که يوه دانه د وړي په لاس ورکړي | هم دغه به دِ توښه شي په بقا
که يو څاڅکي اوبه تږي لره ورکړي | د دوزخ او ستا ترمیان به شي دريا
که يو څله سرد خداي په لوري تيت کړي | په قيامت به سربلند شي ترهرچا
بازار دا دي که څوک سود و سودا کاند | په هغه جهان نه سود شته نه سودا
آشنايان که څه پوهيږي نن ئي وقت دي | چه زاريږي يو آشنا تر بل آشنا
که ژوندون دي خوهم دادي په جهان کښ | چه له چا سره تيريږي په خندا
خداي امان وُ کړه له هسي زندګي | چه ته بد وائي له بله بل له تا
زهر ښه دي چه په صلح په صلاح وي | نه شکري په فتنه و په غوغا
نس په خاورو په خس دک ښه دي بي غم | نه د غم په خاورو خس په څه حلوا
ماته ملا په مشقت په محنت ښه ده | نه حرامه هميانې د چا تر ملا
روند بهتر دي چه څه نه ويني په سترګو | نه چه سترګي په پردي حرم کا وا
ګنګ بهتر دي چه بي کام و بي زبان وي | نه چه ژبه شي په بد ويل ګويا
کوڼ بهتر دي چه څه نه آروي په غوږو | نه چه غوږ کاند د بدو په وينا

دیو او دد که ښوا درشي خو بهتر دي خداي دِ بد سړي در نه ولي ښوا
د جاهل تر همدمي دير بهتر دي که له چا سره همدم وي اژدها
که مشکل دي خو د زړونو رغيدل دي سهل کار دي سود و زيان د دي دنيا
سود و زيان د دنيا واړه سهل کار دي خداي دِ نه کا څوك په سهل کار رسوا
چه د ورور د عزيز زړه پرِ آزاريږي حاصل مه شه هغه خپله مدعا
ښه خواږه چه يوئي خوري بل ورته گوري خواږه نه دي هغه زهر دي گويا
گاه د نوړو رضا بويه گهي خپله په کار نه ده همیشه خپله رضا
چه ښادي يو گړي نه وي غم ترتله دغه هسي چاري نه کاند دانا
منصفانو لره بويه چه انصاف کا نه چه نغوته که د حرص د هوا
د سړي په خاطر هرڅه هرڅه گرزي نه چه وُ کنړي همه واړه روا
ديندارانِ دِ و خپل دين وته نظر کا څوك فکرونه د ثواب دي څوك خطا
خداي دِ نه کاند خطا د چا له لاسَ څه نسبت دي د خطا او د عطا
هسي نه چه سړي واړه سره سم دي څوك عالي دي څوك اوسط دي څوك ادنا
د هرچا حرمت پخپله اندازه دي نه چه مومي نفر څاي د امرا

رحمان شکر وُ شکايت له هيچا نه کړم
نه شته بل دوست دښمن څما بي ما

هغه بيامونده سعادت په دا دنيا چه ئي بيامونده قناعت په دا دنيا
نه ملکونه د سليمان په هزار کاله نه يوه گړي طاعت په دا دنيا
يو نفس د خداي په ياد کښ اولي تر دي نه د درست جهان دولت په دا دنيا
په دنيا کښ گټه هغو عالم وُ کړه چه ئي وُ کړ عبادت په دا دنيا
که نعمت دي خو طاعت و عبادت دي گنړه نه شته بل نعمت په دا دنيا
که محنت که مشقت دي خو د دين دي په کار نه دي بل محنت په دا دنيا
بي له خدايَ هرچه دي واړه فاني دي که لذت دي که زينت په دا دنيا
که بادشاه دي آخر خاورو لره درومي څه عزت دي څه حرمت په دا دنيا

همګي واړه تګان دي تګي کاند — فروشنده و خریدار د دِ دنیا
په دنیا به مینه نه کاند هیڅري — چه خبر وي په اسرار د دِ دنیا
چه نظر د چا په دین و په ایمان وي — هغه نه که انتظار د دِ دنیا
چه ویریږي له کوهیه له کړنګ — هغه نه درومي په لار د دِ دنیا
آشنایان ئې هم واړه مکاران دي — څه ویساه ده په مکار د دِ دنیا
لوي هلك ئې همه واړه اغیاران دي — یار دي چري په دیار د دِ دنیا
چه پیدا شي همګي واړه فنا شي — را شه وګوره ناتار د دِ دنیا
هر سړي لره چه ورشي څني درومي — ما لیدلي دي رفتار د دِ دنیا
په یوه ګړي بهار وي بیا خزان وي — بقا نه لري بهار د دِ دنیا
که هزار هزار پښتي ورته کیږدي — بي بنیاده دي دیوار د دِ دنیا
که د اوسپني حصار ترخان چاپیر کړي — ښیښه وګڼه حصار د دِ دنیا
لك سیوري د آفتاب په مخ کښ ګرزي — نه شته هیڅرته قرار د دِ دنیا
هیڅ ګمان د بهتري پر وُ مه کړه — کمتري ده وار په وار د دِ دنیا
بي مقراض غوڅوي د سړي عمر — هم دا لیل و هم نهار د دِ دنیا
پس له مرګ به حساب له سړي غوښت شي — په انداز و په مقدار د دِ دنیا
عاقبت خو به یوموټي شي د خاورو — ګلعذار و ګلرخسار د دِ دنیا
برابر به له ګدایَ سره پاځي — شاه‌زاده و شهریار د دِ دنیا
پاس به داغ وي د لئیم په سینه باند — هر درم و هر دینار د دِ دنیا
د قانع تر قناعت صدقه شه — هم دنیا هم دنیادار د دِ دنیا
پس له مرګه به همه واړه مظلوم وي — ظالمان او ستمګار د دِ دنیا
تر قیامته دغه شل دغه لس لولي — پوره نه کړ هیچا شمار د دِ دنیا
چه ایام پر د کښ د غسل ورشي — بي پردي شي پرده دار د دِ دنیا
په تخته باند بیرون شي له حجابه — شرمناك و شرمسار د دِ دنیا
تر هر چا به پیغمبر څخه وه ډیره — که څه قرب ويَ یا وقار د دِ دنیا

یو فساد به ئې بیان نه شي رحمانَ
فسادونـه دي بسـيـار د دِ دنـيـا

نه تنها یئې شکرلب — گل رخساریئې سیم غبغب
په نادرو کښي نادره — پهٔ عجبو کښي عجب
په جمله وُ معشوقو کښي — بـوالعـجـب منتخـب
بي زیورهِ دل فریب — بـي تـرتیـب مـرتـب
دا یو دادِ آلهي دي — بـي تـالاش بـي طـلـب
آب حیات حیات بیاموند — ستـا د لبو لـه سـبـب
مخ دِ سپین تر سپین صباح دي — زلـف تور تر تور شـب
ستا دَ مخ عرق دانه وه — زينت رانيو له كوكب
د نهائیست محي دِ نشته — تـر مشرق تـر مـغـرب
د وصال مونده دِ گران دي — مگر مهر شـي لـه رب
چه د رب مهر پر وُ شه — هغه خلاص شوُ له غضب
دا دولت د خداي په داد وي — مونده نهٔ شي له نسب
عشق څه هنسي علم نه دي — چه حصلیږي له مکتب
مکتب حال د مذهب واڼي — عشق سوا دي له مذهب
د عاشق مذهب هم دا دي — چه دِ نه وِي بي طلب

ستا د حسن په تعريف كښ
رحمان گنگ دي له ادب

ورځ دِ تیره په شوخي کړه شپه له خواب — خـداي به كله يادوي خانـه خراب
په شتاب شتاب دِ تله دي که پوهیږي — غـافـل مـه شـه د دِ عمر لـه شتاب
دلته دم وقدم واړهِ په حساب دي — پـل لـه لار غلط مه ږده بـي حساب
راستولي خداي حساب دي په کتاب کښ — خبر زده کړهِ له حساب له کتاب
زه دِ پیژنم په اصل کښ تراب يئې — تـه ځـان څـه ځنډي په گتو له تراب

څو په دا جهان اوبه له تندي نه شي    په قيامت به دِ سينه نه شي سيراب
اندرون به دِ له اورهس ډک شي    چه نن ډک شو له شراب له کباب
ته دا خپل نيک و بد وُتله په خپله    چه ګناه دِ څو تيري کا تر ثواب
په هغه جهان به څرنګ څواب ووکړي    چه په دا جهان عاجز يئي له څواب
چه آفتاب يوه نيزه شي ترو به څه کړي    چه نن سيوري لره تښتي له آفتاب

په آزار د چا راضي مه شه رحمانَ
که خلاصي په قيامت غواړي له عذاب

هسي مست يم ستا د شونډو په شراب    چه به بل نوي دا هسي مست خراب
لاس د ستا له مينې آچوم وګل ته    لکه بوټي ته لاس آچوي غرقاب
دا سرخي رسفيدي د ستا د مخ ده    که څما په مخ باران دي د خوناب
څه اثر به څما اوښي په تا کاند    لا زيات شي اور په اوښو د کباب
عاشقان که ستړګي رونړي که په عشق کښ    دا خواب نه دي دا منزل دي د سيلاب
ما چه خال د ستا د ورځو په ميان وُليد    نه بل هسي رنګ امام شته د محراب
شاپيرئي چه ليدي نه شي سبب دا دي    مخ د ستا له شرم نغاړي په حجاب
چه صبا شي ستا تر مخ پور شرميږي    څکه زيست په توره شپه کاند مهتاب
حجاب واخله .تورکړه مخ د هغو خلقو    چه تحسين کا ستا په دورد آفتاب
هسي نه چه زه دلبر وايم و تا ته    خداي دي تا لره درکړي دا خطاب
ستا د مخ په ورق باند خط و خال دي    د مصحف په صحيفو باند اعراب

يو کتاب په اسرينړ کښي چا و نه کړ
بي رحمانَ چه ئي کړي دا کتاب

ستا په مخ کښي د جمال څه حساب نشتَ    څکه ما څخه د صبر مجال نشتَ
ته د سر و د مال ويره په ما مه ږده    ويره ما څخه د سر و د مال نشتَ
زه په دا سبب له ويري سره ريږدم    چه ستا ويره د ثواب د وبال نشتَ

که وعده د یوې چارِ یو ساعت کړې د هغې چارِ امید مې په کال نشتہ
د شهید و حال ته ګوره حال ئې څه دې بې تا هسې ځما حال دې بل حال نشتہ
روښنائي مې د چشمانو ستا دیدن دې په دا کور کښې بل چراغ و مشال نشتہ
په جویبار ځما د سترګو سروه ته یې په دا نهر باند غیـر نهال نشتہ
مخ دې بې خط و بې خال هسې زیب کا چه ئې هیڅ حاجت په خط و په خال نشتہ
د آفتاب په مخ کښې هره ورځ زوال وي ستا د حسن په آفتاب کښې زوال نشتہ
ستا په یاد زړه رحمان هسې رنګ مشغول یم
چه په زړه کښې مې هیڅ غم د وصال نشت

په دنیا کښې مخ د یار دې نور څه نشتہ هر چه دې د یار دیدار دې نور څه نشتہ
چه و هجر و وصال ته ئې نظر کړم یو دوزخ دې بل ګلذار دې نور څه نشتہ
کارخانه چه د دې دهر لیده کیږي همګي د عشق سرکار دې نور څه نشتہ
هر مژګان ئې په ما هس چارِ کاند وایم عین ذوالفقار دې نور چه نشتہ
بویه مرد چه ئې له مخه زلفې واخلي دغه ګنج دې دغه مار دې نور څه نشتہ
د محسن د محسنات صفت به څو کړم کوتاه وایم چه بې شمار دې نور څه نشتہ
و هر لور ته چه د زړه په غوږ ځیر شم جوړ د محبت بازار دې نور څه نشتہ
هر طبیب ته چه ځان و ښیم دا وائي چه له عشق دې آزار دې نور څه نشتہ
خوار رحمان که بې تا مینه په چا وُکه
عین د قتل سزاوار دې نور څه نشتہ

تا خو زده ځما د زړه له احتیاج ترو ما څه پوښتې چه څه غواړې محتاج
د طالب د مطلوب راز به ما درُ ښو که ته نه واې خبردار له دې رواج
یار که یار ته حال په خوله نه وائي څه شوُ و حکیم ته پټ ښکند دې له مزاج
که ته ځما له حال ما پوښتې حال دا دې چه بې تا مې ورځ بتره ده تر داج
آشنائي به ما په کوم قوت کوله که خبر وای ستا د هجر له تاراج
که تر سلو به یو خواست د چا قبلیږي خدای دِ هیڅوک رنځور نه کا بې علاج

په رحمان بلا پسي که زهیرېږي
ته مشغول اوسه له خپله تخت و تاج

ستا وصال دي را بخښلي څما روح — ستا هجران دي پیرودلي څما روح
چه هرګز ملك‌الموت پر نه پوهیږي — هسي شان دي تا وُ کښلي څما روح
ستا په مخ پسي مخ وُ نیوه راهي شه — له صورت دي وتـلي څما روح
ځان ئي هسي ستا په مینه پس ورک کړ — چه هیڅا نه دي لیدلي څما روح
که وي هم به تا ښخه وي که ئي خداي کا — نه دي بله خواته تللي څما روح
بلبل نه دي دا چه آلوزي په ګلو — ستا په لور دي آلوتلي څما روح
چه ئي خاور کړ صورت د تا په در کښې — سر تر عرش دي وکښلي څما روح
ته ئي پیژني چه څه دي یا څه نه دي — نور چا نه دي پیژاندلي څما روح

زه رحمان له خپله ځانَ خبر نه یم
چه په څه رنګ ئي کښلي څما روح

کله شوُ لا کله خریداریم ستا د مخ — تیر تر سرو مال یم په بازاریم ستا د مخ
بي د تا له مخه مي نور هیڅ په مخ کښي نشته دي — هسي رنګ نتلي په ناتاریم ستا د مخ
هیڅ پسترګو نه وینم دا خپل صورت چه کوم — ډوب تر هسي حده په انواریم ستا د مخ
دود د آه وُ کاوم په بهنه د تماکوُ — سوي لوغړن مدام په ناریم ستا د مخ
نور وګړي واړه همګي د دنیا کار که — زه همیشه غرق په انتظاریم ستا د مخ
شکر چه ئي خلاص کړم د نور خلق لمنت — سر په سجده یېبي منت باریم ستا د مخ

هره خوا چه درومم زه رحمان د زړه په سیر
بل مطلب مي نه شته طلب ګاریم ستا د مخ

که څه وایم له هجران وایم څه — له دِ دردَ بي درمان وایم څه
توان د دم وهلو نه لرم و یار ته — چه توان نه لرم بي توان وایم څه
چه ئي وُ وینم له ځان خبر نه یم — چه خبر نه یم له ځان وایم څه
د خپل زړه له حال هیڅ را ویل نشي — له بي نامو بي نښان وایم څه

د عشق راز چه هيچا کنه دي بيان کړي ترو به زه له بي بيان وايم څه
د خپل يار له غم درست په اوښيو ډوب يم له دي هسي رنګ طوفان وايم څه
زه چه پروت يم د هجران په تناره کښ د وصال له ګلستان وايم څه
سر و مال د سړي لوټ که زړه ئي يوسي له دِ هسي دلستان وايم څه
زاغان بولي بلبلان شړي له باغ د دِ دهر له باغبان وايم څه

هر چه وايم تر همه واړه بهتر دي
زه رحمان به له جانان وايم څه

ګوره بيا به څوک ادا کا په زړه غونډ چه دا هسي مسته ګرزي مخ بر منډ
ته چه ګل د آشنائي له باغ غواړي خبر زده کړه د هجران له خار و خنډ
طالبان که مروردي هم ښځلا دي بي مطلوب و چا نه رسي دا هنډ
ما رستم د دهر وُ ليده په سترګو د خپل يار له جور ژاړي لك كنډ
د عاشق د لاغري سبب هم دا دي چه فرقه د معشوقو شوه په زړه پنډ
زه به حور د جنت بي ياره څه کړم خداي دِ سروه د چا نه کاندَ ارهنډ
سخت ساعت د بيلتانه به مي هير نشي که را ډکه شي د تور لحد ګور هنډ

زه رحمان د هغه حسن ثنا ګوي يم
چه جرګه د عاشقانُ ده پر پنډ

چه م يار وُ ليد په سيمه د اغيار ګډ له غيرت م ليمه شوه په خونبار ګډ
زه په وصل کښ هجران هسِ سيځم لك څوك چه خالي لاس وي په بازار ګډ
زړه م بي خپل نګار آرام نه کا که هر څو ئي کړم په نقشُ په نګار ګډ
په اميد د زلفو وُ نښتم په دام کښ. روهلي وم ساده دل په هندوبار ګډ
د ديدن په ګدائي کښ ننګ مي نشي درويزګر يم د بتانُ په دربار ګډ
د وفا د ګلو پاڼي په کښ نشته کاشکي مه واي د دِ دهر په ګلذار ګډ
که ښځوا تر آشنائي بيلتون ليده شواي هيڅ بنده د خداي به نه وُ په دا کار ګډ

زه رحمان ئي د فردوس له غم خلاص کړم
چه په کلي په کوڅه شوم د خپل یار ګډ

نه رسیږي ستا و حسن وته حورَ     ځو نه رسي و میرمن وته مزدورَ
ستا و قدو و قامت ته نه رسیږي     که نشتر که سپاري وي که کجورَ
تر قامت پورِ دِ سروه ده سرکوزه     تر صورت پورِ دِ شمع ده بي نورَ
هر سړي چه دِ و حسن ته نظر کا     شاپیرئ ئي په نظر وي نا منظورَ
چه تا مي د خپلُ شونډُ ور په خوله کړه     طائفه دِ د صوفیانُ کړه مخمورَ
اوس ته وایه چه په څه رنګ دِ وُ ستایم     زه خو ستا په مینه وُ لاړم له شعورَ
دا جذبه د عاشقئ نه ده نور څه ده     ګنړه کله څوك وتي شي له دستورَ
اوس به زه د شب خیزئ منت پخه کړم     چه څهره دِ کړه په خوب کښ را حضورَ
که څوي سل څله تیري لري تر لونړو     صدقه شه ناقابل څوي تر لورَ
چه په ننګ و په ناموس تر لونړو کم وي     خداي دِ مور کاند په هسي څوي بورَ
ننګیالي تربورون ښه دي او که نوي     ننګیالئ ترله هم ښه ده تر تربورَ
خوبروئ بي دلبري په کار نه ده     لکه ونه بي میوه په پانړو ګورَ
که د غلوزي لباس وُکه څه به وُ شي     شهد نه دي چا موندلي له زنبورَ

په رحمان د ښایسته وُ قدر ډیر دي
د طبیب له قدره چا زده بي رنځورَ

تل به نه وي شګفته ګلذار د عمر     نه به جور وي همیشه بازار د عمر
لك سیند د اباسیند په غورزي دروميِ     هس یون دي په تلوار د عمر
لك برقِ چه ځان ځرګند کاند بیا نوي     هس تیز دي بي له شك رفتار د عمر
چه سمند ئي نه جلو لري نه واګي     خو به پریوزي عاقبت شهسوار د عمر
سرکښي لري تر هسِ حد پوري     چه نیوي نه شي هیڅوك مهار د عمر
په ساعت د سل کالو یاري پري کا     بي وفا دي هس رنګ یار د عمر
نه ووزم له کور چرت نه سفر کړم     بي سفر مي غوځیږي لار د عمر

عاقبت به د اجل په مقراض غوځ شي    پیوسته به مدام نه وي تار د عمر
خپل صورت به د حباب په سترګو ګوري    که څوك وګاند په زړه کښ شمار د عمر

بیا ئي وار په دا دنیا نشته رحمان
پهر چا باند چه تیر شي وار د عمر

چه په وقت د څانکندن وکاري ریرَ    ترو نن ولي هس ناست ئي بي تدبیرَ
هر سړي چه ګاندِ غم په مخ کښ ویني    له هغه غم لا نن ګرزي دلګیرَ
چه ارمان ئي وي صباح پند د پیرانٌ    ولِ نن طَلب د پیر نه که بي پیرَ
د خداي یاد به دِ پخه رنګك په زړه شي    چه دِ غیر لري نه شي له ضمیرَ.
چه د توك په طلب ګرزي خداي دِ هیر دي    فقیري دا هسِ چري وي فقیرَ
دغه غم دِ خداي بدل کړ په ښادي    زهیر مشه په آشنا پسِ زهیرَ
تمامي عمر په آب و په آتش وي    عاشقان د لعلو لبو له تاثیرَ
که هر څو ښایسته ډیر دي په جهان کښ    و هر چا وته خپل یار دي بي نظیرَ

که په مرګك که په ژوندون وي خداي دِ نکه
د رحمان خلاصي د زلفو له زنځیرَ

پس له مرګك آرت څوكٌ ویني خپل ګور    که حق وائي هنمبره آرت به وي ګور
تر څان زیاده کمه چار څه پکار نه ده    څان پلویشت کړه چه دِ څو دي اوږده سور
چه جامه د چا اوږده شي یا کوتاه    ور کاوه شي هنر مند لره پیغور
هر سړي چه په حساب کښ تیر و بیر شي    ملامت پرِ وایه کیږي لور په لور
چه لائق د ملامت او د تهمت شي    څاي لري که بي عزت شي هم سرِ تور
چه عزت حرمت ئي نه وي په جهان کښ    دغه هسي ژوندون وسوځه په اور
بي عزتٌ سړي خوښ د هیچا نه وي    مګر هسي بي عزت وي څنِ نور
خپل مجلس ئي تر جمله مجلسو خوږ وي    په هر څاي چه وبله ور یشي خرسور
هر هم جنس له هم جنس سره جوړ وي    زینب که هره کبیده پخپل انځور
نا بینا پخپله خونه کښ بینا دي    بینایان په پردي ملك کښ کړ و کور

یقین د بد کردارو په کردار کړي کښي دِ ښه د بد کردار سړي پیغور
ت صورت د یوه نوک په درد دردمند شي وران شي درست ښهر د یو سړي په تور
یو غاښ په خوله کښ خوږند شي یا پریوزي درسته خوله پرِ بد نمایه شي هر کور
سړي چه په کوړمه کښ د چا کرم شي واړه کرم شي که پنځه وي که څلور
کردار څوي پیدا مه شه له موږ حبطه کاند ناموس د پلار و مور
څوک خپله خوشنودي غواړي له خدایه بارِ نه شي دغه کار په زر و زور
ای پخپل قدرت څوک لوي څوک ئي هلك کړه نه چه هر ښهر دلي شي یا لاهور
نکو پورونه هر څوک سره ګاند بخت هیچا ورکړي نه دي و بل پور
چا تاج په سر زري خنجر تر ملا وي څوک څوک څي په کلي ګرزي په خره سور
اي رحمانَ د خدای نوم به چا وا نه خست
که د خدای چارِ په پلار شوي یا په ورور

دغه یار دي دا اغیار دغه ګل دي دغه خار
دغه ګل دي دغه خار دي دا منصور دي دغه دار
دا رقیب دي دا حبیب دي دغه ګنج دي دغه مار
دغه عقل دغه عشق دي دغه غم دي دا غم خوار
دا هجران دي دا وصال دي دا خزان دي دا بهار
دا طاعت دا معصیت دي دغه نور دي دغه نار
دا عالم دي دا جاهل دي دا خفته دي دا بیدار
دا رحمان دي دا جانان دیّ
دا طبیب دي دا بیمار

هسي تله کاندِ وګورته یاران زر زر لك تله کا و خپل کور ته کاروان زر زر
هسي زر زر مرګ پر موږه شتابي کا لك لو د پاڅهٔ کښت که دهقان زر زر
هسي زر زر دا دنیا وبلته آوري لك آوري وُبله ریګ زوان زر زر
هسي زر زر صورتونه دي ماتیږي لك ریژي لاله زار په خزان زر زر

لك بحر چه بهيږي روان زر زر    هسي زر زر دا شيرين عمر تيريږي

د بنړو څنبل هم هسي زر زر نوي
لك دروميِ لـه جهانَ رحمان زر زر

ي خان پغارمه سوځي کهي ريږدي پسارَ    کله مري له لوږي تندي کله مري په ډير خوا
ږه په غوغا دي چه راغلي په دنيا دي    نه غه وږي په قرار دي نه قرار هغه ما
ه لاس په سر وبله ته کښيږدي تواضع کا    کله وبلـه کيږدي لاس پـه تورډ په چا
اوري د آدم چه خميره کړ فرښتګانو    درست ئي پـه غمونو پـه دردونو ؤ لا
ه شوکه څوک نن ساعت واهه شي يا تاږه شي    پيښ به شي هغه هم په واهه هم په تا
و به وږي تندرسته دا څموږه بنا سسته    زه ئي در مانده يم په پشتي په اخ
ئي که څوك پس له مرګَ خاندي په لحد کښ    هرچا چه پدا ژوندون کښ خپسر ؤ ژا
نم وارډ تلوني هيڅوك نه دي پاتو شووني    يون دي په دا لار هم د څوان هم د ز
ن د دلدار دي چه هر څوك ئي طلبګار دي    لوي دي که هلك دي که غتان دی که و
خ د هغه چا دي چه پدر کښي ئي قبول شه    زار د هغـه چا دي چه لـه دره ئي ش

ما غند رحمان عندليبي کړه ورته سلو
خداي خبر چه کوم يو هغي ترکي ويارَ

مدام ناست يم وچ ګوګل سترګي په نم کښ    عشق را ؤنبو بحر و بر په خپل حرم کښ
ما چه زخم ستا د توري په خوله کښل کړ    نور مي دا لذت بيا نه موند په مرهم کښ
دي مجنون چه سر په پښو د ليلي کښيښو    سر بلند شه په عربو په عجم کښ
زورور مدام غالب وي په کم زوريو    زه له نورَ غمَ خلاص يم ستا په غم کښ
لك زه چه مستغرق يم ستا په غم کښي    بل به نوي په جملـه بني آدم کښ
لکه مر چه د ژونديو په ميان پروت وي    هس بيل يم له عالمَ په عالم کښ
هيڅ يو دم مي د دم کړيو په دم نه شي    هم په دا چه څما دم دي ستا په دم کښ
نه مي بي تاګفتوکوي نه جست وجوي شته    مراد مي ته ئي په هردم په هر قدم کښ

که نصیب مي شي کوزغالي ستا د سپیو ؤ به نه کړم نورنظر په جام د جم کښ
زړه مي هسي ستا په زلفو پسي بایلو لکه غوټه د چا پریوزي په تور تم کښ
سره په وینو د سروگلو په څیر زانگي هزار زړونه ستا د زلفو په هر خم کښ
زه رحمان کناره خوښ وم له عالمَ
بار ستا کتو رسوا کړم په عالم کښ

سپین مخونه تورکودي شي په پیري کښ سم قدونه کوږ لرگي شي په پیري کښ
ه شمع د سحر آفتاب د ژمي هم بي تابَ هم زیړي شي په پیري کښ
پل یو سر ړدي و بله خواته درومي خپل صورت تمام پریدي شي په پیري کښ
مردهؤ په حساب کښ غزاوه شي که څرگند لیده ژوندي شي په پیري کښ
لا نبه دي پس له مرگځ بیا ژوندي شي نه شته دا چه څوك زلمي شي په پیري کښ
څه ؤ خوري لك زهر په خوریږي نه خوړاي شي نه څه څښاي شي په پیري کښ
څواني ده چه څه آروي یا ئيویني نه لیده نه آرویده شي په پیري کښ
اي رحمانَ پیري هسي عاجزي ده
که رستم وي د زړه سوي شي په پیري کښ

خدایه څه شو هغه کښلي کښلي خلق په ظاهر په باطن سپین سپیڅلي خلق
هیڅ خندا مي له دي خلق سره نه شي ژړوي مي هغه تللي تللي خلق
خبر نه یم چه و کومه خوا ته ؤ لاړ شه لیده نه شي هغه ما لیدلي خلق
لکه نهر چه د اورو په څوکه درومي هسي درومي په جهان راغلي خلق
دریغ یو څله خو بیا په جهان راغليَ له جهانَ په ارمان وتلي خلق
هزار حیف دي چه په خاوروکښ لاړه شي په سوه او په چندنر لړلي خلق
رحمان هسي خوند له خلقَ بیارته بیا موند
چه هرگز نه وي دا خوند موندلي خلق

چه امید په عمارت د دِ دنیا ك د کاغذ په کښتي سیر د دریا ك
د آیمان توسن هیچا تیڅلي نه دي څوك به څرنگ سورلي د باد په شا ك

نه ليوه په آدميت آموخته کيږي — نــه اميــد د مروت شي لــه افــلاك
له فلكَ د وفا اميد باطل دي — کلــه ديو له آدم زاد سره وفــا ك
زمانه په اسلام كفر سمه كرزي — فرق د تور و د سپين كله نا بينا ك
ما د دهر علامت په سترګو ؤ ليد — چه هر دم هزاز پيــدا هزار فنا ك
هيڅ اميد مي د ايام په ګردش نه شي — چه فرصت به په خپل دور و ما زا ك
پخپل عمر به هيڅا ليدلي نه وي — هغه چاري چه يار هر ساعت په ما ك
چه د ګلو غنچه كيږدم په دستار كښ — شوم طالع مي هلته خار څني پيدا ك
كه و زرو وته لاس كړم خاوري كيږي — كه د خــاورو پــه آرزو شم استغنــا ك
جدائي د خداي بلا ده نه توانيږم — خوشي زړه مي پديدن پسي بلا ك
هنمبره صبر دي عاشق څخه له كومَ — چه د نن وعــده موقوفــه په فردا ك
كه د اور جامه را واغندي دلبره — په نــظـر څما جلوه لكــه زيبا ك
پخپل عشق كښ كه څوك بد را باندوائي — زه ګمان كړم چه همه څما ثنا ك
ملامت په عاشق ښائي دا دستور دي — چه روغ خلق په رنځور پور خندا ك
عاشقي او نام و ننګ دي سره لري — په روښانه ورځ به څرنګ څوك غلا ك

دا جواب رحمان هغه كا چه دولت وي
كه دلبــر د ديــدن مې پيا بي را ك

چه په زړه مي تور لحد شي د خپل خاك — بي مزد شي هم مي خوب هم مي خوراك
چه د خوب و د خوراك مزه شي ورکه — نــور لــه مرګَ برابر شي هغــه ږوالك
غلط دا دي چه څوك عمر ورته وائي — هغــه عمر چــه تيريږي په پخسالك
نن سپيره په خاورو ډكه خوله بهتريم — چه آخر مي دا خَوَراك او دا پوښاك
ځاي لري كه ږوندي ځان په خاورو خښ كړم — چه مي پس له مرګَ ځاي دي يو مغاك
ګويا شوي دي هغه چه شدني وي — زه پخــوا تر هــلاكت يم اوس هــلاك
زړه چه روغ وي ګريبان څيري كاوه نه شي — لــه ګريبانه معلوميږي د زړه چــاك
تن و ځاي و جامه پاك هله په كار دي — چه ورنبي شي د چا زړه له غير و پاك

ړي بويه چه دروڼ و بيرون يو وي | نه هغه چه بيرون زر وي دروڼ لاك
سړيَ غرض واړه سړي هوښ دي | كه په سركښ ئې طره وي كه مسواك
دنيا چاري همه واړه فاني دي | څوك يو دوي ورځي خوشحال وي څوك غمناك
ساعت كښې څوك خوشحال كا څوك ملال كا | دا خويونه قديمي دي د افلاك

چه څه كاند واړه خداي دي نور څوك نشته
رحمان څه دي څه ئې واك څه ئې ادراك

چه له نازه پوشيده لري چشمان خپل | څه به ويني مظلومانو مقتولان خپل
چه شكنجل را ته په قهر قهر كاند | دا لا وُكنړي په ما باندي احسان خپل
گفتكوي په اشارت كاند له نازه | كله اسم د چا آخلي په زبان خپل
په گريبان باند چه تك وهي غوټي | عاشق كښيباسي لاسونه په گريبان خپل
خريدار ئې له حيرتَ بي شعورَ شي | چه د حسن رنگ ځركند كا په دوكان خپل
چه خپل مخ په آئينه كښې ورځركند شي | خود په خپل سرفرو كاند په ځان خپل
چه ئې څوك و عاشقي وته هوس كا | گويا لوبي كا په دين و په ايمان خپل
هيڅ صرفه د چا په سرو په مال نه كا | ما ليدلي دي په خپل مطلوبان خپل
دا مقام دي د هغو رنگو عالمو | چه هيڅ نه ويني په سترگو سودُ زيان خپل
مجنون ملك د عاشقي هاله بيامونډ | چه په اور باند ئې وُسه خانومان خپل
آفرين د عاشقانو په همت شه | چه ورتيرتر سرو مال وي په جانان خپل

هيڅ د سترگو غړولو خوند ئې نه وي
چه رحمان په سترگو نه ويني ياران خپل

مه غوره باسه د ناهل په قيل و قال | په كار نه دي قيل و قال د بد سكال
يا به ذكر په دولت و په زينت كه | يا به فكر كا د مال و د منال
يا به هسي پوچ گوئي كاند اغازه | چه مضمون ئې نه مردار وي نه حلال
د دانا او د نادان صحبت دي هسي | لك كډ شي وبله لعل و كټي لال
لك لعل و كټي لال چه وبله كډ شي | يا صحبت دي د عيسي و د دجال

ښغه عمر چه تیریږي بي هم جنسه ترو به څه وي د دغه عمر احوال
د دنیا چار فاني دي مرد هغه دي چه خبر شي په حرام و په حلال
د باسیند لا څه مجال لري په تله کښ د دنیا د چارو هیڅ نه شته مجال
د دنیا چار په مثل خواب و خیال دي څوك به څه کا اعتماد په خواب و خیال
لك ملك مال پخوب کښ درځرکند شي څو چه ویښ شي نه د ملك وي نه د مال
لك زنګ چه د ابو په سر لیده شي که ئي واخلي هیڅ در نشي لك خیال
لك دود چه غرونه درځرکند شي تار په تار شي په یوه نري شمال
لك یخ چه د سرو په زور شي جمع هیڅ ئي نه وي د آفتاب په مخ مجال
اعتماد ئي په ښادي و په غم مه کړه نه ئي هجر په قرار دي نه وصال
کاهي کودي په مخ باند را کیښ شي کاهي را کیښ شي په مخ باند رویمال
خراب زړه مي بيي غواړي بلا دا شوه چه کمي را معلومیږي کال په کال
که وصال مي د یار بیاموند هاله څوان یم
کنړه اوس خو زړه رحمان یم د چلسال

بیا د نوي شراب څکلي دي پوهیږم په رخسار د ګل کړلي دي پوهیږم
که هزار څله لاس رنګ کړي په نکریزو تا څما په وینو ولـلـي دي پوهیږم
معرکه څما د مرګ نه دد نور څه ده رقیبان چه د بللي دي پوهیږم
چه رقیب او تا غوربونه وبله وروړه ما هغه ساعت ژړلي دي پوهیږم
څه حاجت دي چه دا خط په ملا لولم چه څما په باب د کښلي دي پوهیږم
نه خپل جور و جفا څه وائي و ماته همه واړه مي منلي دي پوهیږم
رقیبان چه د تیري په رحمان کاند
تا په خوا پور نیولي دي پوهیږم

چرته د یار شونډي چرته غم د دل و جان چرته کټي لعل او چرته لعل د بدخشان
پاك او منزه دي عشق د نفس له خاصیته چرته چاه د کیډي چرته چاه د زنخدان
لږ تفاوت نه دي د رندئي د زاهدئي چرته زړلي جونه چرته کنډي یتمان

وارہ بي وقوف دي چه څوك دين پدنیا پرولي چرته پنځه ورځ چرته عمر جاودان
څار شه د هوا د حرص خیال تر قناعتَ چرته ملك د مصر چرته ده غلامان
نه شي د ملنگو د خونیانو څبله کلي
چرته عزیز خان چرته ملنگ عبدالرحمان

خان سلطان د دي جهان
آخر درومي خوار حیران
د قضا په جیل ترلي
په مثال د بندیوان
شیرین څان ور څخه درومي
نه ئي زور رسي نه توان
که ښندي مال و ملك وارہ
هیڅ رنگ نه مومي امان
نه ئي مل نه ئي حامي وي
درد ئي وریشي په څان
درماندہ ور ته ؤ لار وي
وزیران و وکیلان
هیڅ دارو ئي کړلي نشي
کوز کوز گوري حکیمان
بادشاهي ئي پاتو کیږي
زړہ ئي چوي په ارمان
چه ئي روح له تنَ بیل شي
نور پري ژاړي فرزندان
یو ساعت ور باندي ژاړي
آخر صبر کا خواران
بیا ئي غسل لرہ واخلي
په تخته باند عریان
په جامو ئي هوسیږي
مرده شوي او غسالان
چه له قبرہ ئي بازگشت کا
مال ئي یوسي میراثیان
په مسند ئي دعوي کاند
هم دوستان هم دښمنان
سهیلي ئي تالا کاند
هغه خپل مصاحبان
نام نښان ئي هسي ورك شي
لك عین بي نښان
نه ئي ښبي پاتو کیږي
نه ئي اسم په زمان
دا دنیا آب روان ده
نه شي نقش په آب روان
که هزار آباداني کا
نهایت خانه ویران
لکه باد هسي پر تیر شي
هغه دور د دوران

دا بيان دور و دراز وه
کوتاه قطع کړ رحمان

هسي تيز دورمي روان
گويا برق دي دا جهان

د اسيا په څير گردش کا
په زمين باند آسمان

ککري دي د سړيو
چه اوړيږي تر.دا ميان

پيدا کيږي فنا کيږي
نه ئې سر شته نه سامان

نه ئې سر شته نه سامان
نه ئې حد شته نه پايان

څني دول وهي ښادي کا
څني وير کا د خپل ځان

څني شمع غند ژاړي
څني گل غند خندان

که ئې گوري يو بازار دي
که ئې گوري يو بيابان

که ئې گوري يو گلشن دي
که ئې گوري يو زندان

يوه هسي تماشا ده
چه ئې نه شي هيڅ بيان

کيفيت ئې موندہ نه شي
په دليل و په برهان

چه ئې کوم خوا رفتن دي
يا ئې چرته دي مکان

خداي عالم دي په دا علم
هيڅ خبر نه دي رحمان

ور ليه مي د فراق په ژړا سپين شو    دوباره د زړه په وينو کښي رنگين شو
ما و زه به لا ديدن کړم د يارانو    خبر نه وم چه ياران په کوچ تعين شو
چا پتنگ غوند ځان واچاوه و اورته    څوک ژوندي لکه بلبل په آتشين شو
مرده وته د مرگ خوارئي شوي پيښي    او ژوندي په زندگي کښي اندوهگين شو
قضا سپاهيانو هسي لاس په تاخت کړ    چه پايمال هزار خسرو هزار شيرين شو
چه قدم ئې په آسمان يېبود له نازه    هغه هسي ناز پرور زير زمين شو
چه مدام ئې په سنجاب د پاسه خوب کړ    اوس په زمکه بي بستره بي بالين شو

د رحمان خاطر به ولې پرېشان نه وي
چه پرېشان ورځخه جمع همنشين شو

که دلدار په دلداري ځما قدم ږدي ګويا هر قدم په لوري د حرم ږدي
ځاي لري که بې منتۀ بوسه را که کوم کريم په چا منتۀ د خپل کرم ږدي
معشوقه مشفقه بويه مهربانه نه قارون چه په ځان اسم د حاتم ږدي
خداي و ما وته ګلونه د جنت کړه که داغونه مي په زړه باند د غم ږدي
هسي پټ لرم دا زير رخسار له خلقه لك زر چه ځوك له خلقۀ پټ پنهم ږدي
هيڅ مانه دي ځوك له مستۀ سترګو نکا کوم يو مست دی چه قدم په لارِ سم ږدي
راحت بي زحمتۀ نه دي چا موندلي کوم طبيب په روغ صورت باند ملهم ږدي
زه هر ګوره تر خپل يار پورِ شرميږم برهمن چه سر په پښو د خپل صنم ږدي
و آسمان ته لاس د عقل نه رسيږي ګنړه عشق په عرش کرسي باند قدم ږدي
زه رحمن ئې تاج ګڼړم د يار له لاسۀ
که مي پښې په سر د جور و د ستم ږدي
په يوه زړه به وړي يا به موړ ئې په يوه زړه به ګرم يا به سوړ ئې
که ځواني له خدايه غواړي ځوان به وُ مري او که پس له ځوانئ پائې خو به زوړ ئې
بندګان خو کله جوړ کله نا جوړ وي څه خداي نه ئې چه به تل تتله جوړ ئې
عاشقي به دِ آسمان غند سر لوړ کا که مجنون غند هر ځو په صورت اوړ ئې
عبادت خو په ځواني کيږي رحمانۀ
په پيري کښې به څه زهد کړي چه بلوړ ئې
ته چه خپله بي عقلي هوښياري بولي کشکي بيامومي د غوښتو په نرخ شولي
عشق يو داد دي په عاشق باند له خدايۀ هسي نه دي چه ئې پيري يا ئې پرولي
زليخا غند به بله شيدا نه وي که د مصر مستوري وي واړه ټولي
هغه بحر څه په بحر حساب نه دي چه اوبه ئې خاك آلودي وي ختولي
له هغو سره به څه فکر د يار وي چه په غم وي د کاله يا د کهولي

عاشقي د خپل نغري په غاړه نه شي    څو په يار پسي وا نه خلي څولي
د وصال په نعمتونو غړه مشه    جدائي خلقي کړي په زړه زمولي
در گوهر په تله نه دي چا تللي
د رحمان شعر گوهر دي که ئې تولي

کشکي زه خاورې ايري د تا د در وي    چه قدم دِ هميشه څما په سر وي
خو يو څله څما و ستا وبلته مخ شوي    نور مي موخه ستا و غيشو ته تتر وي
تمام تن مي د زنجو په شان ووړ ووړ شوي    خو په ما د تورو سترگو يو نظر وي
په زيړ رنگ په سپين اوښيو به ما بيامومد    که د ترکو ملاقات په سيم و زر وي
ملامت به په ما څه لره وايه شه    که د تا د دلبرۍ څوک خبر وي
مرتبه که ستا د عشق کړم ور څرگنده    ملايک به واړهٔ وائي که بشر وي
تماشي به څما هاله در ښکاره شوي    که ته ما غند بيدل وي زه دلبر وي
په خونبار به څما سترگو غند نه وي    که په مخ ئې د تيرو تورو پرهر وي
يا نسيم د صبحدم يا عندليب شوي    چه د ستا په گلشنو څما گذر وي
ستا په درد کښي طبيب وائي و رحمان ته
لا به ښه وه که دِ حال تر دا بتر وي

مخ د يار شمس و قمر دري واړه يو دي    قد ئې سر و صنوبر دري واړه يو دي
حاجت نه لرم په شهد و په شکرو    لب د يار شهد و شکر دري واړه يو دي
که بي ياره په بستر د پاس پروت يم    نار و خار و دا بستر دري واړه يو دي
چه و در و ديوار ته ئې نظر کړم    باغ بوستانَ و دغه در دري واړه يو دي
چه غبار ئې د کوڅي را باند راشي    دا غبار مشک و عنبر دري واړه يو دي
خداي د يار له هجرَ هيڅوک خبر مه کړه    تاخت و قتل و دا خبر دري واړه يو دي
هغه دم چه سړي درومي له جهانَ    توري خاوري سيم و زر دري واړه يو دي
قلندر که په رښتيا قلندري کا    خان سلطان دا قلندر دري واړه يو دي
ورِدِ نه شي په پردي زمکه هيڅوک    مبصر و کور و کر دري واړه يو دي

چه دِ نه په کښي يو يار نه دِ آشنا وِي هغه ښهر بحر و بر دري واړه يو دي .
په دوکان د نابيناؤ جوهريانو خرمهره لعل و گوهر دري واړه يو دي
دا پيران دِ عار ځما له عشقَ نکا پاك عاشق پير و پدر دري واړه يو دي
په سبب د ظالمانو حاکمانو گور و اور و پيښور دري واړه يو دي
څه شوڅه شوکه ځان ستائي ، رحمان ته
بي هنر و گاو و خر دري واړه يو دی

يو يو داغ پر تتريښي د هر چا دي که بادشاه د ولايت دي که گدا دي
سيرابي په دا چشمه د جهان نشته تشنه لب ئې گوښي گوښي په غوغا دي
لږ راحت په ديرِ زحمت پسِ مونده شي د دي دهر خس حرام شه که ويړيا دي
د دنيا ښادي بي غمَ مونده نه شي لږ خيرات د شوم لهِ کوره په بلا دي
فراغت پر باند ولي حرام نه وي چه داخل په سراچه د دي دنيا دی
د مجنون د خال پوښتنه به څوك څه کا جهان واړه کور په کور مجنون ليلي دي
عشق يو هسي رنگ افسون په عالم پوکا چه عاشق په تورو سترگو نابينا دي
د هرچا بخره ئې ورکړه گوښي گوښي خپل نصيب د هر سړي جدا جدا دي
ورکړه راکړه همگي د بلِ په لاس ده دلته دخل نه ځما دي نه د ستا دي
په هر کار چه د صاحب د زړه رضا شي پر بنده که ناروا وِي هم روا دي
خاه نالخواه که ئې رضا وِي که ئې نوي د قسمت رسد رضا و نارضا دي
ځان ايمان سپارلاي بويه وهغه ته چه ئې حکم جاري شوي پر هرچا دي
د هرچا په لاس چه حکم حاکم ورکړ جهان واړه د هغه په مدعا دي
چه مولي ور سره مل نوي رحمانَ
که لښکري ورسره وِي يك تنها دي

سپين رخسار او مشکين خال دِ وبله ضم دِي يا محمود و اياز ناست سره همدم دِي
که دِ مخ په زلفو پټ دي باك ئې نشته د حيات اوبه هم پټي په تورتم دِي
ستا له زلفو له رخساره له سرو شنډو پيدا شوي شام شفق او صبحدم دِي



په ذهن کښي دِ غاښونه تجله کا — یا غوټۍ په غنچه کښي د شبنم دي
نه چه یو ځما زړه غوږ ستا په غمزه دي — چاړه غوښي لا قدیم سره په غم دي
بي ژړا و ځا ته نه ګوري سیاه چشم — د نرګسو غوړیده د جوي په نم دي
راحت نه دي ځا موندلي بي زحمتهٔ — ستا جفا و وفا دواړه مغتنم دي

ستا د حسن د تعریف له برکت
د رحمان د شعر کوکي په عالم دي

په نامه د هغه خدای مي دا بیان دي — چه یو نوم ئي په نومونو کښ سبحان دي
هغه کار چه و هرچا وته مشکل وي — هغه کار واړه و ده وته آسان دي
هم بادشاه د دي جملهٔ بادشاهانو — هم د هر یوه سلطان په سر سلطان دي
ځوك آفتاب شي په آسمان راخیژولي — ده آفتاب را خیژولي په آسمان دي
ځوك د نمر په مخ حجاب شي غوړولي — ده پټ کړي نمر په ابر کښ نهان دي
ځوك په شپه کښ شي مهتاب پیدا کولي — ده په شپه کښ پیدا کړي مهتابان دي
ځوك یو څاڅکي پریستي شي له آسمانهٔ — نزول کړئ ده په موږ باند باران دی
ځوك شي روح ننه یستي په یوه ماشي — زنده کړي ده په روح تمام جهان دي
ځوك و سنګ شي رنګ د ګلو ورکولي — ده و سنګ ورکړي رنګ د ارغوان دي
ځوك له خاورو شي یو ګل زرغونولي — ده له خاورو زرغون کړي ګلستان دی
ځوك له اوړه شي اوبه پیدا کولي — ده له اوړه پیدا کړي زمستان دي
ځوك بنده لره ایمان شي ورکولي — ده ورکړي هر بنده لره ایمان دي
ځوك له زمکي و آسمان وته ختي شي — ده عیسي لره ورکړي دا مکان دي
ځوك له خدایهٔ سره خبري شي کولي — ده موسي مشرف کړي په دا شان دي
ځوك یښووي په توسن د هوا زین شي — یښي ده په هوا تخت د سلیمان دي
ځوك په سپینهٔ ږیره پائي تر قیامتهٔ — ده په خضر باند کړي دا احسان دي
ځوك له څاڅکي شي ګوهر پیدا کولي — پیدا کړي ده له څاڅکي در مرجان دي
ځوك شي رزق و هر مخلوق ته رسولي — دی د هر یوه مخلوق روزي رسان دي

چه په ده شي هغه کار له هیچا نشي — هر توانا د ده تر توان پوري نا توان دي
په اوبو کښې ده د کاڼي کوټه بنا کړه — ده ورکړي په کښې اور لره امان دي
په سجده ئې زمکې سردي لګولي — هم ئې زوړند په رکوع سره آسمان دي
هره ونه پر قیام ور ته ؤ لاړه — هر ګیاه ئې په تسبیح سره زبان دي
همه واړه په تسبیح د ده مشغول دي — که سړي دي که پیري دي که حیوان دي
مخلوقاتو هسي نه دي پیژاندلي — لك ده څخه چه قدر د خپل ځان دي
حد پایان ئې هیڅ سړي موندلي ندي — معرفت ئې هسي بحر بي پایان دي
نه هیڅوك د ده په خیر د ده پشان دي — او نه دي د چا په خیر د چا پشان دي
نه ئې زیان نه ئې نقصان نه ئې زوال شته — او بي زیانَ بي زوالَ بي نقصان دي
نه ئې مثل نه ئې مثال نه ئې مکانَ شته — دي بي مثلَ بي مثالَ بي مکان دي
پاك ئې ؤ ګڼړه بي شکهَ بي ګمانَ — له هغو چه د چا شك د چا ګمان دي
نه ئې څوك په سترګو ویني نه لیده شي — او بي چونَ بي چګونَ نمایان دي
که څوك وائي لیده نه شي لیده نشي — او که وائي و هرچا وته عیان دي
هر ماهي ئې په دریاب کښې حمد وائي — هر مرغه ئې په چمن کښې ثنا خوان دي
حق په حق ثنا هیچا ئې کړي نه ده — نه له هیچا واقع شوي دا بیان دي
منزه دی له جملهٔ جهتونو — او بیا هر جهت په ده باند ودان دي

له هزارو صفتونو باور مه کړه
چه ئې کړي نیم صفت عبدالرحمان دي

۳۴۹۲۰۹

## خوشحال خان ختك

چه عجب رنګ دلخواه دي دا صهبا | چه ساقي ئي را کوي په مرحب
د غنچي خندا محال وه په چمن کښي | که نسیم پرِ ګذر نه کړي هر صب
مصلحت ئي د بلبل په کار کښي دا وه | چه صبا کړي د غنچي قمیص قب
د بلبل قدر هم زده کړه اي ګله | که هرخوئي په دا خپل حسن زیب
چه علاج ئي وابسته پخپل مطلوب وي | د عاشق له رنځه څه زده اط

بي د یار د رنړا مخه ګمان مه کړه
چه خوشحال به په بل مخ شي شکیبا

نو بهار شه بیا نرګس په باغ مستي کا | چه صبا مي په سنبل درازدستي ک
په پنځه ورځي کښي ګل د باغ تازه وي | په شپږمه ورځ فنا خپله هستي ک
مبتلا بلبل سر د ګل په پښو ږدي | لکه برهمن د بت بت پرستي ک
تواضع زده کړه په تن له سروي ونې | چه په هسي بلندي کښ دا پستي ک

کرلاڼي څه نور شراب نوشلي نه دي
دا مستي واړه په جام الستي کا

یارمي مرور دي که څوک وي چه ئي پخولا کا | ژر پاڅه ریبار څما زړه پسي بلا
تل به د جفا په دریابونو کښي غوټي خوري | څوک چه زړه د دور په دلبرو مبتلا
څه ګنده عالم دي څه ئي دود دي څه ئي رسم | وري په څاي پریږدي و مړو وته صلا
هیڅ سزا ئي نه شي بانډ لاس د ما د زړه شوي | تورزلفِ ستا دي چه دایم د زړونو غلا
ستا د تورو زلفو ظالمي څه پټه نه ده | مست چه زوروروي ظالمي په برملا

ه چه عاشقي کړي قبلوه په عاشقي کښي تل په عاشقانو باند خلق الا الا کا
ستا خونخوارُ زلفُ زه تنها نتلي نه یم ثو به د ما خوار غند لا نور هسي جلا کا

راشه که ئي ګوري دا په خپل جمال مغروره
ثو رنګ نازونه په خوشحال خلا ملا کا

رنګ زیب څه آرایش د تخت و تاج کا تخت و تاج به ئي مرګي تاخت و تاراج کا
جهان کښي به ئي پاتو ښه بد نوم شي ده زده چارِ د کسري که د حجاج کا
غمجن په عید په جشن خبر نه شوم که درست خلق د دهلي ابتهاج کا
به سترګو لره لاړي اور د زړه شه ثوك به څه رنګ ژوندون په دا مزاج کا
ه په رګ مي ګتي کیږدي رنګ ئي زیړ شي طبیبان مي به په ثو د رنځ علاج کا
دائي د ما په زړه کا هسي چارِ لکه باز ئي په تارو یا په دراج کا
ړه مَین چه په هوادُ وبله بیل شي خداي ئي ښکله د تش سلام محتاج کا
ما اوښي د ګوګل په جوش پیدا شي لکه اور چه له کبابَ نم اخراج کا

هر ناوك چه د قضا له شست خیږي
زمانه د خوشحال زړه وته آماج کا

خپل خوي شي پجهان بد خواه د چا د خپل خوي وي نه چه وي تباه د چا
فلیل په یوه مېچ سره بد بوي شي بد دِ نه شي یو زمان همراه د چا
ري لال د بدخشان ګیا کیمیا ده چه ئي نه پیژني ته ګناه د چا
بادشاه ئي ستمګر شي خلق خوار شي خداي دِ نه کا ستمګر بادشاه د چا
که صل څله وفا کړم یار جفا کا بخت دِ نه شي په دنیا سیاه د چا
جمشید او سکندر فلك پرِ نه ښوي پرِ به نه ږدي همیشه کلاه د چا
کرم نه وي له خدایه فتح نه شته که افزون شي تر ملخ سپاه د چا

دا دنیا لکه لولئي ده خوشحالَ
که ئي ګوري ګاه د چا شي ګاه د چا

ب چه غم مه کړه ذور زه ښتا یم ته د ما زه خو دِ ژوندي کړم که دروغ کړي که رښتیا

ه بلا زیبا ئې بې نظیرهِ محبوبا ئې    که دا عیب دِ نه واي په زړه سخته ئې
کل جهان خوبا شي لور په لوري محبوبا شي    عجب لا که پیدا شي یوه تا غوند
هونبرهِ ډیر مقتولو ته لا هیڅ نه ئې ملوله    که صل خونونه وُ کا د جلاد نرو څه
ه ګل غوارم لهٔ تاِ نه ستا له باغ له بوستانه    که خس راِ عنایت کړي هم په ګل نیولي
ِ زه بنده زنده یم د هغو زلفو بنده یم    چه تل ئې صل صل زړونه په هرتاروي
لوي دي که هلك دي وارهِ ستا په لورِ ورك دي    په ښهر کښي څوك نه شته چه مَین نه دي
سروي ونه ګورهِ په زمان شي نا منظوره    چه و خوځي په باغ کښي ته په دا قد

نسیه جنت ښادي ده د زاهد و د ملا
په لاس جنت موندلي نن خوشحال دي ستا لقا

بیا رباب د مغني ښه سرایت کا    په ویل کښي نوي نوي حکایت کا
شیخ وکنج د صومعي زه به ګلګشت کړم    د بهار ګلونه ما ته هدایت کا
ګدایانو لرهِ غم د ګیډي ډیر دي    بادشاهان دِ غم د مُلك و ولایت کا
دا د ما د بخت اثر نه دي نور څه دي    له رقیب چه شکوه په دا غایت کا
د وفا مهر و کرم به ئې لا څه وِي    په جفا کښي چه دا هونبرهِ عنایت کا
په دا ښهر کښي څرګند شراب خرڅیږي    محتسب د باده نوشو رعایت کا
په مانړيِ دِ هم خوشحال شم هم دلګیر شم    لکه څوك چه له چا شکرو شکایت کا

که د ښکلیو د دیدن مینه ګناه ده
سکه خوشحال ختك درست عمر جنایت کا

چه د پلار سرهِ دروغ نفاق خلاف کا    له نور چا سره به څه رنګك زړهِ صاف کا
ګورهِ بیا ئې کوم نفاق دروغ په زړهِ وِي    منافق په خپل ګناه چه اعتراف کا
نه به زهِ د ناخلف ګناه معاف کړم    نه به خداي د عزازیل ګناه معاف کا
دا وارهِ غرونه هیڅ نه دي لا راضي یم    که په میان کښي مِ خداي غرد کوهِ قاف کا
حال د خپل زوي وخپل پلاروته معلوم دي    څوك به څه لرهِ د عاق را ته اوصاف کا
نه به ده غند دروغ دروغژن وائې    نه به ده غند ترټي مکر و ګذاف کا

هم هزار رنګ په خوله د اخلاق لاف کا    هم هزار رنګ دروغ ګذاف په زړه کښي
دا په دا چه دي د ما سره مصاف کا    چه مي هسي تربيت د نا خلف کړ
پس له مرګه دِ ځما د ګور طواف کا    په ژوندون ئي ديدن مه وينم هاله هم
په ژوندون به ئي ارمان وُ وزي له دلَ
زمانه که له خوشحال سره انصاف کا

که يو ځله مخ ښکاره کا تر نقاب    د ښايست نامه به واخلي له آفتاب
لاله ګل به ئي له مخه خوبي وام کا    په زلفينو به سنبل کاند بي تاب
خلق څه لره تهمت په زمانه ږدي    په چشمانو ئي دنيا کړله خراب
د خمار په علامت ئي سترګي سري دي    که چا بي وقت بيداره کړه له خواب
د خاطر ويني نوشي په ځاي د مَيو    بيا ئي نقل هم د زړونو له کباب
خاصه مرګ د معشوقي د مقتولانو    چه جنت لره به درومي بي حساب
ځما زړه قبله نماي شي نه جاروزي    وبل لور ته ستا د وروځيو له محراب
په وعده ئي زړه خوشحال مه کړه خوشحال
د وفا طمع ځوك نـه کا لـه حباب

ئي خوب په پالنګ نه وه بي د پرو له بالښت    راشه ګوره ننداره کړه تر سر لاند اومه خښ
فاني دنيا ئي بولي بود ئي نشته ناهِني ده    ځکه دا ده اي نادانه د هوښيار تر فهم زې
نيا خارښتي بزه ده په ساتل ئي څه مزه ده    شپون ئي وُشړي لبزونه چه ئي پوه شي له خارښ
هم تول ځي هم دلئي دا طوفان دي که ږلي    چه ئي وړي مونده نه شي هي توبه لهسي کښ
دي په دا چشمانُ درني ميني د شاهانو    يک باره ورځني وُلاړل چه ئي درسته وُ نه غوښ
ونو پيدا غول کړه د جهان ګنجونه تول کړه    نه به ته نه به ستا پشت وي بيا سنجرشه يوځوپښ
يلاب په مخ دِ کور دي دا دني فکر دِ نور دي    چا به نه کړه هورته خونه چه به دا په سيلاب رغښ
يا کښي که شداد شي بيا به ته په بلا ياد شي    که بهښت په دنيا روغ کړي څه دِ سود له دي بهښ
يوورِله له ځانه دا فاني دنيا اي ځوأنه    چه ئي تار په تار خوره کړه نه هغو چه ئي وُ نغښ
يدلي دي کارونه طور طور رفتارونه    په ورتله په ستغ ختنه په تله کنډی غند رغښ

که کم عقل که کانا ئې که هوښيار ئې که دانا ئې

د ميرباز غند ور زغله د خوشحال غند تر تهت

تورنرگس شهلا دي اي زيبا نگارِ مستِ
تورِ سترگِ ستا دي اي زيبا نگارِ مستِ

شونډِ دِ صهبا دي اي زيبا نگارِ مستِ
تا چه بوسه را کړه زه پرېي حساب مست شوم

گل د لاله دا دي اي زيبا نگارِ مستِ
ما چه ستا دا ښه کنبلي بارخو په سترگو ځير کړ

واړه بي وفا دي اي زيبا نگارِ مستِ
هر چه ستا له ظلم و نور چا وته فرياد کا

ځوك چه بي له تا دي اي زيبا نگارِ مستِ
خوب کاند بي غم يا ئې چرِ قراري شته

ديرپه تا شيدا دي اي زيبا نگارِ مستِ
خوله به دِ آخلي چه پرِ ستا د خاطر مينه

ستا نه دي د چا دي اي زيبا نگارِ مستِ
چارِ په ما وُ کړي وائې چارِ ځما نه دي

تا وِ اي خوشحالً نورِ لا تر ما زيبا شته

ځوک تر تا زيبا دي ئي زيبا نگارِ مستِ

لايزال مستي به نه درومي له مست
د شرابو مستي ژر شي نيست و هست

د رندئِ کار به نه پرېږدم له دست.
چه مِ نوم په جهان لاړشه د رندئِ

د آزادو آزادي ده له الست
که بادشاه ئې په زندان کا غم ئې نه وي

چه خبر شوم د وگړي له بر بست
نه ياري شته نه خپلوي شته غولول دي

تل په شپه پسي را درومي روڅ پيوست
د ښادئِ پاميد اوس پغم کښي خوښ يم

غواصانِ په کښي غوتي وهي په مرست
د مقصودِ گوهر پلوي درياب کښي پريوت

هغه کب چه ويره وُ ويني له شست
په ادراك له قعر نه گوري ساحل ته

چه ځپه ئې کله لوړه وي کله پست
د عاشق د خاطر خيال لکه درياب دي

د خوشحال له زړه د يار محبت نه ځي.

لکه مينه د خپل بت له بت پرست

ساقيا آتش مزاج
له صفا مينا زجاج

د شرابو پياله را کړه
د همه زحمت علاج

نه يوه پياله د ميو
نه د درست جهان خراج

زه او مي اي محتسب
که مي خونه شي تاراج

در گدای د میکده شه — که شاهي غواړي له تاج
د رندانو بازار تود دي — د شرابو له رواج
صومعه ته تله له دیره — یاوه کار دي بي منهاج
د ساقي پیاله را واخله — په کښي ډیر دي ابتهاج
ساقي هر کله دِ وینم — مه جبین مخ سراج

د بلورو پیاله پوره
د خوشحال د احتیاج

خداي را کړه پغیر کښي د ریبار منت را باند — سپینه خوله سري شونډي توري زلفي آویزاند
بار را سره یار دي د هر غم مي غمگسار دي — غم اندوه مي نشته چه رقیب را څي څه کاند
پریږده چه پر سوځي ستا د مخ بلا آخلي — عشق دِ لکه اور دي عاشقان دي لکه سپاند
دا څه بارخونه دي نه پریشاني توري زلفي — پروت دي په گلونو د سنبل د پاني تاند
ره ور پسي درومم د یوه نظر په طمع — بیارته نظر نه کا هسي درومي مخ په وړاند

بخت نه دي نور څه دي ته دا هونبره ډیره مینه
ژاړي رخه کړوني چه خوشحال ختک ته خاند

زوړ سړي چه د ځوانۍ هوس کاند — ور ته وایه چه دا څه پرِ کیږه خاند
چه پکال کښي ئې زړتوب وي هم ځواني وي — د سړیو تر کار ښه دي کار د سپاند
کله هسي په ځوان مورشي چه ئې نه خوري — کله ځوان ته ستړکي آړوي نغلاند
په نیتونو په صوتونو په لاسونو — خلقي دي سره یو تر بله هړاند
اوس په سپینه ږیره څه له مرگ ترس کړم — یاران توري ږیري لاړل تر ما وړاند
چه د مزکي مخ ئې لاند وه تر حکم — راشه وُ گوره هغه تر مزکي لاند
دا عالم ریگ روان دي که ئې گوري — خو هم هسي سره آوري لاند باند

د قضا تنور ما وُ لیده په سترگو
ما خوشحال چه په کښي سیځي وچ تاند

دا چه وائي چه ډیر مهر په فلاني کړِ — په یاري دِ رضا نه ده بهاني کړِ

٤١٥
٥٥٥

## خوشحال خان خټک

ستا وصال په دعا غواړم نه ئې مومم    ما په ډیر ور تله راتله ستړي ستاني کړ
زه د ستا په کوي کښي و مرم شانه سازه    ګند هد مي تورو زلفو ته شاني کړ
زړه مي ستا د تیر تر نخښه دي قتال    پر به کله جوړ د غشیو پرخاني کړ
چه جمال و ته دِ ګورم حیرانیږم    خداي په ما باند یوسف د زماني کړ
سحر ګر په سحر توري اوبه پرن کا    تا څما اوښي په مخ داني داني کړ
زه چه شونډي ستا په شونډ باند کیږدم    وایم نوشي مي د مَیو پیماني کړ
د ما زړه لکه مزري وه خاوند خداي    ستا د سترګو و هوسیو ته ژاني کړ

د خوشحال په دود به ستا په در پراته وي
چه په پښو ئې ستا د زلفو زولاني کړ

مخ ئې فکر د نسرین را څخه یوور    خط ئې خیال د مشك چین را څخه یوور
د ترسا زلفي زنار شوِ را تر غاړه    شکر شکر چه ئې دین را څخه یوور
چه دعا څما د صبر کا وګړي    عشق د دي دعا آمین را څخه یوور
بي د یار د شونډو نوم چه یادوم ئې    میني نور ذکر تلقین را څخه یوور
هغه ورځ مي زړه له خپله څان مور شه    چه له لاس دل سنګین را څخه یوور
درسته شپه ژړا ناله آه و فریاد کړم    بیا ئې خوب په څه آئین را څخه یوور
دواړه سترګي ئې شاهین شهپر ئې زلفي    څما د زړه کوتر شاهین را څخه یوور
په راتله ئې درست آرام را لره راوړ    او په تله ئې درست تسکین را څخه یوور
د چمن ګلونه کوز ګوري دا وائي    چه دلبري هر تحسین را څخه یوور

ما و زه به ئې لا فکر د علاج کړم
ولي خوار خوشحال زړه خورین را څخه یوور

د دولت لمن نیوه نه شي په زور    روند که سترګي په سرمه کا لا پیغور
دولت څه دي په مثال ښایسته ناوي    د نا مرد کره ئې عمر دي په اور
د دولت په آس دِ هر ناسپور سپور نه شي    که سواري ور باند کاند خو شاه سور
د ګنده تټوي بد تتو پیدا شي    ښه آسونه د میدان راوري ښه هور

چه په کور کښي مي اول تتوي راغلي — د ما بخت وه لا اول له څایه تور
تتوګي نازکي دي مخ ئې ورك شه — همیشه کا په پایګاه کښي شر و شور
نه یو ښه لایق فرزند د پلار په خونه — نه د سرو د سپینو ګنج د ده په کور
ربَ دیر اولاد دِ را کړ منت داریم — د خوبئې رغ ئې بیائي پـه هر ښور
چه په ورونو کښي نفاق کا نا لایق دي — یا ئې ښه کړي یا ئې مه کړي زده څه نور

د خوشحال په دعا غوږ و سترګي ور کړه
که بهرام عابد دي دواړه کر و کور

وقت د نو بهار دي زه جدا له خپله یاره — دریغ دریغ چه بي یار څي بهار
ژاړي غاړي غرونه په احوال د عاشقانو — سیل د واوره نه دي چه را درومي له کهسار
اور د خوړو زړو دي چه د غره په ونو بل شه — شني د دوزئې خیژي له نښترَ له چنار
غواړي چه احوال د فراق جنو در معلوم شي — ګوره هغه زانړي چه جدا شي له قطار
داسي معلومیږي چه جهان د ماتم څاي دي — شني جامي آغستي دي طوطیانو له چغار
نوري ناري نشته خو ناري د بیلتانه دي — راشه که ئې آروي د رباب له هره تار
رنځ مي نه کمیږي په زمان زمان زیاتیږي — ژر راځه طبیب که نه مرم د خداي د پار
مرګ د رقیبانو بل ژوندون د حبیبانو — خداي ږو پهنګام د وصل کیږي دا دوه کار
څه شه که لا دم وهي په شمار دي د ژوندیو — رنځ چه لا دوا شي طمع پري کړه له بیمار
پاتو سري نه شول چه دا ګرزي دام و دد دي — څکه ویره نه شي د درد منو له آزار

هسي خوار و زار شوم زه خوشحال په عاشقي کښي
خپل دي که پردي دی را ته نه ګوري له عار

نه مي لاس رسي په یار — نه طاقت د انتظار
دا ستم په ما خپل یار کا — کـه ګردش د روزګار
په کښي ستا غمونه څاي دي — که یو زړه دي که هزار
تر ویښته ضعیف وجود مي — ستا د زلفو دي یاد ګار
غم د یار د بیلتانه دي — چه تر هرڅه دي دشوار

خپلي اوښي مي درياب شو … په کښي نه مومم کنار
چه مي تل په ديو زور … ستا په شونډو لرم کار
چه څوک سوځي هغه سوځي … هم پتنګ ګوره هم نار
څما زړه څه آسان نه دي … چه ئې وړي ١٠ ترس وار

د بوسي وعده دِ وُکړه
زه خوشحال لرم تلوار

چه په سپينه ږيره کا ځواني نګار … په خپل ځان باند به وُکا ځيني چار
که په خوله د زاړه يار تر سر جاريږي … په زړه نه دي ځوان هيڅ د زاړه يار
نيک و بد په دي جهان کښي پيدا کيږي … نيک و بد هم د زاړه نه دي ويزار
خو ښه ځوان د ځوان ښځي پغرض دي … که بادشاد دي د زاړه نه دي فرار
په کمذات په اصيل هيڅ نه دي راغلي … ښځي واړه د ښه کار دي طلبګار
زوړ دِ ځوانه ښځه نه کا که ئي کانده … فکر بويه چه له ښه ځايه وي باړ
له ښه ځايه له ښه کوره ستر پوښي … په حيا په شرم ننګ دي خبر دار
چه په پلار نيکه د ننګ و ناموس نه وي … هغه ښځي قباحت ته دي طيار

اوس پخپلو زړو خوښ اوسه خوشحال
د دِ دور ځوان مه کړه نا پکار

که په خوله را سره جنګ کا هغه يار … په زړه مهر رنګا رنګ کا هغه يار
چه له ما سره راځي غاړه غړي … چه مي لري له زړه زنګ کا هغه يار
هيڅ حاجت د توري نشته ماني بس دي … که مي مرګ و ته آهنګ کا هغه يار
چه مشال ئې د جمال را ته ښکاره کړ … بيا به ما باند پتنګ کا هغه يار
زه فقير يم دي بادشاد دي بانډ ښائي … که څما له ياري ننګ کا هغه يار
چه ملنګ وي مصلي غواړي خپل مخ ته … عاقبت مي به ملنګ کا هغه يار
له هر چا سره خندا په آرت زړه کا … خو په ما باند زړه تنګ کا هغه يار
مرصع پيزوان نور نه لري په پوزه … اکتفا په تور لونګ کا هغه يار

رقیبانو وته نرم شي تر موم
و خوشحال وته زړه سنګ کا هغه یار

لیوني لره به څه کړي نور تدبیر    لیوني لره زندان بویه زنځیر
د ما زړه ئي په حلقه د زلفو یوور    لکه لوي ماهي په شست د ماهي ګیر
که خوبي ده په جهان د ښو دیدن دي    نه خوبي د بادشاهئ د سریر
که یوسف ئي د کنعان له چاه وکیښ    په نیک بخت ستوري زوولي وه بشیر
د شکرو په دوکان هندو بچه دي    که تورخال دي ستا پسرو شونډو جاګیر
د بهار په وخت په بیشه د سراي ګرزه    نه په بیشه د کابل او د کشمیر
د لنډئ اوبه هغه ګڼړه خوشحال
چه یادیږي په جنت کښي جوي د شیر

خو شرابي یم شیخ څه را سره جنګ کړ    بخري ازلي دي کشکي ما د ځان په رنګ
وائي واعظه برکت شه ستا په ربه    ښه ئي په ویلو د دریاب اوبه که رنګ
ل و جنت ته چه په پوهه خبر نه وو    ولاړل و دوزخ ته چه ئي لاف د فرهنګ
د محمد د ابو جهل په کار نه شه    څوک به ئي صیقل کا چه ئي خداي آئیني زنګ
ني په خلوت کښي شیخ سود را ته وایه    ولي ښحپل ځان دا هسي آرت جهان تنګ
خو د زړه درد غوارم په هر یوه مذهب کښي    تا زده ستا خبرو چه نقلونه رنګا رنګ
ه مطربه د نو روز سرود آغاز کړه    ښي نغمي دل سوزي په رباب په نیو چنګ
لوري ته ګل دي شقایق نرګس سنبل دي    بي ګلذاره بد که و بل لوري ته آهنګ
ور پسي دیري توبي واخستي طلب کا    څنو مصلي د ملنګئ ور پسي لنګ
د د عمل تله درنه په قیامت شي    موم به رقیبانو په عاشق باند زړه سنګ
مرګ لره ئي واړه د دهلي لښکري راغلي
ته لا د خوشحال په مرګ ځان روغ نه ګڼړي ننګ کړ

واړګونه شو همګي د دنیا چار    چه لیدي مي هسي نه دي واړه لاړ
زوي پلار سره کارونه د غلیم کا    لونړه مور ته لکه بنځ دي طیار

پخپل کورکښي به دوه ورونه سرد نه وي    چه په زړوکښي فتني نه لري هزار
چوهړي پلاو شولي خوړي حلوا خوري    په سيد باند حلال دي مردار
باوري د بادشاهانو لکه چور شول    رهزنان ئي په دربار کا څني چار
بلبلان طوطيان حيران په بيابان ګرزي    په ګلذار باند قارګان کاند چغار
په وښو د عراقيانو رواك ژوندون دي    راتبونه وهي زوي د حمار
نادانان بي غمه خوب په فراغت کا    په هوښيارو باند راشي صل دشوار
په ښښتنو باند حکم کا مريونه    تر میرمنو نه کنيزي دي رويدار

په دوران د عالمګير بادشاه خوشحال
خانه زادي وارد بخري لري خوار

څو بيړئ په دا سيند کښي دوبي و لاړ    چه تخته مونده نه شي ګډ ئي غوار
فراق هر چرته لنبي دي لګيدلي    لکه لوند لرګي په اور يښي څو ژاړ
غم ښادي سرد ترلي دي له خدايه    هغه هونبرد به و ژاړي څو و ويار
چا ئي نوم را نه وا نه خست چه د چا دي    مناري مي ډيري و ليدي ولاړ
په هزار رنګ غمونه د جهان شته    په هزار رنګ ناري د اوريو خرار
لکه راي څما د زړه هغه لا نور دي    خلق څو خبري کاند غاړي غار
دا طومار څه هسي نه دي چه تمام شي    غورولي لمولي لولي نغار
دين دنيا لړه په کار خپله ګرده دد    لوند دي حلق د هر سړي په خپلي لاړ
چه بي غمه بي وباله ئي خوراك وي    د بادشاه تر خوانه به ګنم خنجار

غافلان په غور کانه دي نه ئي آروي
د خوشحال ختك د خولي خبري لوار

هر ساعت چه په چا څي هسي بي کار    تر هغه نه زړه لا ښه ګنم بيکار
رنځوران که کار و بار د دنيا نه کا    روغ سړي به ولي نه کا خپل روزګار
که هيڅ کار و بار دِ نه وي در ته وايم    هسي مه کښينه بي کار و نا پکار
په هرڅه چه غم غلط شي وارد ذوق دي    که په نرد که په شطرنج وي که په ښکار

سړي هرساعت هر وخت په بل بل حال شي همیشه په یوه حال دي کرد کار

ستا به نوم په جهان پاتو شي خوشحالَ

یوه لویه مشغولا ده ستا د کار

که مي نوم په ژبه نه آخلي هیچرِ په تش نوم به دِ هم سود کوم دلبر

د زاهد د سترګو آب هونبره په ځاي وي چه ئي سترګي په تا نه دي برابر

د ښادئِي اووي په زړو ږدي تل تر تله چه په زړه ئي ستا د غم ښیښي شي سر

زه به څه ځني مانه کړم یو زه نه یم په غمزه ئي خلقي کړلي دبر

د ښو سیوري ئي خار په ښو څرخیږي له حیا چه کوز کوز ګوري ناز پرور

شونډي ستا لکه نبات هسي خوږي دي تلخ ویل ځني نه ښائي لب شکر

وائي شته په چین ماچین کښ کښلي دیر خداي دِ نه کا چه تر تا به وي بهتر

بي خبر له ځانه دیر در ته پراته دي نه ئي هم په حال خبر شه بي خبر

د خطا د ملک نافي واړه خجل شي چه د تا زلفي ښکاره شي معنبر

که دِ چړِد آشنا په لور ګذر شي

د صبا باده ځما سلام پر ورِ

نه د ما د هنر شته څوک طلبګار نه ځما دي د دي ملک هنر په کار

په یوه ژبه ویل سره پښتو کړو ولي هیڅ رنګ وبله نه شوُ خبر دار

خپل ځانونَ هښیاران ګني نادان دي خداي ځما دِ هسي خلق کړِ روزګار

چه د سوات په ملک کښي ما ننداره وُ کړه بل اولس تر یوسف زیو نشته خوار

زور زیاتي خود پسندي خصلت د واړو هر سړي ئي طمع خواست و ته طیار

که په کور کښي مال دولت لري سترګ وري ملکان ئي لا تر نورو دي مردار

خربوزه له خربوزي نه رنګ آخلي عالمان شیخان ئي لا دي نا پکار

حقه چار به د غریب کاند ناحقه که په بدي رشوت مومي یو دینار

چه مي وُ لیده له نورو خبر نه یم دا خو بي غور و لکي دي حمار

دا په هر دیار کښي سیل هم بد نه دي چه خوشحال وته څرګند شوُ هر اسرار

424

چه د سوات و سمې خاوري خوشحال بوي کړي
يو سړي به په کښي نه وي وفا دار

په هر لوري دي افغان د مرګ له لاسه    په هر ځاي په هر مکان د مرګ له لاسه
د آدم صورت يې مرګ لره پيدا کړ    خرابي شوه په جهان د مرګ له لاسه
همکي پيغمبران که اوليا وو    دوي په مزکه شول نهان د مرګ له لاسه
عاقبت به شي بي شکه بي ګمانه    دا ودان کورونه وران د مرګ له لاسه
راشه ته هم د توښي په سرانجام شه    کاروانونه شول روان د مرګ له لاسه ·

اي خوشحاله که په تن شاد جهان شي
هم به دروهي په ارمان د مرګ له لاسه

زه هم څړ فرزانه وم فرزانه يم لا تر اوسه    تل بيخود ديوانه وم ديوانه يم لا تر اوسه
جدائي نشته وصال دي ځني بعد وهم خيال دي    له هغه چه هم خانه وم هم خانه يم لا تر اوسه
چه راغلي پجهان يم خبر شوي پښپل ځان يم    د رازونو خزانه وم خزانه يم لا تر اوسه
په عالم څما خبري و شوي کاند نژدي لري    په وکړي افسانه وم افسانه يم لا تر اوسه
چه د مخ پلو يې وا شه يو مشال را ته نما شه    هغه دم پر پروانه وم پروانه يم لا تر اوسه
ناوکي يې د مژګان دي چه بلا څما د ځان دي    ور ته عمر نښانه وم نښانه يم لا تر اوسه
چه يې ځان سره آشنا کړم لهر چا يې شا پشا کړم    له عالمه بيګانه وم بيګانه يم لا تر اوسه
هغه بحر چه محيط دي په افراط په تفريط دي    د غه بحر دردانه وم دُردانه يم لا تر اوسه

هغه شان له خپله يارہ بي وکيله بي ريبارہ
زه خوشحال چه يګانه وم يګانه يم لا تر اوسه

په درست کلي کښي مي يار دي هغه کس    چه په درست تومن اوڅار دي هغه کس
که په شکل و شمايل سړي ليده شي    سر تر پايه پري وار دي هغه کس
څکه زه ور باندي هسي عندليب يم    چه په حسن يو ګلذار دي هغه کس
که هر څو را ته ښکنځل کا يا قهرېږي    په خوله واړه شکر بار دي هغه کس
که يې زلف که يې کاکل که يې ګيسو دي    همکي مشک تاتار دي هغه کس





چړنه چه په تولئ کښي ئ غلط کړم آهو چشم گل رخسار دي هغه کس
د جايفل په ځاي به سرور ته پيښکښ کړم که په سر مي مينه دار دي هغه کس
چه زه خوله ورځني غواړم نور ښکنځل کا بي حسابه ستمگار دي هغه کس
سر تر پايه زر زري جامي آغستي. سر تر پايه زر نگار دي هغه کس
زړکي څه لړه په خپل رفتار غړه ئ لا ترتا نه خوش رفتار دي هغه کس

چه صورت سيرت ئ دواړه سره جوړ دي
د خوشحال د زړه په کار دي هغه کس

په لحد کښي به هوا نه وي هوس در سره به خپل عمل درومي نور بس
بي طوطي نه قفس هيڅ نه دي باور کړه روح په مثل د طوطي دي تن قفس
فهم وُکړه چه ضايع درځنه نه شي لکه دُرِ بي بها دي دا نفس
چه دا دُرِ بي بها هسي تلف کا د چارپايو په شماره. دي هغه کس
د خانانو په خاکونو گذر وُکړه زرغونه ئ په خاکونو خار و خس
هرڅه شوي نه بدليږي دا په څه کړي هونبره ديري انديښني هونبره وسوس
نصيبه به له جهانه يو کفن وړي هغه هم اته يا نه گزه يا لس
دا به واړه له تا پاتو شي اي ځانه که ښي جونه که آسونه که اطلس

طياريږه وخت د کوچ راغي خوشحاله
په هر لوري ناري آروي د جرس

توراني خود جنجال دي د پرخاش دروغژن سوگند خواره بهتان تراش
ايراني د آشنائ د وفائ دي د خلقت د مروت دي د معاش
پښتانه د بد نيتي د خصومت دي په حيا په شجاعت وُکړه شاباش
که بلوڅ که هزاره واړه چرکين دي نه ئ دين نه ئ مذهب ستر ئ فاش
که هندي دي که سندي دي مخ ئ تور شه نه حيا نه ئ وفا نه نان و آش
کشميري که نر که ښځي واړه غيه د مردئ ور څخه نشته هيڅ قماش
د آدم له نسل نه دي گوره څه دي دواړه ورك شه يو ازبك بل قزلباش

لمغاني بنګښ سواتي تيراهي واړه سوت مطربو بيا به څه وي مهر باش
هر احوال ور ته ښکاره دي د وګړي
د خوشحال ختک په پوهه کړه شاباش

يار مي بيا د رقيب يار شه دريغ دريغ په خبرو د اغيار شه دريغ دريغ
يو څو ورځي ئي په زړه کښي مهر ځاي وه بيا بي مهر ستمګار شه دريغ دريغ
ښغه ګل چه مي ساته د زړه په وينو مل د هر خس و هر خار شه دريغ دريغ
و قصدمنو ته کاته څما په قصد کا د کشتن مي روادار شه دريغ دريغ
بي له تا مي د څګر ويني خوراك شو تير مي عمر په دا کار شه دريغ دريغ
غه بهار چه تل بلبلو پر بلغاك کړ د خزان له لاسه خوار شه دريغ دريغ
بېچاره خوشحال په طمع د وصال وه
د هجران په غم ګرفتار شه دريغ دريغ

را معلوم شه د اورنګ عدل و انصاف د ده ښه مسلماني ښه اعتکاف
سکه ورونه وار په وار په تيغ وژلي پلار په بند کښي آچولي په مصاف
که هزار ځله څوك سر وهي په مزکه يا په صوم تر شمځي ور ولي ناف
څو نيت د ښه عمل سره جوړ نه شي عبادت طاعت ئي واړه دي خلاف
چه د ژبي لار يود د زړه ئي بله په چاړه ئي شه څګر شکاف شکاف
مار په تن دپاسه ښه ښايسته روغ دي ولي ننه اندرون لري نا صاف
د مردانو کرده ډير ويل ئي لږ وي د نامردو عمل لږ وي ډير ئي لاف
که دلي د خوشحال لاس په ظالم نشته
د قيامت په ورځ ئي خداي مه کړه معاف

خر د سرو زرو د زين نه دي لايق نه څرڅي ور لره بويه موافق
بوالهوس چه عاشقي کا عاشق نه دي په خالي هوس ئي مه بوله عاشق
نفساني تاريکه شپه صادق هغه دي چه سحر غند سينه لري صادق
خو په علم په تلقين سره نوزنه شي چه راغلي له ازله دي فاسق



د سینا زوي له ځاي شیخ ملا وه آراسته نه شه په درس په خوانق
په ادب به د ادیب فایق تر چا شي چه له ځایه په فطرت نه وي فایق
صالحان له ظالمانو نه پیدا شي له زاهده نه پیدا شي غل سارق
د بد خوي دعوي علاج ملك الموت کا نه په ډیر علاج خبر حکیم حاذق
هغه باغ هغه باغبان هغه ئې ګل دي چه فرهاد باند بلبل وه یا وامق
دل سوخته عاشقان ډیر دي په جهان کښي څه یواځي یو مجنون نه وه عاشق
که د زاغ غنده ئې فهم وي خوشحاله
هیڅ استاد به شین طوطیا نه کړي ناطق

مرد هغه چه همت ناك برکت ناك د عالم سره خوږ په زیست و رواك
منځ ئې منځ قول ئې قول عهد ئې عهد نه دروغ نه ئې فریب نه تش ناپاك
لږ ګفتار ډیر ئې کردار په خاموشي کښي د غنچي غنده خوله پوره سینه چاك
چه خبري د پستئ د بلندئ شي په لوئ لکه آسمان په پستي خاك
په تمکین کښي لکه سرو په سحا کښي په هر لور څانګي ژنګوري لکه تاك
لکه ګل شګفته روي تازه په باغ کښي همیشه د ښو بلبلو پر بلغاك
چه دا هسي شن ویل کا زه حیران یم
چه خوشحال راوړ له کومه دا ادراك

په شیوه شیوه رفتار کاند غزال وائې ښي په مزکه نه کښیږدي له خیاله
و غمزي وته ئې حکم دي چه وژنه هم هغه چه مینه کا څما په خاله
د زړه حال ئې امانت په کښي لیده شي چه ئې تن په صافي صاف دي تر زلاله
نه دوو سترګو خبر ولخله چه مي وژني نور به څه پښتي څما د زړه له حاله
که شیرین آشنا وفا در سره نه کا
په جفا ئې هم خوشحال اوسه خوشحاله

په دا باغ کښي به دِ پاني نه وي ګله که خبر شي د خزان له تطاوله
دا څو ورځي غنیمت ګڼه په باغ کښي چه په تا باند سینه وهي بلبله
مرتبه د هغه باغ څه پاتو نه وي چه خالي وي د بلبلو له غلغله

و دغي ښيښي ته نه غړيږي سترګي — د ساقي څخه چه تښه شي له مل
په دا پول باند د خلق ګذر کوږ — څوک پریوزي څني پوري وزي تر بل
په درست عمر به ئي نه وُ وزي له یادو — چه لیدلي وي تارو د باز منګل
متدر به په هيڅ رنګ مبدل نه شي — که په ځان باند تل لولي څلور قل
عاشقان چه عاشقي کا غم به نه کا — د رقيبو د غمازو له چغل
څه کړم لاس و دست مي نشته قلندریم — کنږد ما به دنیا وُ بازدله کل
هسي یار لرم ښایست ئي تر دا قیاس کړه — چه د مشک بوي ئي هيڅ دي تر کاکل
په پالنګ به خوب په څوکاند بي غمَ — چه خبر وي د فلک له تزلزل
د دلبرو په ماڼري کښ هم مزه شته
بي چاره خوشحال ئي مري له تغافل

آشفته دِ د جمال یم — همیشه دِ په خیال یم
نورو مینو ته مي شا کړه — مَین ستا په زلفو خال یم
چه مي اوښي په ګریوان څي — دا په تا پسي بي حال یم
څاي مي ته ئي په خاطر کښي — ته ریحان ئي زه سفال یم
نور مي هر څه فرامو‌ش دي — آرزومن دِ د وصال یم
لا د مهر ویل پریږده
په ښکنځلو دِ خوشحال یم

له عقلَ له هنر که څوک وُ وائي لرم — چه بخت مي یاري نه کا دا و چا ته یادوم
په جهان کښي د وفا هنر کیمیا دي — زه ئي څه لرِ لهٔ چا طمع کوم
د وفا میوه د دهر په باغ نشته — بیهوده ئي هرد ونه لټوم
نه باران چه په دریاب باند وریږي — په باران به ئي زه څه حسابوم
ناداني مي غلبه په هوښیاري شوه — مرغلري په دریاب کښي تویوم
له قسمتَ به نه کم نه به افزون شي — غه روزي چه د ما نه ده نه ئي خورم
چه د ما له رزقَ زیات د ما څخه وي — امانت غنده ئي بل لره ساتم

کوم مکان د زماني له مکرَ خلاص دي    چه هغه لوري ته تیبته ځني کړم
که په تیبته خلاصیدي ځني به خلاص شوم    د قضا له لاسَ کوم لوري ته ځم
زمانه مي د فتنو په کانیو ولي    زه ابله د ښیښي سپر په مخ کښي وړم
چه په راغله ئي ښادي را سره نه وه    په هجران به ئي زړه څه زهیروم

چا ویل چه صبر نخښه د ظفر دي
زه خوشحال په صبر څکه زړه ترم

که ګذر په خیرآباد وُکړي نسیمَ    یا دِ ګښت وُشي د سراي د سیند په سیمَ
په بار بار څما سلام ور ته عرضه کړه    ور سره څما د لوریه څو تسلیمَ
آبا سیند وته ناره وُ کړه په زورَ شي    وُ لنډي ته وینا وُ وایه حلیمَ
ګندِ وي چه بیا مي ستاسي جام نصیب    په ګنګا جمنا به نه ووُ تر قدیمَ
که د هند له هوا زار کړم څو به زار کړم    د اوبو بلا ئي لا بده عظیمَ
که د نهر اوبه ځښي کلمي پرِ باسي    هم د هر کوهي اوبه نه دي بي بیمَ
چه سړي اوبه د غره نشته په هند کښي    ترِ توبه که واړه ډک دي له نعیمَ
تل به هیڅوک نا امید په جهان نه وي    په ګریابو کرم کیږي له کریمَ
د ویشتلي و صحت وته امید شي    د پرهار چه څه کمي وُ شي له ریمَ
خدایه زړه مي په وصال د هغه خوش کړه    دا چه اوس ور ځني لري دي دوه نیمَ
عاقلان به هیڅ انکار ور باند نه کا    هر افعال چه صادر کیږي له حکیمَ

همیشه به په هند نه اوسي خوشحالَ
عاقبت به عاصي وُ وزي له جحیمَ

به هغه وخت وي چه خپل یار لره ور دروم    وایم چه به زه باغ و بهار لره ور دروم
ي ئي ښکاره کړي مشک عنبرئي په ما توي کړه    اوس به له دي پس څه عطار لره ور دروم
داي پکور کښي را کړي هغه توري سترګي ترکي    اوس به ئي په مرسته څه فرخار لره ور دروم
مي په ښایست کښي لکه ګل د نو بهار دي    سود ئي د جمال کړم چه ګلذار لره ور دروم
د خوږو زړونو خوش خورم زړ وته آزار کا    غم اندوه مي دا دي چه خپل زار لره ور دروم

سر چرته چه خاروي هغه ځاي مومي ګلونه ځکه په دا طمع سر در خار لره ور درومم
کوم سحر ئې وکړ په ما خوار باند حیران یم مرګ وته مي ناست هغه خونخوار لره ور درومم
هم ئې په ما وکړل څو څو رنګ ستمونه بیا له نا چارئي ستمګار لره ور درومم

ښه شیرین یاران چه ما خوشحال لیدل په سترګو
اوس ئې په ژړا ژړا مزار لره ور درومم

مست یم مي پرست یم رندي کړم کړم کړم وارود محتسب باده خورم خرم خورم
نور شراب مي وارړه وعالم وته ښکنبلي لام و بي ئې مي دي پسي ګرم ګرم ګرم
مور به ښني نه شم زه د میو مستستي یم تل که هسي ډکي پیالي ښنبم ښنبم ښنبم
لار د محبت ده تل به روغ سلامت نه وم زه چه په دا هسي لار تلم تلم تلم
څه وائي وما ته حال د څه وه په هجران کښي نور خبردار نه وم په زړه سوم سوم سوم
خلق را ته وائي رنګ د بیا زیړ شه عاشق شوي شیخ منکري نه کړم خلق شوم شوم شوم

دود د عاشق دا دي چه په عشق کښي ملامت وړي
ځکه زه خوشحال ملامت وړم وړم وړم

په کاته شم و عالم و ته حیران چه د نفس د پاره څه کا دا سکان
هسي چاري ئې پیدا شي له وجود چه په فکر ذکر نه وي د شیطان
تل قرآن دوړاند یبښي قرآن لولي ولي شیخ عمل ئې نه وي په قرآن
په کوم لوري پسي ځم چرته ئې غواړم د کیمیا غند نایاب شول دانایان
ښه سړي لعل یاقوت دي موندل نه شي لکه نور کاني لړ نه دي نا کسان
د عفریت دي که د دیو دي که د دد دي د آدم له نسل نه ګنم افغان
که هر څو ورته د پند خبري وائې د پلار پند ئې هم ښه نه لګي په ځان
هره چار د پښتانه تر مغل ښه ده اتفاق ور ځخه نه شته ډیر ارمان
د بهلول او د شیر شاد خبري آروم چه په هند کښي پښتانه وو بادشاهان
شپږ اوه پیړئ هسي بادشاهي وه چه په دوي پوري درست خلق وه حیران
یا هغه پښتانه نور وو دا څه نور شول یا د خدای دي اوس دا هسي شان فرمان

که توفیق د اتفاق پښتانه مومي
زوړ خوشحال به دوباره شي په دا ځوان

خوړ ژوندون په سري ترینځ کاند بیلتون په سوزانو لنبو پاس کښیږدي لړمون
چه څه زور قوت د زړه وي په کوګل کښي وار په وار ئي تر دا سترګو کا بیرون
تر دا هسي عمر نه عمر بهتر دي چه تیریږي ورځو شپو په جګر خون
په جګر جګر مي ولي صرفه نه کا د غم لندي را ته وُ واهه زنګون
ځما زړه تومار د مهر د وفا دي ځیراوه شي چا ئي زده نه کړ مضمون
که کتان چه مهتاب ځیري کا ګانده شي سکه ځما د زړه به هم وُ شي ګندون
کشکي ځوك هسي پیدا شي زه راضي یم چه مي زړه د یار له لوریه کا راستون
په هجران کښي که امید د وصل نه وي د حیران عاشق به هم نه وه ژوندون
چه قدم په هغه لار کښیږدي سر دروي زه همیش په هغه هسي لار کړم یون
یو د بل په ځای کښیني د دنیا دود دي
زه خوشحال قایم مقام یم د مجنون

مي افریدي دي چه غم نه لري د دین ښه فکر ئي لړ دي ډیر و بدو وته شین
درویزه غند ایمان ښیم و دد ته دي د پیر روښان غند د کفر کا تلقین
سپیته کالونه په حساب لرم خپل عمر تور ویښته مي سپین شود لا مي زړه نه دي هیڅ سپین
هغه در د سرو یاقوتو په حقه کښي نه هغه نرګس دي نه د باغ هغه نسرین
غم خوب کړم په پاسته بالین سریښي پریواته په ګور کښي چه ځما وُ هم بالین
شوي بیړئ د فنا په آب سیند کښي ډیر په کښي لاهو شول چه ځما وُ هم نشین
غم پلو دي چه ځما په سترګو پریووت نه وینم په سترګو حقیقت واړه مبین
رنځ پټان کښي طبیبان پدا جهان کښي مرم دارو خپل نه کړم په دا هسي کار نفرین
وُ لاړ ځای ئي سقر دي مکر خدای پر کرم وُ کا
نفس و شیطان دواړه چه خوشحال لري قرین

څه بویه هوسناکه خنده رویه مهرجن پاکیزه په زیست روزګار کښي په ښه نوم باند مین

صحبت په رموز پوهه زړه ئي خلاص له مكر دروه    كم خوراكه خوش پوښاكه همیشه ناسته
وصال د یار خوشحاله یار ئي خوښ له قیل و قالَ    چه له یاره نه جدا شي هم غم جنه هم
نیكانو هم نشینه له بدانو په زړه خوړینه    له موروالي ئي توبه كا كه ئي مور وي درو
مسلمه په كار حاضره په ښخوالي بهادره    حق د چارِ په ځاي راوړي په ڼځور باند پ
وش صورته خوش سیرته خوش خِلقته خوش خُلقته    په طاعت په عبادت كښي د وفا په لار
ښیزه ئي د كور صحن نه په غولي كښي نور لحن    پرستاري تر خشنود شي د هر چا زړګي

كه دا هسي كس پیدا شي د خوشحال په لاسو راشي
هیڅ تقصیر به ئي وُ نه كا د ښادئ په پالنَ

ځو خبر په قباحت نه شي انسان    نیك و بد هوښیار نادان ګڼري یكسان
كه یو كس په زړ كښي بیا مومي هم ډیر دي    په هر لوري صد هزار دي ناكسان
هونبرهِ ترس ځما له خرس و خوګ نه شي    ځو په زړهِ یم له جاهل هراسان
دانایان په نا كامي كښي خوار حیران دي    كامراني د جهان ځوك كاند خسان
په خپل ښكار باند غوټي وهي بازونَ    په مرداره باند ګرزي كرګسان
تفاوت ئي په كرده په فعل ګورهِ    مچ مچي دي سره دوارهِ مګسان
چه په درست عمر كښي یو ځله تیرهِ شي    نور اصیله تورهِ نه غواړي پسان
چه هر دهور ئي و اودلو ته هوس كا    د زر دوزو هنر چري دي آسان

كه دِ زړه دي چه لذیذ شعر وُ وائي
د خوشحال غند پیدا كړه خپل لسان

ه هر ځو ښایسته ئي نه یوسف ئي د كنعان    كه هر ځو ډیر هوښیار ئي نه محي ئي د ل
ه هر ځو ډیر حشم لري بادشاه د مملكت ئي    په زړه كښي فكر وُ كړه څه بادشاه وه سل
و ښه كښلي مخونه ځو هوښیار ځو بادشاهان ووُ    چه راغله هسي لاړل اوس ئي نوم دي په
ر نوم دي پاتو كیږي نور به هیڅوك پاتو نه شي    په بد بدان یادیږي په نیكي یاد دي
ه نوم د حجاج آوري آوري نوم د نوشیروان    په عدل كافر ښه شه ظلم بد كړ مس
ه ښه كړی ساعت دا دي چه په شمار ئي د ژوندیو    نه سود نه به فایده وی كه په ګور كښي كړي

... سړي هغه دي چه د نفس په هوا درومي مومن سړي هغه دي چه تل غم کا د ایم...
... شك په دا کښي نشته چه په مرګ به واړه ومري شك په دا کښي کیږي څوك به مومي ګورس...
... به د هغه وي چه ایمان سره ئي مرګ وي ګور په عزت بیا مومي پسي لولي ق...

وخت د ځوانئي لاړ شه اوس پیري راغله خوشحالٙ
نور کاروانه پریږده خو د ګور کوه سامان

آدم خیلي آفریدئي دي سري و سپینِ په کښي شته دي ښایسته په رنګ رنګینِ
غټي سترګي لوي بانه فراخي وروځي شکر لبي ګل رخساري مه جبینِ
تنکه خوله لکه غنچه هموار غاښونٙ سر ئي ګرد په تورو زلفو عنبرینِ
په وجود کښي لکه ها له ویښتو خلاصي ښي کمکئي غندِ پنډئي پهن سرینِ
ترنځي ګیډي سینه وری ملا باریکي قد ئي سم لکه الف په تن سیمینِ
که د باز غندِ مي ګښت په غرونو کیږي ښکار مي هم شوي ښایسته زرکي ثمینِ
باز که چوز وي که کرچ طلب د ښکار کا لا تر چوز وي د کرچ غوتي مهینِ
یا اوبه د لنډي سیند یا د باړي دي چه په خوله مي تر شربت لګي شیرینِ
د ما تري غاښي نیغ درومي آسمان ته په خاته خاته ویلیږي بانـد سپینِ
آدم خیلو سره زه په تیراه راغلم نور رخصت ورکړي و خوږ په زړه خوږینِ

مینه واړه کار د اورلري خوشحالٙ
که لنبه ئي پټوي لوګي ئي وینِ

که دِ زړه څخو ترس داروي څه به ښه وو لږ دِ مهر په ما خواروي څه به ښه وو
زه چه ستا له غمٙ زارکړم ستا په درکښي که دِ غوږ څما په زاروي څه به ښه وو
چه په ما باند پیغورکا ستا په عشق کښي ستا له حسنٙ خبر داروي څه به ښه وو
هر چه نن د زهد لاف کا په جهان کښ په دیدن دِ پرهیز کاروي څه به ښه وو
پس له مرګٙ مي په هسي مکان ګورشوي چه پرِ تل د ګښلیو لاروي څه به ښه وو
ستا په کوي کښي ډیر کوته تازي پراته دي زه هم کډ د دوي په شماروي څه به ښه وو.

ستا په غم به په دا لړ عمر موړ نه شي
د خوشحال عمر بسیار وي څه به ښه وو

را ته دمه وایه په تا ړو | چه په تا نه ړو په چا ړو
ته څما د سترګو تور يُ | په دا تورو سترګو ستا ړو
مخ دِ ورځ زلفي دِ شپه دي | په صبا ړو په مسا ړو
په جهان کښي مي څان ته يُ | نه څه نور په تا جانا ړو
یاد مي ته يُ په خاطر کښي | هر زمان په خپل مولا ړو
ستا د ښښو خاوري طوطیا دي | څما ستا په خاكِ پا ړو
تمنا لرم ستا ډيره | په دا خپله تمنا ړو
تر خندا پوري دِ هيڅ دي | لال و در ستا په خندا ړو

یار خو ستا یم د چا نه یم
زه خوشحال ستا په لقا ړو

آفرین دِ په ول ول تورو سنبلو | چه يُ څاي د ما سره وُ نیو په ګلو
ما چه ستا د شونډو مئ سره مزه کړل | مستغني شوم د جهان له وياړه ملو
که په اصل پښتنه د کوهستان يُ | دا د ظلم خوي دِ زده کړ له مغلو
مګر مور دِ د خطا د ملك هوسي وه | چه د مشکو بوي دِ درومي له کاکلو
زه په هونبره تمنا کښي دا نه څه شي | چه ته هر کله په هونبره تغافلو
د هر ګل ثنا صفت کا په زر ژبه | په دا باغ کښي چه غوغا ده د بلبلو

د خوشحال په زړه يُ هسي چار وُ کړ
لکه باز چه زرکه یوسي په منګلو

د ښادمنو په خندا ړو | د غمجنو په ژړا ړو
د رندانو په رندئي | د شیخانو په تقوا ړو
د وصال په سل خوښئ | د هجران په زر بلا ړو
د بهار په ښو ګلونو | د بلبلو په نوا ړو

چه تر سروِ وني هيڅ دي ‎ ‎ په هغه قد و بالا ږو
چه مکجولي دي له نازه ‎ ‎ په هغو سترکو شهلا ږو
چه نرئي تر ويښته ده ‎ ‎ په هغه باريکه ملا ږو
چه عاشق ور پسي مرينه ‎ ‎ په هغه جمال زيبا ږو
چه راځي د يار له لوريه ‎ ‎ په هغه باد صبا ږو
چه پيغام راوړي د وصل ‎ ‎ د هغه قاصد په پا ږو
چه دويمَ په کښي نه شته ‎ ‎ د ريښتينو په ريښتيا ږو
په دا هونبرهِ سوګندونه ‎ ‎ صد هزار ځله بيا بيا ږو

چه تر ځان په تا مَين يم
زه خوشحال خټك په تا ږو

سپينه ږيره د مزدانو کډ خدائي ده ‎ ‎ د غاښونبو پريوتنه رسوائي ده
د سږي چه غاښ په ځاي وي ږيره سپينه ‎ ‎ په دا هيڅ زړوالي نه دي برنائي ده
د خضاب ځواني د چا ده د احمق ده ‎ ‎ تر دا کله ږيره ښه په ښه نائي ده
زور سړي دِ د زړوالي اندوه نه کا ‎ ‎ که په ځاي ئي د چشمانو بينائي ده
زاړه مرد لره ذيدن د دلبر څه دي ‎ ‎ په معني د زړه د خوړو مومیائي ده
شيخ به کله عاشقي له سه پريښوه ‎ ‎ لاس و دست ئي نه رسيږي پارسائي ده

که خوشحال په عمر ؤ لاړ تر اويه تير شه
لا په زړه کښي ئي د ښکليو آشنائي ده

شيرازي که ښه خوراك ؤه واروه تير شه ‎ ‎ ملوکي که ښه پوښاك ؤه واروه تير شه
که خپلوي د زن فرزند وه حال ئي دا دي ‎ ‎ که له خلقَ زيست و ژواك ؤه واروه تير شه
که منصب ؤه که خاني که سرداري وَه ‎ ‎ که په لاس مي ملك املاك ؤه واروه تير شه
فرش فروش نقش و نګار د محلونو ‎ ‎ که بسترمي عطر ناك ؤه واروه تير شه
چه له ښکاره به په خيال راتلم وکور ته ‎ ‎ سور به تل ځما فتراك ؤه واروه تير شه
خپل پردي نيکان بدان له هره لوريه ‎ ‎ په دربار مي په بلغاك ؤه واروه تير شه
تار په تار د اکوړ خيلو کډي ؤ لاړي ‎ ‎ په دا غږ مي ځان هلاك ؤه واروه تير شه

اوس ئې روح د ملنګي و د دوهان دي
د خوشحال چه سراي اوتاك وُه واروه تير شه

زلفي چه ول ول شي خو خپل يار لړه كنه
تورد چه تيريږي خو ګذار لړه كنه
ستركي چه پيدا شو خو ديدار لړه كنه
ولي را ته وائي چه په كښليو نظر مه كړه
هر سړي پيدا دي خپل خپل كار لړه كنه
شيخ دِ نمونځ روژه كا رند دِ دكي پيالي آخلي
غوارم دا دارو د زړه پرهار لړه كنه
تا وي چه د ما د خولي بوسه لكه دارو ده
زړه ځما پيدا دي تا خونخوار لړه كنه
ويني مي د زړه خوري مكر نور څه لړه نه دي
ته ور تلي ښځپله دي تور مار لړه كنه
څه ژړا فرياد كړي د شهي له تورو زلفو
ګل و لاله راوړه خپل رخسار لړه كنه
خود به ستا تر مخ پور ګياه غند څركندِ شي

مي شته چنګ و ني شته اوس خپل يار سره خوشحالَ
خپل بياض په لاس كښي څه ګلذار لړه كنه

نازو غمز وُكړه عقل و صبر مي صبا وړه
نن په ستركو وروځيو له ما خوار زهد و تقوي وړه
پاڅه شيوه وُكړه يو يو ځيز له هر هرچا وړه
شيخ ملا قاضي مفتي صوفي سره يو ځاي دي
يار كه ښايسته وي ته ئې هم جور و جفا وړه
جور د اغزي وړي چه و ګل وته هوس كا
پته په لستوني د شرابو دك مينا وړه
دور د اورنګ دي د ريا زاهدان ډير دي
ته چه عاشقي كړي د وګړي غوغا وړه
تل چه عاشقان دي پسي ډلي رقيبان دي
هر څه ستا په خوا دي هغه واړه ښځوا وړه
مال دي كه مي ملك دي څو لا مړ نه يم ژوندي يم
نورو لړه نور څه ته مي زړه په تنها وړه
ډيري دي نګاري ښايسته پري رخساري
وُ تبسته له وريو په پلو پته حلوا وړه
شونډي دِ حلوا دي عاشقان د حلوا وړي

تا ويل خوشحال يو كالي به له تا غوارم
زړه دي نور څه نه دي ښه دركړي و تا وړه

چه مي ځير كړ درست ځما د ژبي كار وُه
هر آفت چه په درست عمر را دو چار وُه
چه مي وُ ليده په چارو كښي تلوار وُه
چه وداني چاري وراني په ساعت كا
هم هغه را ته بلا شه چه مي يار وُه
د هر چا ياري مي وُ ليده په ستركو

نا همواري به هرگز ورپيبي نه شي ــ که په خپله انديښنه سړي هموار وُه
صبر ناکو سره جور فلك نه کا ــ د فلك جور له چا چه سبکسار وُه
په دا باغ کښ مي ډير گل تر نظر تير دي ــ د هر گل تر څنگ ما وُليده چه خار وُه
زړه چه طمع د وفا له بي وفا کړه ــ په خپل ځان باند پخپله ستمگار وُه
که هر څو باند مرهم ږدي نه رغيږي
د خوشحال په زړه يو څه د غم پرهار وُه
چه کټل خوړل بخښل کا ځوان هغه ــ چه تورِ لري د تورِ خان هغه
کان د لعل د ياقوت د گوهر څه دي ــ چه احسان ترِ پيدا کيږي کان هغه
چه ئي ته په گيډه وُ خوري حبطه شي ــ د مجلس سره چه خوري شي خوان هغه
که د مال دي که د ملك دي د ليځو ــ چه ئي توان د چا په کار شي توان هغه
په تمامه شپه و ورځ په مه و سال کښي ــ چه د خداي په ياد وُ دروسي آن هغه
چه دِ ځوك دوراند ورستوځي دا څه شي ــ په تنها وجود چه شان دي شان هغه
و نور چا وته وران مه وايه خوشحالَ
چه ئي قول و عهد وران شه وران هغه
نشته بانگك د مؤذن په درست تيراد ــ مگر واروي بانگك د چرگك په سحرگاد
که ورکزي دي سراسر واړه گمراه دي ــ آفريدي دي تر گمرادوُ لا گمراد
د اسلام ارکان احکام حلال حرام شته ــ آفريدي ورکزي نه دي پرِ آگاد
نه ئي نمونځ د جنازي نه ئي امام شته ــ نه زکوات نه سرسايه نه د زړه تراه
ښه هغه چه مستقيم په شريعت وي ــ بد هغه دي چه په شرع کښي تباد
د دنيا چارِ همه واړه فاني دي ــ که باقي دي څو يو نوم دي د الله
چه يك لحظه د دنيا په کار کښي غرق وي ــ له هغه غافلَ زويه نه آه آد
په اوبه سره گندگي له تنَ دروسي ــ په توبه په استغفار سره گناه
موحد د تصوف او ترسا يو دي ــ مسله د شريعت گني گناه
کله کله چري وُ وائي دا هونبره ــ څني څني لا اله الا الله



چه گناه همیشه کا توبه ئي نه وي
له هغه قومٔ خوشحال غواړي پناه

لور په لور مي په هر لور گريوان پاره شه — کور په کور مي د رندئي کار ښکاره شه
چه مي پټه په لستوني کښي پوښله — د هغي پيالي عالم په ننداره شه
دا څه زړه نه دي چه اوس مهر په ما کا — را ته نرم هغه سخت سنگ خاره شه
چه د عمر مايه وه تر واړو تير شوم — د خوښئ ملك ځما په اجاره شه
اوس به کوم ارمان کوم سوبه مي ؤ شوه — چه رقيب د يار له دره آواره شه
د هغه قدر لرم تر به جاريږم — چه په غښم کي چاره جوي د بيچاره شه
اوده بخت وته مي ډيري ناري ؤ کړي — ويښ له خوبه په ورستي نرئي ناره شه
جدائي ورځني مرگ دي سري ؤ مري — د بتانو وصل عمرِ دو باره شه

که خپل ځان هوښيار وي هوښيار به نه شي
اوس خوشحال د ليونيو په شماره شه

خپل قسمت راضي شه تل د بل قسمت مه غواړه — فراغت دِ مبارك شه كه دِ ؤ نيوي دا
ژوندون پيوند تړلي په يوه اومه سپنسي دي — د جهان غمونه پريږده نور به څه ژاړي ځان
خپل دي که پردي دي قلم را څکوه په واړو — دور د فساد شه ښخپل زوي ورور مه
ر چرته چه گرزم ځني هسي چارِ وينم — كار مدار په نن شه د صبا انديښنه
ره كوم يو باد دي چه په درست جهان را والوت — زړه په چا ښه نه شي لباسي شه خلق
ا وِکلي ميشت دي چه په کلي باند راغلم — تش کندر پراته دي خالي مينه ده ا
ر چرته چه گرزي په لا حول تر تيريږه — صل بلا په زړه کښي صل داني تسپي په
يره سودا ؤ شوه صل دعوي د سود په طمع — وخت د نماز ديگر شه وله دا دكان ؤ

تل وائي خوشحالٔ چه دنيا وته به شا کړم
لا خو دا دنيا ده مخا مخ در ته ولاړه

درخو خود په آدم خان باند شيدا وه — تر دا مينځ د ميروكي ژبه بلا وه
چه په مينځ کښي دلال نه وي وصال نه وي — په مجنون باند مينه که ليلا وه

په خپل يارپسي ژړا ننه په زړه کښي    د عالم سره څما په زور خندا وه
چه غنچه ئي شگفته کړه په چمن کښي    که دِ زده دا چارِ واړه د صبا وه
چه ئي گل د بهارستا و مخ ته وُنيو    ستا د مخ خوبي تر گلو لا زيبا وه
هونبرهِ رنځ محنت آفت څني پيدا شه    څو څما د خوار خاطر مينه په تاٗ وه
دا نن شپه چه په ما تيره شوه بي ياره    ته به وائي په دوزخ کښي مي ماوا وه
نن خپل بخت را سره درسته مخا مخ کړه    چه پرون راته يکلخته شا په شا وه
ما وِ زه يم چه پياله لرم په لاس کښي    ولي دا پياله په لاس کښي د هرچا وه

بس چه بيا ئي ستا جمال په نظر کښيوت
د خوشحال ختك د زړه څله هم دا وه

خدايَ را کړه و ما يار ښه    شکر لب و شيرين کار ښه
تر سنبلو ښي ئي زلفي    تر گـلـونو ئي رخسار ښه
توري نسترگي توري وروڅي    تور گيسو ئي تار په تار ښه
تنگه خوله ئي نيست و هسته    لکه خوله هسي گفتار ښه
لکه در هسي غـاښـونـه    لا تر درو سپين هموار ښه
تر ويښته ئي ملا باريکه    تن ئي لا ترسپين چوتار ښه
قد ئي ښه تر سروِ ونه    لکه قد هسي رفتار ښه
چه هر ځاي و ته ئي گورم    سر تر پايَ پري وار ښه
خدايَ ماتي هغه خولي کړه    چه به وائِي هندو بار ښه
هونبرهِ کلي دير ښهرونه    په کښي نشته يو نگار ښه
چه په کښي شيرين ياران دي    پيښـور تـر هـر ديـار ښه
په موسم د ښو گـلـونو    تر هرځه د ميري ښکار ښه
ښه په هند کښي چنبال گل دي    تر دا گل د وطن خار ښه

د سراي قدر نور چا نه زده
په خوشحال دي تر فرخار ښه

د سپي غل د دروغژن په خوله کښي تل کړه   په ربښتیا خبرو خوله د سړي کښل کړه
هر عمل چه سړي کا مضمر به نه شي   در ته چا وِ چه لوګي مه کړه اوربل کړه
که پوهیږي چه د بل جهان حساب شته   ته په دا جهان نظر په خپل عمل کړه
ستا د خولي چشمه حنظل ده هم عسل ده   و هر چا ته تویونه د عسل کړه
چه د دین د دنیا کار و تاته پیښ شي   د دنیا تر کارَ کار د دین اول کړه
چه د مشکو د نافي شمیم را خور شي   را څرګندي توري زلفي تور وربل کړه
ساقي وخت د نوبهار دي شراب راوړه   د شرابو سره نقل د خولي مل کړه
نن خلل د نیو مېَ مه کړه زاهدَ   چه موسم د بهار تیر شيَ بیا خلل کړه
چه یو دم دِ عشق له اوره خالي نه ده   خدایه څه دِ د عاشق سینه منقل کړه
ستا د مخ په دور زه جهان ګیر شاه یم   را ته کښینه کرشمي د نور محل کړه
ستا دا توري سترګي خود توري بلا دي   در ته چا وِ لا ئې توري په کجل کړه

که هزار ځله شیخي کوي خوشحالَ
چه ښه کښیلي در نیژدي شي نور ئې کښل کړه

که هوښیار دي که نادان که ساد که غله   هیڅوک نه وینم د خپلي چارِ مله
یو په غم شریك یار نه وینم په ملك کښي   خلق تشي تسلي کاند په خوله
د میړیو غندِ یون دي و دانو ته   چه وما و ته عالم کا تله را تله
چه امید د میړي نه وي و دانو ته   و هغه لوري ته نه کاند هیڅ تله

خپل ویشتلي غرڅه مه پریږده خوشحالَ
ځاي په ځاي ویني توي دي په پله

غم آخر شه د ښادۍ روزګار راغي   چه موسم شه د ګلونو ګلذار راغي
په تلوارئې تیاري د سیل کانړۍ   و بلبلو و ته وایه بهار راغي
په دا هسي خاصه وخت د ښو ګلونو   د مطرب د ساز آواز مي په کار راغي
دا ئې واړه له خزانَ نه فریاد شي   چه ګلونو ته طوطي په چغار راغي
د هجران مشقت ډیروُه خداي آسان کړ   بیا مي سخ دي چه عشرت د دیدار راغي

که په نورُ باند نورکله اختر دي    په ما دا زمان اختر شه چه یار راغي
لوَن لوَن کالي بیا پیري خواجه شة
چه خوشحال د یار دمخ په بازارراغي

ستا وصال لکه دریاب دي زه ماهي    په هجران دِ هر زمان دي خما حي
په ژړا مي ځني خواست د سپیني خولي کړ    په خندا ئي وي چه څه کا دا سړي
وِئي څوك ئي چه خما په کوڅه گرزي    ښه حاضر جواب مي ورکړ چه ستا سپي
هم په څو رنگه ناله هم په تن نال شوم    بیلتانه را باندې وُکړ کارد ني
د ځوانئي بهار هغه شه دریغه دریغه    دا بهار که همیشه په دنیا وي
گل سنبل نسرین نرگس لاله غوټئي    د مقدم سره دِ راوړ درست پسرلي
چه ئي وُ نسم په غیر کښي را ته کوري    لکه مست د مور په پیو کم کبلي
دا شیرین یاران به نه وینم چه وُ مرم    خدایَ ما په جهان تل لره ژوندي
غم خو ستا د رسوائي کړم نه د سرکړم    که مي دا اندیښنه نه وي تا کتي
هسي ستا د بیلتانه په آتش سیځم    لکه څوك په لنبه کښیږدي وچ لرگي
دیر صفت د شا پیریو آرویده شي    ولي ستا د مخ څوك نه وینم محي
پښایست کښي هیڅ لقب در باند نه شه    که دِ څخو د عاشق نمنځنه کړي
اورنگ زیب به د کابل د خلل غم کا    ساقي وخت د نو بهار دي راوړه مي
چه زړد سوي دِ د خوشحال په فریاد نه شي
په سینه کښي دِ سندان دي که زړگي

لاله گل ئي ترجمال پوري بد رنگ دي    د زلفینو ئي د چین د مشکو ننگ دي
توري وروځي ئي لندي باند ئي غشي    د عاشق ترزړه ئي تللي هر خدنگ دي
دواړه سترگي ئي په تن توري بلا شو    همیشه ئي د عاشق له دلَ جنگ دي
ته به وائي حبشي شکري پیري    هغه خال ئي چه د دووشونډوترځنگ دي
تجله ئي د جمال لکه مشعل شود    خوار عاشق په دا جمال باند پتنگ دي
چه له غوربِو ئي مقصود مومي لبنتِي دد    چه له پوزي ئي مراد مومي لونگ دي

په ښايست كښې ئې تقصير د صورت نه شته ځكه دا عيب لري چه په زړه سنګ دي
د هر چا په خپل غرض پسي كوښښ دي
د خوشحال ئې په جمال پسي آهنګ دي

په زړه سخت بې مهره يار ئې جفا كار ئې دل آزار ئې
كه هر څو په كوكو ژاړم ته لا خوښ ځما په كار ئې
تا ويشتلي يم فرياد كړم كه خبر په خپل ګذار ئې
زه مرهم كړم له تا طمع ته مي مالګه د پرهار ئې
زه به تل ژاړم و تا ته كه ته خوښ ځما په زار ئې
زړه دِ وُ سپاري و غم ته د هغو چه ته دلدار ئې
څوك به څه وائي و ما ته چه يو څه رنګه نګار ئې
چه بڅپله عاشق وژني هم ئې وير كړِ په چغار ئې
كوم ګناه دي عاشق كړي چه ئې خيره په ناتار ئې
كله درد كله دوا شي كله خار كله ګلذار ئې
په خوشحال دِ غم نازل كړ
چه اغيار سره كنار ئې

د دني دنيا دا هسي قرار داد دي چه ګهي ئې را نيول ګهي ئې داد دي
عاقبت به د دنيا په غم غمجن شي هغه زړه چه د دنيا په ښادي ښاد دي
د دو شش ناري وهي دو خال پريوزي دا دنيا په مثال نرد سري نراد دي
له دنيا نه هيچا كام موندلي نه دي كه شيرين وه كه خسرو وُه كه فرهاد دي
د دنيا مثال كه وُ كوري عاقلَ په حساب لكه اوبه يا لكه باد دي
نه اوبه په يوه ځاي كښې قراري كا نه د باد په يوه ځاي باند استاد دي
مبتلا ئي هميشه په زړه محزون دي طلب ګار ئي هر زمان په بلا ياد دي
تر وفا ئي د جفا خويونه ډير دي
ځكه هسي د خوشحال ځني فرياد دي

د عشق په گرانه لار کښ ډیر خطر دي    هر قدم چه په کښي آخلم دار د سر دي
که سینه مي سره چاك كړئ و به ويني    چه مي ستا له غمَ ويني درست جگر دي
ستا د مهر باران نه اوري چه شين شي    ما په زړه کرلي ستا د مینې کر دي
ستا په راز به ژبه هم نه کړم خبره    تل تر ژبې رسیدلي راز سمر دي
زه له عشقَ خبر نه یم چه عشق څه دي    هونبره آروم چه له حسنَ ئي اثر دي
چه ئي عشق تر سر کړئ هغه کم دي    په دا کار کښي لاف وهلي یوه هر دي
عاشقي لا زه ته نه وو چه پیدا وه    نه چه ما و تا که کړي دا هنر دي

د عشق غم له خلق پټ لره خوشحالَ
څه ئي پټ کړم چه جهان ځني خبر دي

غم ښادي چه په چا ډير شي    لکه ډير شي هسي تير شي
سر رشته ئي مونده نه شي    گونا گون د دور پېر شي
چه په خوا په خاطر نه وي    هسي چار په تا ډير شي
په هجران کښي غم د یار دي    چه همیش تر زړه چاپیر شي
هر چه و واته له سترگو    عاقبت له دلَ و هیر شي

چه به سحه په خوشحال کا
گنډ ژر د ده په خیر شي

که په حسن د کشمیر خوبان اوښار دي    یا د چین و د ماچین یا د تاتار دي
ښېښتني جونه چه ما په سترگو څیر کړي    هغه کل واړه خجل د دوي تر کار دي
په ښایست باند ئي ختمه دا وینا ده    چه په اصل د یعقوب قوم و تبار دي
هیڅ حاجت نه شته د مشکو د گلابو    په پښه وختَ نمانځه عطرِ عطار دي
که تیکه که کتماله که نور سنگار دي    دا همه تر تورو زلفو پوري خوار دي
که اوډنئي مقیش دوزي دي که سالو دي    دا همه واړه تر سپین پروني جلو دي
تر صورت ئي د سیرت خوبي افضل ده    تر ظاهر ئي د باطن خواره بسیار دي
کل روزگار ئي سر تر پایه پرده پوښ دي    نه گریوان تر نامه څیري په بازار دي

له حیا په پورته غت کتلي نه شي نه آموخته په ښکنځلو په پایزار دي
ما خوشحال له ډیرو لرِ دي څه ویلي
له دي حالَ ګوي مه ګوي ویل بي شمار دي

چه وربل دِ په سپین مخ آلفته کیږي په نماښام کښي رڼا ورځ نهفته کیږي
که د مخ ښایست ئي دا دي چه لیده شي لا به ما غند پرِ ډیر آشفته کیږي
په بنو ئي اوښي نه دي آویزاندي همګي در و ګوهر دي سفته کیږي
نوي رنګ نوي نکهت نوي ئي پاني په دا باغ کښي عجب ګل شګفته کیږي
په ژړا مي به پوهیږي خوب و نه کا هغه کس چه په ګیسو ئي خفته کیږي
د خوشحال د خولي خبري خوشي نه دي
دا همه له یوه حاله ګفته کیږي

بیهوده ئي د دستار په شملي خیال دي چه په وخت ئي د مردئي حال ابل حال دي
مرتبي د هر چا نه دي سرهِ سمي د خرهِ بار د فیل په شا باند مثقال دي
څوك جرعه د میو نه لري په جام کښي د چا جام په صافو میو مالا مال دي
دا ګلشن دِ همیشه تر و تازه وي چه ئي خیز د ښو ګلونو په هر کال دي
په خوږهِ میوه د وني قدر شناخت دي د سړي قدر د نیکو په خصال دي
په نا حق به ګرم مانه له هیچا نه کا د بدانو غلیم وارهِ خپل افعال دي
که جنت لرهِ څوك بیائي یا دوزخ ته بله نه وینم په مینځ کښي خپل اعمال دي
کشکي پاتو شي تر تلو دا و تا ته په دنیا دِ د هر چا سرهِ جنجال دي
چه د پلار او د نیکه هنر ئي نه وي هغه زوي پیدا شوي غیر سال دي
ته چه لافِ د مردانو د میدان کړي په میدان دِ کوم راوړي استقلال دي
د شهباز تر ځایه کله ماشي رسي که راوړي له ځایه پر و بال دي
که همه خلق ئي سر شي په غندنَ
بیچارهِ خوشحال په خپل هنر خوشحال دي

ره په یار مین یم بل به نه وي مین هسي    لکه زه پسي غمجن یم بل به نه وي غمجن هسي
ي وُ وژني پښپله بیا په ما باند ژړاکا    څه ښه یار دي ښه ئې مینه کشتن هسي شیون هسي
درست سره گلدار دي رنگارنگ لري گلونه    تفرج د بهار وُ کړه په کښي نشته گلشن هسي
داغدار غرقه په وینو لاله گل وته وُگوره    هیڅ شهید نه دي راوړي له ازلَ کفن هسي
زلفو ته ئې گوره ښایسته دواړه رخساره    د جهان په باغ کښي نشته سنبل هسي سمن هسي
گل پاني خط کړي لا به هم باند څرخیږي    دا نازک بدن چه ستا دي د چا نه دي بدن هسي
ه ئې ننداره کړم ورځو شپه پښپله خونه    خوار مجنون نه وه لیدلي پدرست عمر دیدن هسي
رسم یا ئې دود دي هم وفا د هندوگئي    چه له یاره سره کښیني څوک به وُکا سوختن هسي
وک تاب در پسي وُکا بسره تلک وهي لاسونه    دا ژوندون دي مردن نه دي که دِ وُشي مردن هسي
آرام مي بیاموند ستا پغولي کښي خوشحال    خوښ له بختً له قسمتً چه ئې راکړ وطن هسي

چه خوشحال خټک ئې وائي په پښتو ژبي خبري
په فارسي ژبه به نه وي که پوهیږي سخن هسي

دا سړي خو په ادب سره سړي دي    چه آداب ورځخه نه وي نورخاروي دي
چه وفا ورځخه نه وي سړي نشته    تر هغه نه په وفا کښي بهتر سپي دي
عادلان مي د جنت د گلدار گل دي    ستم کر مي د دوزخ د اور لرگي دي
سپي چه چا سره آشنا شي څه پرِ وُخوري    و هغه ته ئې طم نه وي چه ژوندي دي
د انصاف د څښتن غم د دوزخ نشته    د انصاف مي تر طاعتً لا پرخي دي
په ښه خوي د سړي قدر قیمت کیږي    په خصلت سړي یا دیو دي یا پیري دي
چه ئې علم هنر نه وي څني تبته    بي هنر سړي که وُگوري لا شي دي
چه په پند په نصیحت دِ بندي نه شه    نور زنجیر ور لره بویه که مزري دي
په روا په نا روا د ملحد څه دي    په مذهب د ملحدانو کوکري وري دي
د راحت په وخت د یار تجربه نه شي    چه محنت در سره واخلي یار دِ دي دي

هر زاهد چه زهد واخلي بي مرشدً
د خوشحال خټک په پوهه تش پلي دي

هغه څه دي روغ صورت دي — چه بهتر تر سلطنت دي
د دنیا دولت که ښه دي — تر دولت نه ښه عزت دي
چه ډیر ښه دی تر توفیره — یو عفت بل صداقت دي
چه سړي له غمً خلاص کا — هغه څه دي قناعت دي
په طاعت که ته لوئي کړي — حبطه هغه طاعت دي
چه فایده لري بي شمارً — هغه څه دي مصلحت دي
په منت چه ور کول کا — هغه کله سخاوت دي
چه دوزخ دي په دنیا کښي — د نادان سړي صحبت دي

خپل نیت ښه لره خوشحالً
که څه ښه دي خو ښه نیت دي

نن څما په خیلخانه کښي څونبره غم دي — چه حیران څموږ په کار پوري عالم دي
ناخلف زوي آغزي کړي خپل پلار ته — د خلف زوي ګلدار له عمرً سم دي
نا قابل فرزند دوزخ غند پیدا شي — ښه قابل د پلار په خونه کښي اِرم دي
ښه فرزند د پلار په خونه کښي څراغ شي — بد فرزند د پلار په خونه کښي تورتم دي
په لوي والي کښي ئي خوي د دام و دد شي — اوس د زوي خوبي هونبره ده چه کم دي
نا لایق زوي ننګ نام د بابا ګم کا — که ولاړ ئي د نیکئي د نام علم دي
د قابل سره به غم د نام و ننګ وي — نا قابل په غم نیولي د شکم دي

چه دا هسي رنګه سپي څني پیدا شول
لا په شک یم چه خوشحال کله آدم دي

...م قلندر شوم دا مي حال دا مي احوال دي — مات کچکول په لاس کښي بل مي ګند د دنیا مال دي
... وګړي ګوره په څو قلب کارونه کاندِ — واړه اقبال غواړي ولي لا بقا اقبال دي
... هغه جار شم چه ئي دا کړه ترخان جاره — جار تر ما هغه شه چه جار شوي تر مشقال دي
... په مینځ کښي نشته په خالي دوکان غوغا ده — ما چه فهم وُ کړ واړه وهم خواب و خیال دي

و په کور کښي ښځ کا بل په کور کښي نه کا فکر  در ورځ ماتم دي څلورم ورځ بل حال دی
ما خولاس په غور کړل څني تېښتم که خلاصیږم  خلق پر خواریږي خدایه دا یو څه جنجال دی

نور عالم به څه کړي د خپل ځان په خلاصي همت کړه
لاندې ئې خوشحالَ دا یو څه د بلا جال دي

د ځوانئ په خوبئ کښي څه شك دي  د پیرئ عمر درست د عیب ډك دي
پرهارونه مي په زړه تازه تازه شي  پاشیده په هر پرهار باند نمك دي
که ښادي در باند رایشي خوش مه شه  په ښادئ پوري هر کله غم لك دي
هیڅ فریاد د چا د ظلم جور مه کړه  په هر چا باند چه شندي کا فلك دي
غم ئې بي حکمتَ نه دي پیدا کړي  د نامرد د مرد په مخ کښي غم محك دي
څو چه ډیر ډیر لذتونه ډیر غمونه  ښه هغه چه بس ئې کیږي ته کندك د
توره چا و ته ترم چه زه ملنګ شوم  ښه خو دا چه مي په غاړه یو کوتك د

تفحص که څوك د خوږو زړونو کاند
د خپل قام له لاسه خوږ خوشحال ختك دي

دنیا بده بلا ده چه و ما و ته ښکاریږي  په دي له خپله پلارَ څکه زوي ویزار
چه څوك وبله خپل دي ولي فهم فکر نه کا  چه مرګ شته په دنیا کښي سره ولي نه ج
په هر لوري چه ګورم و عالم وته حیران شم  دنیا د هیچا نه ده په دنیا سره خو
و بل ته توره واخلي په دا کار کښي ډیر حیران شي  چه خپل دِ په بدي شي ستا و جنګ ته طیار
دنیا د مست هاتي په خوي خصلت ده که ئې ګوري  چه یو مهاوت وُ مړ بل ئې شا ته طیار
چه بخت را سره مل وه مار به ما ته څرمښکه شه  چه بخت و ما ته شا کړه څرمښکه را ته مار

عالم عالم غمونه چه خوشحال ویني له خپلو
غم خور ئې که پیدا شي خپل پردي نه په شماریږي

چه خون په غاړه کیږي له دي کاره څه غم دي  یاران د ما په ګور کښي زه په ګور کښي یم ست
چه هونبره ښه محونه په دا خاورو کښي په ګور دي  چه دیو لړ دروړم ګور و ما وته اِرم
پیري راغله زبون شوم که څه نور علامت وُ شه  چه زه کړم هغه نه شي هغه ملك هغه عال

یا بخت دي د مغلو یا د ما عقل څه کم ... | په زړه کښې ... ښه وایم وچا ته هم ئې بد نسي
دا کل واړه پیري ده چه مي کار برهم درهم ... | بخت دي د مغلو نه زه هیڅ په عقل کم یم
د تورو وار ئې تیر شه اوس ور پاتو یو قلم ... | ... لو ته چه ګورم هغه هسي مغل نشته
په ما ئې اثر نه شي لا په ما د خدای کرم ... | ... تون په زرو نسي په فریب په تیتالونو
یا بازیم یا شاهین یم پنچپل ښکارمي زړه خورم ... | ... مچ یم نه قارګه یم چه په ګړو مړو ګرزم
چه ما غند څوک نشته څکه پروت را باند غم ... | ... ما غند نورهم وي پدا کار به ډیر خوشحال وم

ایمل دریا خان دواړه په ښه رنګ تیر شول په ننګ کښې
د دواړو په فراق کښې د ما تل آه و ماتم دي

چه درومي په چمن کښې د لاله سینه داغ داغ ... | ... چړته چه کښیني هغه ځای د ګلو باغ شي
د مشکو د عنبرو بوي پریشان په هر دماغ ... | ... یاد ئې توري زلفي په سپین مخ کاند پریشاني
.د ورک کالي غبستنه تل په توره شپه په څراغ ... | ... ښیو کښې دِ ورک د ما زړګي شه مخ څرګند کړه
که دا مزه به هم مونده د میو په ایاغ ... | ... ا مزه موندلي ستا د شونډو دروغ ژن یم
لا شك چه په دا باغ کښې د ګل بوي د ګل سراغ ... | ... م د ما اي بادَ تر شیدا بلبل ور وړه

یو دم د خوار خوشحال سره ته هم فراغت کښینه .
چه زړه ئې له ډیو ډیرو اندیښنو څخو فراغ شي

مبارك شه بادشاهي لري په زړه کښې | چه د خلق نیك خواهي لري په زړه کښې
څه عجبه آګاهي لري په زړه کښې | که ئې غوږ د دانشمند په نصیحت دي
که د سعي کوتاهي لري په زړه کښې | د مردانٔ په معراج به ورتلي نه شي
د هر چا سره سیاهي لري په زړه کښې | محتورن د دواړو کونو نه دي څه دي
بد کردار به مناهي لري په زړه کښې | نیك کردار سره به فکر وي د امر
بد بختان به ګمراهي لري په زړه کښې | نیك بختان به اندیښنه کاند د نیکو
هر سړي چه تباهي لري په زړه کښې | د ناصح په نصیحت به اصلاح نه شي

په هغه هنر کښې تیك اوسه خوشحالَ
هر هنر چه سپاهي لري په زړه کښې

ت په اکوري شه چه نیوه ئي ځاي د سراي — چه ښه فهم مي وُکړ که باور کړي ځاي دي

غرئي د هوډي دي تر تیراه پوري سم تللي — نیلاب لنډي دواړه عجب سر یښي په

سازه لویه لار د هندوستان د خراسان ده — گذر ئي د اټك دي چه تر ترس کا شاه گد

فیض د جهان چه څه یادیږي را درومي — که ملك ئي باراني دي څه بهار لري هاي

سوات که اشنغر که پښور دي د ملکونو — رجوع لري و ده ته فیض ور درومي د هر خ

هر لورئي ښکار شته د شاهین د باز د هر څه — واه واه کاله پاني چه څه ښکار دي دلر

نان ئي چاق تندرست چست چالاك پهر کار کښي — خوش چشم سپین و سره بلند بالا دي په نم

زوي که نمسي که خیلخانه ده که اولس دي — چه څوك پکښي میشته دي په امان اوسه د خد

ان ـــي جدا کړ لاس د چا رسي آسمان ته

خوشحال له سرایه نه دي جدا شوي پخپل راي

## قصیده د بهار

بیا له کومه را پیدا شه دا بهار — چه په هر لورِ ئي ملك کړ یو گلذار

ارغوان دي ضمیران سوسن ریحان دي — یاسمین دي نسترن نرگس گلنار

د بهار گلونه ډیر دي په هر رنگ شته — ولي سره لاله دي لا په کښي اوځار

جونه موتي موتي گل ږدي په گریوان کښي — د ځوانانو گلدستي دي په دستار

مغني په چغانه لنډئي کښیږده — په نغمو په پردو غواړه هر هر تار

ساقي راشه ډکي ډکي پیالي را کړه — چه د میو په مستي کښي شم سرشار

پښتنو زلمیو بیا لاسونه سره کړه — لکه باز منگلي سري کا په خپل ښکار

سپینِ تور ئي گلگوني کړِ په وینو — په اهار کښي شگفته شه لاله زار

ایمل خان دریا خان دواړه مرگ ئي مه وه — ه تقـ... دواړو ... کړ وار په وار

د خیبر دره ئي سره کړله په وینو — په کړپه ئي ...م روان ...کړ دندوکار

تر کړپه تر باجوړه سمه غرونه — په لرزه په زلزله شول په بار بار

په هغه لوري چه کیږي پنځم کال دي — هر ورځ د سپینو تورو خرپهار

| | |
|---|---|
| چه په دا لوري زه راغلم هبته شوم | زه مردار یم که دا خلق دي مردار |
| په لښکر لښکر نارِ شوم ور ته ستړي | دا کانړه را ته نه مرګ وائي نه جار |
| چه احوال د یوسفزیو را معلوم شه | لواغر و ما ته ښه وه نه د مغار |
| د خټکو سپي بهتر تر یوسفزیو | که خټك دي هم په خوي ترسپي بي کار |
| درست پښتون تر قندهاره تر اټکه | سره یو د ننګ په کار پټو آشکار |
| ګوره څو جنګونه وُ شول په هر لوري | ولي هیڅ د یوسفزیو نه شته عار |
| اول جنګ د لوړي شا د تهترو وه | چه څلویښت زره مغل شول تار په تار |
| خویندِ لونه ئې په بند د پښتنو شوِ | آس اوښان هاتیان الجه قطار قطار |
| دویم جنګ د میرحسین په دوابه کښي | چه ئې وُ تکیده سر لکه د مار |
| بیا له پس د نوښهر د کوټ جنګ وه | چه مي وُ کیبن تر مغلو خپل خمار |
| بیا له پس جسونت سنګ شجاعت خان ووُ | چه ایمل ئې په ګنداب وُ یوست دمار |
| شپږم جنګ مکرم خان شمشیرخان دواړه | چه ایمل کړل په خاپش کښي تار په تار |
| چه څما په یاد دي لوي جنګونه دا دي | د هلکو په هر لوري نه شته شمار |
| همیشه فتح و نصرت دي لا تر اوسه | پس له دا ده بیا تکیه په کردګار |
| اورنګزیب را ته یو کاِل وُشه چه پروت دي | په صورت حیران پریشان- په زړه افګار |
| کال په کال امراګان دي چه پریوزي | چه طوفان ئې شوِ لښکرِ کوم ئې شمار |
| خزاني د هندوستان دي را خوري شوي | سره مهران دي ننوزي په کوهسار |
| دا د هیچا په اتلس فکره نه ووُ | چه به دا کارونه شي په دي دیار |
| د بادشاه د بد نیتي کمي نه شته | په بد نیت ئې آزار واخست د خپل پلار |
| څکه اوس د چا باور ور باند نه شي | هم بد نیت دي هم بد قول هم مکار |
| بله هیڅ لیدله نه شي په دا مینځ کښي | یا مغل د مینځه ورك یا پښتون خوار |
| که ګردش د آسمان دا دي چه [illegible] ده شي | که د خداي په دا رضا وي راغي وار |
| آسمان هرکله پیریك رنګ نه کا | ګاه په ګاه د ګل خار وزي ګاه د خار |
| په دا هسي وقت چه وقت د نام و ننګ دي | دا بي ننګ پښتانه کا څه رفتار |

پښتانه چه نور څه فکر کا نابود دي — بي له توري خلاصي نه شته په بل کار
تر مغلو پښتانه په توره ښه دي — که په پوهه پښتانه وي څه هوښيار
السونه چه خپل سند وبله وُ کا — بادشاهان ور ته سجود کاند اختيار
که نفاق کډ اتفاق که جهل پوهه — د هر چا د خداي په لاس ده هره چار
افريدي مهمند شنواري گورډ څه کا — د مغلو لښکر پروت په ننگرهار
زه تنها پهِ کښي په غم د نام و ننگ يم — يوسف‌زي فراغت په کښت و کار
اوس چه هسي بي ننگي بي ناموسي کا — عاقبت به ور ښکاره شي خپله چار
مرگ څما په پوهه ښه تر دا ژوندون دي — د عزت سرډ چه نه وي زيست روزگار
هميشه به په جهان کښي ژوندي نه وي — د خوشحال خټک به پاتو شي ياد گار
د دريمي خور اول کال د غنو وه
ما چه وُ وي په برمول کښي دا اشعار

آلهي د محبت سوز و گداز را | په دا اورکښې د سمې سمندر ساز را
تن پرور بلبل دِ عيش کاندِ په گلو | پروانه لره په اور خما گداز را
که مي نازکا يار په ويارد ورو سترگو | دا د عشق په ميخانه کښې د مجاز را
چه نظر له ناتوانئي و چا ته نه کا | د هغو بيمارو سترگو ناز و نياز را
چه مي نه وي سرکوزي چا ته بي ښکليو | له دولته د عشق هسي کبر و ناز را
اضطراب مي د حرص وُ کړه له زړه لري | قناعت قوي لنگر د دِ جهاز را
که مي نه فاشوي سر زيد و عمرو ته | خپل زانو لك نرگس محرمي راز را
څو به گورم د قيامت و ورڅو شپو ته | دا انجام په ډم قدم کښ د آغاز را

د حميد محمود رائيشه په مينه
کميني لره کمال خما اياز را

اي مدام د نس په زيرمه مبتلا | څان ته ولـي ويښوي اودي بـلا
دانايان د دښمنانُ صلاح نه کا | ته پښه کوي د نس شيطان صلا
له دي خپلي سپني ږيري وُ شرميږه | ولي نه شي په روښانه ورڅي غلا
د خپل دم و چليدو ته نظر وُ کړه | هر نفس د تلو آواز کا چل چلا
څه بلا لره دنيا شوه در ته تِوله | چه مچي گبينه دك کا شي جلا
و خپل خداي ته له سريو سري ښه ئي | نه و خلقو ته خود رو شيخو ملا
د زخمي چه زوه دروميي آرام موميي | ته په تـلـه د دِ دنيا کړي واويلا
زر به لاس د ناميدي په تشي کيږدی | چه په اهل د دنيا تري څوك ملا

پرورش د نس په کار نه دي حمیده
له دښمنه سره څوك نه كا تولا

نه څما ده نه د ستا ده دا دنیا
پاتو شوئي له هر چا ده دا دنیا

د یوه په غیر کښ پروته بل ته خاندي
څه لولئي بي حیا ده دا دنیا

که هرڅو ښکلي زیبا لیده شي څه شو
په باطن تورد بلا ده دا دنیا

چه مروت د آشنائي په کښي نشته
که آشنا ده نا آشنا ده دا دنیا

زر په زر خو به ئي ولي له کمره
له هر چا چه خوا پخوا ده دا دنیا

تل په ځان پوري د خپلو طالبانو
مسخري کا په خندا ده دا دنیا

په یوه ځاي ئي تیکاو هیڅرته نشته
لك سیوري هغه دا ده دا دنیا

په رنړا ئي د چا کار نه پوره کیږي
د آسمان برقو بریښنا ده دا دنیا

بیهوده ئي زړه تړي په ډنگ ډنگ پوري
د گړئي میلمنه ورا ده دا دنیا

له سودا ئي سودمند شوي هیڅوك نه دي
جو فروش گندم نما ده دا دنیا

مناسب نه دي ورته د لویو خلقو
د هلکو تماشا ده دا دنیا

چه حمید په کښي خندي کا زیشخندي کا
ځاي د غم و د ژړا ده دا دنیا

عاشقي ده واقعي سود و سودا
څکه سر ور کوي شمع په خندا

لاس پښي کړه زرگي سره په قهقه خاندي
چه ئي بیاموندده ښادي کوښه تنها

چه بازه شي سر و مال په عاشقي کښي
دا سودا ده یوه ...د لره پیدا

که صورت د عاشق خوار لیده شي څه شو
بادشاهي کا په خرقه کښي دا گدا

چرته سیر د صحرا چرته د کلیو
چرته روغو جوړ سړي چرته شیدا

زلیخا د بادشاهئي منصب پرېښو
چه حاصله ئي په عشق شوه ابتدا

دا چه ژاړي عاشقان ظاهر له عشقه
د ښادئي ستر پوښي کاندي په دا

چه ادا کا ور ته یار بي ویاره وصل
ځان ته واپي عاشقان هاله ادا

چه په عشق دِ ابتدا وُ کړه حمیده
څکه شوه هسي په ما لړ ستا ادا

هسي خپل کړ دلبرانو دل څما    نه وُه هیچري ګویا کي خپل څما
آهو چشم وري زړه که هر څو بولم    نه مني لك آهو بلبل څما
که مي یار په یوه زخم ړدي بل زخم    په کار نه دي د طبیب تبل څما
چه مي خیال شته د ګلرخو په لیمو کښ    ګل ته نه دي مناسب کتل څما
که مي سر بي سردرده شي د ښکلیو    مناسب دي هلته سر وهل څما
مرم که ړومه څما سر د ترکو در دي    نه شته ځاي بي دغه دره بل څما
که خوبان د درست جهان نسم پښوا کښ    نه شي نشي د ستا سود په بل څما
نه به وي د هیڅ عاشق معشوق په میان کښ    دا ستم کول د ستا زغمل څما
که په نور وکړي ظلم د مغل دي    خداي غمونه کړه د ستا مغل څما

وُ سه دیر څله خپل ځان پروانهِ شمع
هیڅ ئي زده نه کړه حمیده سول څما

بد دِ نه مني کاته حبیب څما    دا دي قوتُ لایموت نصیب څما
هیڅ ادب مي بي ادب سترګي نه آخلي    که هر څو وچولي غوټه کا ادیب څما
که آخر شه د یار حسن غم ئي نه شته    د غریب په تکړه صبر کا غریب څما
د نو خطو درشتي څما آشني ده    په آغزن بوټي آرام کا عندلیب څما
چه دِ وُ آړیه ما ته په ښکنځلو    څه په بد کښي نیکخواهي کا ندِ رقیب څما
لا مي زیات آه و فریاد د غم لښکر کا    خیژوي فوج په سر څما نقیب څما

چه لړ داد و ما حمید را که په عشق کښ
نه شته هسي یار آشنا قریب څما

تماشا د ګلشن څه کوم بي تا    یاسمین و سمن څه کوم بي تا
ته څما سترګي لیمه ئي چه ته نه ئي    نندارہ د چمن حه کوم بي تا
چه هر لال شي سرِ سکروټي پکښي سوڅم    مه ئي وینم یمن څه کوم بي تا

هیڅوک نه غواړي فردوس بي له دیداره    کور و کلي وطن څه کوم بي تا
چه د ستا چاهِ زنخ ته نه رسیږي    د کم عمر رسن څه کوم بي تا
ستا د در په دوهه پروت قلندر ښه یم    بادشاهي د ختن څه کوم بي تا
چه مدام لکه کباب په اورنیوه شم    زندګي د کشتن څه کوم بي تا
تا چه څي له ما حمیده را ته وایه
زه په سترګو لیچن څه کوم بي تا

مه شه ډیر هوا پرست لکه حباب    له دغي هوا به شي خانه خراب
مرتبه د سړي مه غواړه له خدایه    چه مشغول ئې لکه ستور په خورد و خواب
ستور په یویه کښي په کیل برابر درومي    ولي ته له شرعي درومي نا صواب
هر نفس چه بي د خدای له یادو نغري    ګنړه نغري سري سکروتي په حساب
چه دِ بي خوراکه خوبه بل څه نه زده    نور په کومه چار بهتر ئې تر دواب
د دوزخ په عذاب ولي په عذاب شوي    چه د نس په زیرمه ګرزي په عذاب
په هوا پسي د نفس سر هوا مه څه    ځان به ورک کړي لکه برق پدا شتاب
که دلي تیر و بیر نه شي په حساب کښ    هوري نه شته تیر و بیر حساب کتاب
په سبب د رزق غمکین مه شه حمیده
ولي شته هغه مسبب الاسباب

که مي نه شي پرده پوښ فضل د رب    و هر چا وته ښکاره دي څما ډب
د بنده د عمل خونه سره لنبه شي    چه پرِ و لګوي اور د خدای غضب
که د رب مهرباني رهبره نه شي    بیا به نه مومي څوک ورکه د مطلب
چه ځښتن ئې د خپل فضل په میز سپک کا    ښي ښي ریري به شي سپکي لکه درب
لکه بي لاسه لستوني څه کړي نه شي    هسي بي فضل بنده دي مضطرب
څه غلط دي پوهیدلي دروهیدلي    دا غره تللي په اصل په نسب
هر سړي پخپل ښایست باندِ زیبا دي    نه د مور په زیبائي نه د اَب
هر نفس د خدای په یادو اولی تر دي    بي اوبو زنده ګي کله شي د کب

چه ښېښتن ګټري حاضر بد ګړي حمیده
نشته تا غندي بي شرمِ بي ادب

نـازولي خـوي نـه آخـلي ادب او د سیوري نخل نه نیسي رطب
ږ نیو مه شه هغه خوي په خوا پوري چه ئي نه نیولي درس وي نه مکتب
په غوجل کښ باري خر قچره ښه ده نه په خونه کښ جاهل بلا طلب
چه پیدا شي یو ناکس په قبیله کښ وړاندِ ورستو حبطه کاندِ نسب
د پسر په نیکو بدو پلار یادیږي دا خبر دي په جهان کښي مجرب
په سواره باندِ ئي ګوته شي ایښوده چه ئي آس برابر نه ځي په جلب
په زړه مهر په خوله قهر خوي ته بویه څه ښه وائي چرته دب هلته ادب
یوسف هاله شه لایق د بادشاهئ چه ئي ږ خوړه ځپیړه د غضب

هر ناکس لکۀ مګس باندِ بونیږي
چه حمید نرم ګوئي که شکر لب

که تر سرهِ مي کا خدای د صبر سوبۀ د ناکس له آشنائي توبه توبۀ
ډیر مي خرهِ خسي کول ږکړه پوه نه شوم ریش کنده جامه پارهِ له لیونتوبۀ
بیهوده هندو رنځ کښ خدای تري نا رازه په ناکس پسي عبث وتم له خوبۀ
لکۀ طفل در ګوهر له کاڼري ولي هسي ما بي ځایه زړهِ بایلو په لوب
چه د ستا په اوښیو نه ژاړي سري ویني هي توبۀ شه د هغه یار له آشوبۀ
که مي ږ ځښي بي وفا د حیا بحر لا ئي نه ده له شوخئ سینه خړوبۀ
هر نا اهل ته سر کوزي کړم تا ولي اي ځما بي صبرۀ زړهِ ځما سرکوبۀ
دا کاڼي کیږي په ما د ستا له فعله چه مي ستړکي نه وچیږي له ذهوبۀ

چه پلاس دِ د. نا کس ور کړه حمیدۀ
تورهِ ګیرهِ دِ کړهِ سپکه تر جاروبۀ

هسي تللي یم په فکر د جانان ډوب لك کاڼري په تلي کښ د عمان ډوب
ځکه ما ځحه آرامو قرار ورک شه چه مي اوښو که د صبر خانو مان ډوب

نا خبر نه ئې له حالَ شفق بولي — که د وینو په ژړلو کړم آسمان ډوب
په لباس د ښکلیو مه غلیږه دي تګو — خلقات کا په دا سحر په دا شان ډوب
هسي وژله کا د مهر په پرده کښي — لکَ خضر په چشمه شي د حیوان ډوب
هسي ما لري مهجور په وصالت کښي — لکَ تږي د یوه ګوټ په ارمان ډوب
د حیا د بحر در ئې منده نه شي — که د صبر جهازونه کړم چندان ډوب
هغه قبر لړه یووړه بله شمعه — چه توبري ئې په زړه یووړ د هجران ډوب

د حمید د کاغذي فکر کښتي
د حیرت په عظیم بحر کا جهان ډوب

زړه مي وُووت د دیدن د جنګ په هپَ — وَلي غشي د نظر په ښي په چپَ
په هوس را څخه زړه هسي لرزان شه — لکَ طفل کا د مور په غیږ کښي ترپَ
تسلي په لاس نیوه د مهجور نه شي — کله سود د سینه سَوي شي په لپَ
په ښادي څما د وصل کواکبو — په وهلو ګوتي وُ یستي له دپَ
هرزمان مي د آشنا د خال په خیال کښِ — ما ته وله شي په سر د مشکو ګپَ
رستمان د صبر زهد لکَ وورکي — ننه ووزي په خلوت د عشق له خرپَ
د وصال په چشمه مرمَ وچي شونډي — د هجران د اندیښني له تابُ تپَ

چه حمید غند سرکښ ئې کړ سرکوزي
طمطراق د عاشقئ نه دي بي خرپَ

چه نظر کړم د خوبانو و رخسارتَ — آئینه غندِ حیران شم و دي کارتَ
صافه نه ده آئینه د هغو زړونو — چه حیران نه شي د ښکلیو و دیدارتَ
د اوریځ له اوبو ډیر کانړيووریږي — څه امید دي د خوبانُ و ریبارتَ
که له غمه ئې زړه دوه نیمه وُ چوي — نه نیسي د مهر سپر و ذوالفقارتَ
چه ئې نه ویني وفا په رنګو بوي کښي — زرکه څکه مینه نه کا و ګلذارتَ
څو ئې صبر زهد ګواښ ته وړاند نشي — لا ئې حب د ښکلیو څان ګواښي ګذارتَ

په لباس د ښکلیو مه غلیږه حمیده
بیش بها دستونه نه وزي بازار ته

آشنائي ده د دنیا د آشنا پوچ — د لاله له ګل غواړي بقا پوچ
لکه څوك چه کتوري غواړي له زانري — هسي شان شوه د وفا تمنا پوچ
چه سودمن په آشنائي د آشنا نشي — وکړه مشه دا بي سوده سودا پوچ
چه حاجت غواړي له دوره د دِ دهر — وهي منده د بريښنا په رڼړا پوچ
په کرده به دي مردي صبا لیده شي — مه کړه نن په لاف شاف غوغا پوچ
بي کرداره ګفتار محض سر درد دي — منده نه شي د مراد مغز پدا پوچ
چه نا اهل ته يې څوك له خولي وباسي — در دانه کاندِ د خپلِ وینا پوچ
چه دا خپل څيري ګريوان پرِ نه تولیږي — د شبنم په ژړا ګل کا خندا پوچ

چه پتنګ په اور کښي غږ نه کا حمیده
عندلیب کاندِ په ګلو غوغا پوچ

تل د اوښيو په اوبو کښي لره تر مخ — په دغو اوبو کښي لید شي د ګوهر مخ
د یوسف د مخ دیوه شوه هاله بله — چه يې سور کړ په څپیړو برادر مخ
له میوي د سیوري ونه شا پشا وي — څو يې نه کړي برابر د دي د نمر مخ
و هرچا ته به سرخرویه لکه ګل شي — که په وینو سره وینځي د ځګر مخ
سیاه روئي به دِ د طمع لري نه شي — څو پري نه وینځي د صبر په ګوهر مخ
صابران د احتیاج سره له شرمه — آئیني ته نیوي نه شي برابر مخ
چه تنړاکي د محنت لري په لاس کښي — هغه نه ګوري په څله د ګوهر مخ
عاقلانو لره عیب هنر نمائي ده — آئینه توره تبي کا د جوهر مخ
که د ښکلیو په دربار مخ روڼري غواړي — آئینه غوندِ کا تور په خاکستر مخ

د حمید بل هوسي نا کسي نه ده
لتهوي په خپله ورکه پسي هر مخ

چه باله شي کر و فر د دنیا هیڅ — هیڅ سري به کاندِ فخر په دا هیڅ

د نابودي دنیا بود برق و بریښنا ده — نه شي زیرمه د بریښنا په رڼا هیڅ
د دنیا هوا هوس د خوب لیده دي — چه خوب وړي شي را ویښ نه وي بیا هیڅ
هرسړي درومي تریخ حلق له دي جهانَ — خوږه کړي ئې خوا نه ده د چا هیڅ
که هر څو ئې جنګ جدل وبله وکه — څني یو نه وړه سکندر و دارا هیڅ
چه ئې څوك په تکي پوډ دي هغه نکا — په بازار د دِ دنیا سود و سودا هیڅ
چه ساتلي نه شي پټ د آشنائي — آشنائي ده د دنیا د آشنا هیڅ
دا نیمګړي هیڅا نه ده پوره کړي — تر بریښنا ئې زیاته نه ده بقا هیڅ

چه پروا په دنیا نه لري حمیده
هغه نه لري د خلقو پروا هیڅ

د فردوس په ښادو ؤ شه رهنما که — چه ئې زه کړم په سیمه د آشنا که
د رقیب کینه مي خوا کهنوي هسي — لکَ مچ په آبو خورکیږي شي د چا که
پري کولو ته سر تیټ د ګلو ښاخ کا — چه د باغ په کناره شي دلربا که
د تور خط لیکئ ئې ګډه په سپین مخ شوه — تور و سپین څما د سترګو شوه پدا که
په ګډون مي ئې د زړه تسلي نه شي — څو مي یار را سره نه شي خوا په خوا که
د وفا د طعام خوند به په څاي نه وي — که نمك ور سره نه وي د جفا که
بیلتانه د وصل خیال را څخه خور که — په رمه باند لیوه شه د موسي که
محبت لکَ موږي د ماتي ؤ وزي — هسي دي د زړه په خونه شه څما که

زنکوي هسي ماران د حمید فکر
لکَ باد کا په نِڅا د ګلو ښاخ که

له غمزي د تورو سترګو نظر ژغورَ — په ؤ ښکلیو تورو مه خیژه سر ژغورَ
عشق ته هیڅ نه دي پرهیز د سلو کالو — له هزار منه پنبي یو شرر ژغورَ
عاشقي ستا د بشر د خطر لار ده — د خطر په لارِ مه څه بشر ژغورَ
مینې دیر ساده صوفیان دي رندان کړي — غرونه غرونه یخ له مخَ د نمر ژغورَ
بل هنر به دِ پکار نه شي په عشق کښې — باري یو د بي خودئي هنر ژغورَ

لکہ ځان ژغوري برهنه له تیرو تورو — هسي خپسر له ښیرو د سحر ژغور
آه سرد نوي مین لره ښه نه دي — له تازه پرهاره باد د قوصر ژغور
عاشقي له خود رائي سره نه شي — په دا لار دم قدم د رهبر ژغور

که په رو د یار د مخ ؤ رغلي باد
د حمید د مراد د ورکي خبر ژغور

چه په تورو سترګو تور رانجه شي پور — له یوي تور بلا پاڅي سل نور
تور سترګي تور زلفي تور ورځي — دا همه تور بلا دي آدم خور
له یوي بلا څوك ځان ساتلي نه شي — ما ته تولي سل بلا شوي پیله پور
نه د مړیو په حساب نه د ژوندو یم — عاشقي تر دا میان کړم پور وور
اوس څما له نام ننګ سره څه دي — ولي ویر کا ویره ژلي په سر تور
که ته ځان ته افلاطون وائي ناصحه — ما ته عین لیوني د مجنون ورور
اوس به کفر ته د تورو زلفو ؤ وزم — کنږد مه کوه د پند خبري نور
عشق د ډیرو زور زوم کړي دي نادانه — څه غره ئي د ریا زهد په زور

کوم یو بت د ناست په زړه کښ دي حمیده
چه مدام په پرستش ور ته نسکور

چه په مخ به د هر ښکلي شه زیر زیر — خود به تله په محبت پیري د پیر
چه له هري وني خوري یوه شي زهر — مجرب دي په جهان کښ دا نظیر
مسخره کا محبت په یوه دم کښي — صد ساله پیري د پیر میري د میر
عشق ئي څیري ګریوان ؤ باسي بازار ته — که په سل نخلوت ناست وي کوښه ګیر
عاشقي په مصلحت کولي نه شي — اور ته ځان آچاوه نه شي په تدبیر
زه رسا په زړه ادا کړم مړاوو سترګو — که په وله لګي د سستي لندي تیر
یا د ښکلیو د پایلو شرنګهار دي — یا د عشق د لیونیو ذي ځنځیر
که ګرمیږي په آزار بازار د ښکلیو — نه آر کیږي په آزار د پیر فقیر

دم قدم په سینه تیغ د بد دوتا ږدي
د یار هجر کړ حمید و مرګ ته خیر

کۀ دِ سرپه عشق کښې لاړ مه شه زهیر    دا نمرږي ده وظیفه د دِ فقیر
ما ته طمعه د وصال ویرد د هجر    په یوه غولي کړه پیښ سندرِ ویر
دل داده لره د عشق په طریقت کښې    لیونتوب دي واقعي پیري دستګیر
ما هم زده چه عاشقي تورد بلا ده    ولي تیر له دِ تدبیره کړم تقدیر
چه په عشق کښې بي تدبیره حیران کښیني    نه شته به له دي تدبیره بل تدبیر
په هغو سترګو کښې خیال د ترکو بند شي    انتظار چه ئي حلقي کا د ځنځیر
دیر ئي ویار ځما د کارکاوه ښه وُ شو    چه زاهد په زیل د زلفو شه اسیر
خداي دِ وُ ازمیه په څان ځما ناصحَ    چه منډي په سترګو کوتي د بصیر
د پرهیز په سترګو بد ښکه حمید شه
چه کاته ئي ساده رویو ته زیر زیر

د دی دهر د چمن د ګلو بوي لاړ    له خوبانو نه ئي هم د مهر دوي لاړ
نه له ما د میني خوي څي د بتابو    نه د جور د جفا رسم له دوي لاړ
اوس به څي له ما نه عشق څرنګ ناصحه    چه مي نوکه ترکوتي موي په موي لاړ
جستُ جوي مي به روح ور کا و وتو ته    که له زړه مي د خوبانو جستُ جوي لاړ
په نو خطو پسي تللي زړه مُند نه شي    هغه ورك شي چه د شپي داور په سوي لاړ
دغه سیند د اباسیند چه لیده کیږي    له دریابَ مي د اوښو نري جوي لاړ
یار په پند د رقیبانو لاړ پوهیږم    چه له ما ئي هغه عهد هغه دوي لاړ
په هیڅا باند ئي نیاو نه شي حمیده
چه د ترکو سترګو مړ کړ خه ، توي لاړ

ربَ زړه د رقیب نرم په احسان کړِ    دا هسو را باندِ ښځو مسلمان کړِ
ځما صبر تیره توره کړي په عشق کښې    رقیبان ور باندِ غوځ په خپل ګمان کړِ
چه خاطر د آهو چشمو ترِ وحشت خوري    هغه واړه وداني ځما دامان کړ

اور ځما د دین دنیا په کورکړي پوري
خومي عذر په عزت د عشق مهمان کړ

چه روښان د یار د مخ په ډیوه نه وي
وران ځما د زندګۍ خان و مان کړ

یا زمان د یار د وصل کړي را نوي
یا مي عمر په هجران کښ یو زمان کړ

چه مدام په نغوته کارکا د اغیارو
له دغه کاره مي یار ځخو پښیمان کړ

رقیبان مي د هجران په اورکښي ولي
د خلیل په دود مي ربّ په امان کړ

ګوره نن په زیر زیر مخ د یار حمیده
چه صبا ور پسي لاس مړي ارمان کړ

ځان ته ښه وائي ښه نه کړ
هغه څه وائي دا څه کړ

له اوربشو غنم غواړي
ښه به هاله شي که ښه کړ

شپه و ورځ د نس د پاره
حسابونه د ویښته کړ

حق بیني ته لکّ سویه
غمي سترګي ځان اوده کړ

که سولي ته خیژاوه دي
که کوهي ته پریواته کړ

هغه غوړ سترګي دِ نشته
چه پري آروي یا لیده کړ

چه پري ناست ئي هغه ځانګه
بېړي کوي خوي د ړانده کړ

کري خار په هغه لارکښي
چه په هره ساه پرِ تله کړ

که در پیښ د دنیا زیان شي
پسي ژاړي لیمه سره کړ

چه ایمان در ځخه دروي
هیڅ پروا ور باندِ نه کړ

د خوري نمړئ د پاره
سل قبول تاوده ساړه کړ

نه کا سپي د نس د پاره
هغه چاري چه ئي ته کړ

کله زور کله زاري کړي
ګاه ساړه ګهي غارمه کړ

دا یو ځان د نس د پاره
کلهٔ سپي کله لیوه کړ

هغه دم په تا رنړا شي
چه د بل په کور تیاره کړ

په دریمه په لیتۍ کښي
په بل ویر وي ته واده کړ

که هر څو نا پسنده چاروي
ته ئي پسنده پخپل زړه کړ

نه دِ شرم نه حيا شي — که هر څو د نه کړو کړه کړ
کله شيخ کله ملا شي — سترګي توري نمري شنه کړ
کله دم لاس په سر کيږدي — ګاه سپاهي توره چاړه کړ
ګاه آهونه ګاه ژړا کړي — ګاه ويل تاوده ساړه کړ
دا همه د نس په زيرمه — تن پروره اور اوبه کړ
که بندګي د هغه خداي ده — نه ئې دوي کا نه ئې ته کړ
وايه نور په کوم چاري — ځان خوښي په غوايه خره کړ
که له خدايه دِ بايده دي — له خودئې به نا بايده کړ
په خپل نفس به قدم کيږدي — د بل ځاي به په ليمه کړ
قناعت به پلاس واخلي — نس شيطان به سره غله کړ
دم قدم به د نيکانو — پيروي په خوله په زړه کړ
په بد خوي به د چا څه کړي — په خپل ځان به شنډ ؤ کړ
خود په خود لويږي کوهي ته
لـه حميده څـه مانه کـړ

که له غمَ په امان نه يم هرګز — زه د عشق په کار پښيمان نه يم هرګز
که مي مال تالا کاوه ګردن واهه شي — لـه مـهرويو رو ګردان نه يم هرګز
يو خسري برد مېني په سودا کښي — آر پـه دين و پـه ايمان نـه يم هرګز
که مي سر پوري کاوه که پريکاوه شي — خوښ دلګير په اين و آن نه يم هرګز
که بازمَ سر و مال په دلبرانو — ملامت پـر دِ جـهـان نـه يم هرګز
ليوني غند د عشق په کار و بار کښي — د خپل ځان په سود و زيان نه يم هرګز
هيځ له صبره را ته مه وايه ناصحه — د دغي وينا نـغـوتـان نـه يم هرګز
هسي ښکلي په نظر راغلي نه دي — چه ئې مخ وتـه حيران نه يم هرګز
څه به يار په ما حميد د بوسي داد کا
چه لائق د دي احسان نه يم هرګز

صبوري كاندي سړي آتش نفس بد خواهان ئې شي د اور په لنبه خس
په بد خويو اور له خپلَ تنَ لګي خپله ځاله كا په ځان تنور ققنس
د مظلوم د آزار غشي رسا لګي هيڅ ګذار ئې خطا نه درومي عبس
په دنيا مين له څرمي احمقان دي لك وُركي و سره اور تـه كـا هوس
هر سړي چه له آزارَ بازار غواړي د دارو پـه طمع زهر خوري نـا كس
چه كمال غواړي په كبر احمقان دي پـه پليتـو اوبو نـه كيږي اودس
نه به نس په ډيرو بدو كا ځوك صبر نه به اور د خس له سولو كا ځوك بس
چه دِ يو احسان له زرو پرې زياد نه دي تو په هسي بي حيا بي شرمَ نس
د غفلت په خوب اوده خلق ئې نه آوري
كه حميد ناري وهي لكه جرس

د دنيا د مال په تللو زهير مه شَ مات آغزي دِله پهو خيژي دلګير مه شَ
نعس هوا دي خداي اسير و تا دركړي تـه د خپلو اسيرانو اسيـر مه شَ
ديندارې په خود رائي سره نه شي په دا كاركښي بي مرشدَ بي پير مشَ
نه دي نس لرة جلب د وركولو آموخته در باند غل و كاثير مه شَ
چرته سوي د يوه داغ چرته د زرو د دنيا د ډيرول په تدبير مه شَ
وايه سپك ښه دي كه دروند د سرپټ ويړي فقيري در لرة ښه ده امير مه شَ
خداي دركړي شنوا غوږ دي بينا سترګي دانسته تر كمر لويږند بصير مه شَ
په خندا په رنړا وچولي د خلقو جفاكش نهانه اوسه او تير مه شَ
نور قيدونه واړة سهل دي حميده
خو په غارة دِ د طمعي ځنځير مه شَ

هسي يم په درد و غم كښ د دلبر خوښ لكَ اوسي په سرة اوركښ سمندر خوښ
لكَ ګل و خپه ځاي ته شي بوي زيات كه تر ښځلا مي هغه يار دي مرور خوښ
لكَ خاوري پسر خوښ يم زه په عشق كښ بادشاهان به هسي نه وي په افسر خوښ
كه ئې ځاي په كنجوغه پوري د يار شي هيڅ مي نه دي په تنه پوري دا سر خوښ

آخر ؤ که سر کوزي څما و یار ته که د څان نه هرڅودي شمس قمر خوښ
چه د عشق آبو ادب ښیم رقیب ته د اسلام دردونه نه وي د کافر خوښ
لك تړي وړي باز په زرکو باند هسي رنگ مي په ښه مخ لګي نظر خوښ
ترساده حسن نو خط بي ویارکوت شي د لیچنو سترګو سوري دي تر نمر خوښ
زړه مي هسي په نو خطو ښکلیو پریوت لك پریوزي و دوهي ته قلندر خوښ
خواه ناخواه به صبر خوښ مفلس حمید کا
چه خوبانو د دِ وقت کړه سیم و زر خوښ
دا هم هیڅ زندګاني نه ده ګویا کښي چه بي یاره ژوندي پایم په دنیا کښ
څه بلا سخته دانه یم نه پوهیږم چه کسیا نه شوم د هجر په آسیا کښ
توري زلفي سپین رخسار د نګار وینم د جهان په هر سفید په هر سیا کښ
غړه‌وم لـه نا څارئي هغه شان ژبه په دروغ کښ موهم یار که یه رښتیا کښ
نور عالم که په کیمیا زر کوي خاوري ما زر خاوري کړه د میني په کیمیا کښ
چرته عشق چرته د شرم و حیا ویره نڅیدل نه شي په شرم و په حیا کښ
په ورت ورت ورپسي ژاړه که یار غواړي منده کیږي دغه در په دا دریا کښ
دم قدم د کس ناکس له ډره ژغوري دا چه ګرزي لیوني تل په صحرا کښ
بت پرست وائي حمید و هغه کس ته
چه بندګي کوي د خداي په روي ریا کښ
په آشنا باند چه شي تللي آشنا پیښ په معني کښي شي په مړي مسیحا پیښ
جدائي د یار بائي توره بلا ده خداي دِ نه کا مسلمان په دا بلا پیښ
بیلتانه مي وارو پار هسي خطا کړ لكَ شي په چا نا څاپه اژدها پیښ
له حیا ئي ښکلي مخ ته کتي نه شم په لیچنو سترګو بریښ شه د بریښنا پیښ
نه به بیا مونده وعده شي د خوبانو نه به شي د چا په لومه کښي عنقا پیښ
له متصودد نا امید مه شه یك لحته خداي په زمکه کا مرغونه د هوا پیښ
څو د عشق په غم آباد یم دیرد شوي را ته نه دد بي ژړا نوره خندا پیښ

د صبا د بیلتانه له ډیره غمَ   په گل رخ یم لکه شمع په ژړا پیښ
دغه نه پیښه په ستا هسي پوهیږم
و حمید ته کاند مرگ نن و صبا پیښ

لا په مخ د صنم راغي که سپوږمئي شوه پهاله کښ   دا ئي غاښ پخوله کښ زیب کا که ژاله شوه پلاله ک
سي رنگ سحر جادو کا په نظر د شهلا سترگو   نه ئي سیال پهند کښ شته دي نه ثاني پبنگاله ک
ه وُ نبلي مرغئي په سست دام د سلولومو   هسي رنگ پریشانو زلفو کښیستم په کشاله ک
خما له غمَ شین زړه پکښ خیال د یار د لبو   هسي رنگ زیبُ زینت کا لکه مي پشنه پیاله ک
وي عین گنړه گل دي د غنچي په لمن نغښتي   که مي کوت یوگل اندام وه پروت پسبزه دوشاله ک
ال وُ خط پگلگون مخ کښي د دلبرو دا مثال کا   لک پروت وي غزیدلي خرقه پوش په دوشاله ک
کلي مخ ئي ولي ناسته په مجلس د رقیبانو   په جوار د سپیو نه وي هیڅ آرام په غزاله ک
ر تر پایه غم د هجرالت ني سوري سوري کړم   څکه یم مدام دا هسي رنگ په آه و په ناله ک

که یار غواړي همبره ژاړه څو چه در شي اي حمیده
هم په دا چه درمومندد شي په دریاب نه په ناله کښ

اي مدام د نس په زیرمه کښ رنځ کښ   په دا رنځ کښ په آزار د خلقو خوښ
و هیچا ته له تا نفعه نه رسیږي   بلك تل لك آغزي په نورو خښ
یوه ورځ به بندیوان د باز په څیر شي   چه دِ شپه و ورځ خوراك شوه د قام غوښ
د مظلوم د آد آزارو چا ته مه شه   عالمونه ئي ورکیږي له آرخښ

د مظلوم آزار خالي نه څي حمیده
د ویشتوني گذار پاس لگي په نښ

نن ساعت اصل معدوم دي د اخلاص   دا چه آخست شي تش نوم دي د اخلاص
بي نفاقَ نور هیڅ نه را معلومیږي   چه کتلي مي نجوم دي د اخلاص
یو سړي دِ څوك را وُ ښئي په گوته   چه عمل ئي په رسوم دي د اخلاص
لكَ څوك وائي سندري په مړي ناوي   تش په تور هسي دم دوم دي د اخلاص
چه روزگار د پلار و زوي په لباس شَ   رنگ و بوي پاتي نور کوم دي د اخلاص

د جهان چه د خولي خوند په لباس وران شه پري لذت زهر زقوم دي د اخلاص
د دنیا کوتي مانړۍ ګوره نظر کړه په کښي چا يبي يو چوم دي د اخلاص
مخلصان په جهان نه شته که پیدا شي
حمید خاص بنده محکوم دي د اخلاص

که په ما دِي څه اثر کولي وعظ تا ناصح را ته هاله ویلي وعظ
محبت تر ملخ شوخ کړه څما کسي غړه وي په کښي نا حقَ خلي وعظ
زه به نه وم همبره دوب پغم کښ تللي که مي لږ و ډیر و زړه ته تللي وعظ
لك پاتي له علاجَ مرګِ حال شي هسي نه مني د عشق نتلي وعظ
په عشاقو به پسند کله شي ناصحه دغه ستا شیخَ زاهد پسندلي وعظ
څه صیحت په نصیحت د عاشق کیږي څه کوي مار و لړم چیچلي وعظ
د رندانو د مجلس په شورو شرکښ آوریده شي کله کله غلي وعظ
محبت ده څو چنده سزا را کړي چه مي چري دي له چا منلي وعظ
نصیحت به دِ غوږ نه باسم ناصحه
ما حمید دي په خپل بخت کړلي وعظ

چه سړي که له سړي د دِنيا طمعَ سړي توب ئي سپي توب شي په دا طمعَ
د هغو د حیا پهه مدام ښوئیږي چه ئي واخسته د نس په هوا طمعَ
د داني په طمع بند آزاد مرغه شي زر به ستا په ځان بلا شي د ستا طمعَ
له هغو ترخه ویل شي د حق پاتي چه ئي خوله کاند خوږه په حلوا طمعَ
زر ئي رنګ د آشنائي سره وران شي چه پیدا شي د آشنا له آشنا طمعَ
دا يو څاڅکي اوبه در شي په سینه کښ خو چه پري کاندِ صدف له دریا طمعَ
د شاهي د ګدائي تفاوت ورک شي چه پوره نه کا بادشاه د ګدا طمعَ
پردي پريږده که په قطعَ مور و پلار وي د هیچا و هیچا مه شه پیدا طمع
له دغي طمعي طاعون بهه دي حمیدَ
چه کوی د نفس د پاره له چا طمعَ

و نیوہ مہ شہ پہ دوستي د دنیا خلق دا بي شرمٌ بي وفا بي حیا خلق
لک سپي چہ پہ مردارہ سرہ جنگ کا هسي جنگ کا پہ دنیا بي حیا خلق
نہ پوہیښتنہ سرہ کا نہ مخ کتنہ شا پہ شا سرہ تیریکي آشنا خلق
سنگ سنگ خلق بي مزي دي پانو شوي زماني تر ستوني تیر کہ حلوا خلق
پہ یود بہ دِ دم سترکي خوري نہ شي کہ نظر کړي د دِ دور پہ دا خلق
چہ ئي لاس لہ خیرہ ؤ خاتہ یک لحتہ څہ بہ نوي آلودہ پہ بلا خلق
لک قند هسي دروغ ور تہ خوارہ شو لک زهر هسي تو کړہ ریښتیا خلق
پہ پردہ کښي بہ د پري نہ ردي حمیدہ
چہ د لوي پہ زمانہ شہ رسوا خلق
پہ دوستي کښي سرہ وینم میرخمن خلق څکہ بایلو د راستي وطن خلق
ما تہ زهر پہ شکرو کښي ښکاریږي دا تر شهدو تر شکرو میبن خلق
پہ مجلس ور سرہ هیچري کي مہ نی دا بي زیانہ بي نقصانہ غمجن خلق
روښنائي د چا د مخ وي کلہ خوښہ د انصاف پہ تورو سترکو لیچن خلق
تر یوي رتي حیا زار و قربان شہ د شوخي د بي شرمي من من خلق
نا پکار بي مغزٌ پوست دي پہ معني کښي پہ نسبت د وارانہ خلتوا وسن خلق
پہ محنت سرہ تنزاکي لاس یمن دي څہ پہ لعلو پسي مري لاس پمن خلق
لہ نا اهلو د زرہ راز ساتلي بویہ وچمن تہ پریښو نہ شي چیغن خلق
روغو څہ زدہ د حمید د زرہ لہ دردہ
د دردمن پہ حال پوهیري دردمن خلق
چہ شهرہ شہ ستا پہ مخ باند څما عشق مسخرہ شہ د مجنون و د لیلي عشق
چہ مجنون څني پہ قبر کښي هیبت خور کمارلي دي پہ ما هسي بلا عشق
کہ پہ هرہ ساد ئي سر څي لکہ شمعٌ څان دِ هیڅوک معذور نہ کړي پدا عشق
ویرد ژلو تہ پہ لاس چنگ رباب کا چہ ئي کښینوي پہ غولي باند ورا عشق
اور پہ لوبو لکوي پہ ریښتیا لکي ژرولي دي دیر خلق د خندا عشق

دلالان د عقل پاتو شي بي دخله چه په سر ئي خود آغازه کا سودا عشق
لکه اور په وچ واښه باند څوک بل کا هسي کار کاند په زهد په تقوا عشق
څوک ناحق په خوله دعوي او ريښتيني کا دم قدم کله پټيږي د ريښتيا عشق
بيا ئي نه مندد خندا د گل رخانو
که شبنم غند حميد که په ژړا عشق

که شاهان و تخت و تاج ته لري شوق عاشقان تاخت و تاراج ته لري شوق
نه دي هسي زيان من رنځ د عاشقي چه رنځور ئي و علاج ته لري شوق
د يوسف په دود به پريوزي د غم چاد ته چه د عيش و معراج ته لري شوق
د هوس له کناري مي خاطر سوړ شه د غمونو و امواج ته لري شوق
دوبوي پخپله ځان حاکم د عقل چه د عشق د ملك خراج ته لري شوق
څه کرم لري د ښکليو برندي سترگي چه د قتل احتياج ته لري شوق
خواه نا خواد به خوار حميد بار برداري کا
چه د ستا و تنگ مزاج ته لري شوق

چه لوړ و چا ته پورته کړي يا سوك محسره کا ملوکي خپله ملوك
چه په سوك سره څوك حق له چا وُکاږي دا هم نه دي په معني کښي څه سلوك
د دنيا د سود دپاره بايده نه دي چه گريوان کړي د عزت په چا شوك پوك
په محنت سره توك توك سړي پروت ښه دي نه ولاړ په درويزه د يوه توك
له دي هسي احمقئ پناه وُ شه چه دِ نور په مال خوښي کا ته په دوك
چه په نام فلك زده دي وياړ ئي مه کړه که دِ چري لکيدلي دي تش نوك
د فلك غوړپکي نه دي تا خوړلي څکه ږدي هسي دستار په تندي هوك
هسي باد دي نفس شيطان درکښي پو کړي چه پر ناحق بروس کرزي هوك پوك
هسي شان په لړه لوړه مبدل شي چه گونگټ آخلي په طمعه د املوك
که انبار آبروي بايلي کسيره مومي په دا زيان دِ پروا نه کيږي يو چوك

بیا د کوم ناکس له لاسَ حمید ژاړي
چه په شان د ویره ژلي وهي کوک

هسي چري دي آسان د عشق پښساك          چه به شي په کښي د چا خوراك پوښاك
هیڅ له شرمَ را ته مه وایه ناصحه          د برمنډ له اوبو څه اندیښنه باك
زه او صبر سره عشق زمکه آسمان کړو          په آسمان د هیچا نه رسي ادراك
محبت را څخه زړد له واکه وُ یوست          پري مي نه چلیږي هیڅ د صبر واك
په سرپوښ محل کښي نور د آفتاب نه وي          ښه دي زړه په یود غم سره چاك چاك
د هغه کله په تخت باند آرام شي          چه ئې زړه وي په ښه مخ پسي هلاك
له اغیار سره کډون دي د یار هسي          لکه څوك کا سره کډ پاکو ناپاك

حمید وُ رغوي څه رنګ له خوبانو
چه ئې خداي په دوي موقوف کا مرګ و ژواك

که تاودد وائي که کلك          که لوړ کړي که کوتك
په دا پوچو به نادانه          هیڅ وُ نه کړي د فلك
شدني در باند وُ شو          که د كك ود که د لك
بل علاج نشته بي صبره          دغه رنځ لره بي شك
چه په شوي کار څه وائي          پوچ پوچ وائي وهي جك
په لړ تاو مه شه نادانه          لك دول شهرت ته تیَك ․
نه مدام په سري غم وي          نه ښادي په هر دمك
ګاد سري خوښ و خورم وي          ګاد له غمَ وي هلك پك
کله وري کلمي نبښتي          کله موري تر حلقه ډك
ګاه مزري شي میدان نسي          کله شي د سوري مرك
چرته ویر چرته سندري          چرته خوار چرته اوزبك
که ئي کار په یود رنګ وي          نه به وه فلك ابلك
نه په تا تنها ستم دي          د دي دور یکا یك

په دا زور کښې دېر خلق — د ستا مله دي چك په چك
بلکه لا لري نظر کړه — تر سما و تر سمك
په هر چا دي يو يو غشي — د فلك له لاسه لك
دا وبا ده لګیدلي — په هر کور په هر درك
مي بايد چه په دا دام کښې — نه کا پرک مرغ زيرك
د حميد صبر سرور شه
په ستم د هر ممردك

هر پرهار د نوك هلال شي په سينه څما ملوك — له غمه ئي د وروڅو خښوم په سينه نوك
په پيغور د هغو ستركي شبنم وُ كاږي په توك — له خوب لك غنچه كا په طلب د ګل اندامو
لور د لورد شاخ د ګلو را ته څان ګواښي په سوك — دم چه اردم بي ياره د چمن په خيابانونه
آه فرياد مي خاطر هسي پرکي پرکي كه توك توك — ګل د يار له مخه پاڼي پاڼي تار په تار شي
هسي رنګ لا غلبه شي په زغمل د ميني دوك — ګل څو خپه كيږي بوي لا پسي زياتيږي
كله شي له ليونيو كار د عقل په سلوك — ه ما و ته ناصحه پند د صبر د سكون كړي
دا په خيال د سروي قدو په نارو سرد حميد شه
كه قمري په سر د سروي فريادونه كا په كوك

هر سردار چه د خپل قوم د بدو خيال كا — آئينه ده د خپل څان حال د جمال كا
پريكوي تر خپلو پښو لاند بناخونه — چه بدي د عزيزانو په زړد نهال كا
عاقبت هغه سردار شي مردار پاتي — چه ئي نس د خپلو بدو ته ليوال كا
چه د بل و سر و مال وته هوس كا — تر هغه پخوا به ورك خپل سر و مال كا
هم هغه به په كښې پريوزي دا متل دي — چه وبل وته كوهي كني وبال كا
د هغو په خونه پيښ جنګ و قتال شي — چه هوس د چا د جنګ و د قتال كا
چه له خپله لاسو پښو شي بي مجاله — له غليم سره به جنګ په كوم مجال كا
په پردو مړانه نه كيږي بي خپلو — له لحده دا آواز جمال جلال كا
كه باښه د باز ښكار په دكه واخلي — هيڅ وُ نه كا خوڅان ستړي په كښال كا

له زرګونو بري نه شي وري سل ګونه — مګر خواه ناخواه ئي فتح ذوالجلال کا
چه تر خپله حده پښه غزوي وراندې — زمانه به ئي جمال غند پایمال کا
چه په زور د بل جامه آغوندي ځان ته — نا شسته به ئي د خپل زخم دستمال کا
پردي بخري هیڅ نه دي خپلي کړي — بلک خپلي به پر بایلي چه دا خیال کا
د جمال په څیر به وُ سیزي پرخپسر — چه پېره هر پروانه په دا مشال کا
نا لایق چه لایقت په هنده غواړي — د بریښنا په رڼرا ستن پیبي جنجال کا
هم دا هسي نتیجه په لاس ور دروړمي — چه د ښو په بدله کښي څوک ناخوال کا
نه نیکي په ناکسانو څرګندیږي — نه په بت باند اثر آب ذولال کا
لک لوي کړي لیو بچه در باند ترپلي — حال څموره د جمال هم دا مثال کا
لک ګرم چه په حسن حسین یزید وه — هسي ګرم پموړ جمال وه که څوک سوال کا
دا چه سوي دي له هسني نا خارئي — لک سویه په سپي ترپلي انفعال کا
نا خبر له حاله هرچه وائي ښائي — خبر دار به اُم په عذر قیل و قال کا
د هغو په سبب تل سوزي نور خلق — چه د توري آسره ورکه په دیوال کا
خوبد نام په دا جمال خداي خدرزي کړه — ګنړه هره چار په خلق خپل اعمال کا
په ازل د سود و زیان سودا دي شوي — ملامت څه لره خلق په دلال کا

دا دودونه د دِ دور دي حمیدهَ
یو د بل په مرګ ملال کا بل خوشحال کا

څو له نس سره وُ نه دري په کلکَ — په نرمي به کله خلاص شي له اوزبکَ
واقعي نه کانړي پوست نه غلیم دوست شي — په بندګي د نس مه غلیږه مردکَ
لړ لړ ښه هم مناسب له نسه نه دي — غله میړمن کاند ځان موړ په څکه څکَ
څه به ځاي د خداي د یادو په کښي کیږي — چه د ګیډه وي مدام په طعام ډکَ
که دِ زړه دي چه صورت مي نوراني شوي — واخله پند د کوتي ګیډي له فلکَ
له فلکَ سوال د نس د پاره مه کړه — در کوي په کچکول کښي اوړمکَ
چه ئي ږدي له کبره هوك په تندي باند — دا دستار به د کوز پریوزي په غوړپکَ

گوره کوز تر هر چا نس په کمینې کښې که جنده غواړې د عرش دپاسه لګ
چه له اهلَ د دنیا محبت نه کړې هم دغه دَ امن لورې دې بې شګ

له دې خپلې کمېنۍ عاجزۍ
اې حمیده د خود بین د ستر ګو ککه

نه دې ګل د ستا د مخ محې خوش رنګ ګل جلوه کا په یوه رنګ ته په سل رنګ
چه ئې ستا د تنګې خولې تصور واخست په دا فکر کښې غنچه شوه په زړه تنګ
دغه ستا د راتلو رو ګورې دلبره دا چه سروې هسکه هسکه کا غړنګ
چه سیالې ور سره زرکې په یانه کړه وَلې څان له دغه شرمه تر ګړنګ
دا څما د آه لوګې په کښې لیده شي آئینه دِ د مخ نه ده په خط رنګ
چه ئې تاغندې دلبر په څنګ کښې کښېنې د هغو دماغ بلند وې تر اورنګ
چه په سیند څما د اوښیو نه ترمیږي طایفه ده د خوبانو په زړه سنګ
زه د ستا د حیا کوز و کتو کړم هم شوخ چشم هم بې شرمَ هم بې ننګ
هسې رنګ بڼو غشي رساولي چه هیڅوک ئې سلامت نه څي له جنګ

پس له مرګه د حمید هسې ژړا شي
اې په اور د ښکلې مخ سوې پتنګ

ستا د ش ، ، خیر کله دې د ګل رنګ دا جلوه کاند یو رنګ هغه بل بل رنګ
تا مې ِ رنګ هسې له صبره سره وران که لکه وران دې د پښتونو د مغل رنګ
۱ نه ګورې خپل رنګ په آئینه کښې هسې رنګ څما له حاله پوښته خپل رنګ
یارِ د یار له دردَ غمَ دلګیر بویه بد شي نسم سره د ګلو د بلبل رنګ
نوې سر به لکه شمع ور ته نسم که ښه کیږي څما ستا په قتلول رنګ
هسې زړه څما وُ کاږي له ګوګلَ لګ آخلې له نکریزو په منګل رنګ
که هر څوشه پیچ و تاب له ډیره رشکَ ستا د زلفو په خیر نه شه دِ سنبل رنګ

دغه خپل خونخواره لب پوښته دلبره
چه تغئیر دې د حمید په څه کبل رنګ

چه پیري مي رېږه سپینه کړه ملا بغرګ بویه قد د سروي قد عصا تر تخرګ
په راستي مي د خپل آه هسي باور دي چه همدم به یم له ښکلیو پس له مرګ
عشق په زړه د تن پرورو کله لګي دا چه نه کا اور اثر په لوندد کرګ
پرېږده ما په عاشقي کښي وړي تږي ته ناصحه ور څه په ډکه ګېډه ارګ
زړه د یار غمونو هسي هډ و پوست کړم لکه ونه په خزان کښي شي بي برګ
که هاله وم یله اوښ په صورت خورب اوس غمونو د عشق ؤ یستم له وړګ

په ځواني د عشق غمونو حمید زوړ کړ
بي مودي يې رېږه سپینه شوه ملا بغرګ

څه له کا د حسن لاف صاحب جمال خود به شي انکشت نماي لکه هلال
که يې سل څله څوك لعل لعل بولي په ستايل به لعل نه شي کوتي لال
چه د ترکو و جمال ته څوك هوس کا د مېږي په خیر کا مرګ ته پر و بال
لك لوبي کا هلك په ختو خاورو هسي لوبي کا عاشق په سر و مال
خودي لري کړه له زړه که عاشقي کړي نشته بي دغه زوال دا کمال
دي مذهب د محبت سراسر حال دي دلته نشته هیڅ مجال د قیل و قال
دا په وچولي تور خال څما د یار دي که آزان لره ختلي دي بلال
د خود بین سخي له دېري پاسلوني خوله په لوږ چینګه ښه دد نه په سوال

د حمید د نیستي ویار مه کړه زرداره
دربه نه کړم دا شړيې په دغه شال

څه یله یله وئېږي سر مغزن ولي نه غواړي له خدایه آمرزن
دېر مدت له شرمه ننګه زهیرېږي چه دِ کار شي د دنیا تر چا تزن
هیڅ پروا د دین په کار نه کړي که وران شي اي بي ننګ بي فرهنګ نه یرزن
لکه طفل در ګوهر په روټيي پلوري هسي ته کړي په دنیا د دین بازن
ته چه مینه په دنیا کوي دین غواړي تیروي عمر په تشه باد پیزن
د دنیا په مال نادان سړي هوس کا کاند طفل د درمو په آس تیزن

هیڅ خوارہ نه دي حرام تر دي حلالو باري خپله خوړ و لوړ وي کرمیزن
هیڅ دِ نه کړه د توبو په جارو صافه د مرګ لار دِ هسي پرېښوه آغزن
چه له ښو ښو مړنو دِ میدان یووړ
شاباش شاباش د حمید فکره تور زن

که ور سر کړي ښه خوراك ښه آغستن خلاص به نه کړي د دوزخ له اوره تن
څو دِ تن په عبادت آراسته نه شي غره مه شه د صورت په آراستن
دا کارون چه ئې ته نن په هوس کړي وینم زه په کښي صبا د ستا کشتن
چه په مرګ لك مرداره شي خسا بویه په ژوندوني آهو مه شه د ختن
نادانان دین ورکوي دنیا په آخلي دانا نه که دا دادن دا ګرفتن
بي له تا چه ګور قیامت د ژخه هیر شو ګنړه هر غریب تالاش کا د وطن
هرګز نه درومي آواز له ډکه جامه له نقصانه دِ پیدا شه شهرتن
چه دلي دِ کیږي ناسته له بدانو هوري مه غواړه له نیکو ورخستن
دانایان به در ته غوږ باسي حمیده
نادان څه پوهیږي ستا په در سفتن

سر څما له سرِ دردہ د خوبانو هسي شان شه لك ګنج د در مرجانو
په مجمرئې د مخ اور لوېږي له شوقه د سپند په طور کسي له چشمانو
ګفت وګوي به ئې بیا نه مومندہ وړه خوله که چراغ ور ته بل نه وي د لبانو
په خرپوڅو صبر زهد څئي تښتي چه په ګرت کا تیرہ غشي د مژګانو
په شانه ئې کړي خوري حلقي د زلفو که زنځیر له غاړي ؤ خوت د بندیانو
خال و خط ئې هسي چاري په مخ ؤ کړي لکه ګل شي تر پښو لاندِ د هتیانو
لك یو لیوني بل ته ملامت کا په دا رنګ دي حال څما د دانایانو
چه شومي د زاهدانو بده نه شوه چرته بده سر بازي شوه د رندانو
چه حمید کا په میکونو شونډو مینه
زر به کښیني په حلقه کښي د مستانو

ربَ فهم کړي د يار را ته په ښو    د رقيب له خرخښو مې کړي په ښو
هم په دا چه د عشق اور پري زړۇ لګي    دا ځما صورت کوډۍ کړي د وښو
د آشنا د غم توبري ځما زړګي شه    کړي نه شم ځکه حکم په ۇ کښو
هيڅ شفقت ځما د يار په رقيب نشته    محض مړي پوري ځان ځما په مښو
رغړوي مي زمانه له محتاجۍ    لکه سپي د چوهاړي رقيب په پښو
په آشنا پسي مي روح ذ تن له سرايه    د سفر په عزم لاس کيښو په پښو
ډيرو شولو د هجران خضر پښيمان کړ    د حياتو د اوبو په بدو ځښو
له خلوتَ و بازار ته را ځکول شي    زاهدان د عاشقۍ په خرخښو

غم که زړه د حميد هسي ځيري ويري
چه حيران ئې په ګنډل شم د ريښو

په خيرات چه بارد حسن لاس پاس ۇ نيو    نمر سپوږمۍ ور ته کچکول په لاس پاس ۇ ن
مهتر خضرئې په عمر خريدار شه    چه ئې خال غلام د مخ په نخاس ۇ ن
که ځوك نسي خويو زړه په اخلاص نسي    باري ښکليو درست جهان په لباس ۇ ن
را که بخت مرهور يار ځما په خوا کښي    ګنړه چا ليد کبوتر چه کرګاس ۇ ن
شکوفي شکفتګي په شبنم را وړه    که مي سترګو په ژړا کښي اماس ۇ ن
چه مي يار په لور د مهر ګذر نه کا    خداي زده نه پوهيږم بيا څه وسواس ۇ ن
زر کا نور ثنا خواني د ترکو څه شو    که يوه ناصح زبان د سپاس ۇ ن
چه ئې تل سترګو کول په کښي خونونه    د مخ سبزَ ئې د ږيري مواس ۇ ن

چه نازل شه د عشق تندر له آسمانه
ما حميد د غم لايق ور ته لاس ۇ نيو

چه اقرار په ناپوهي شه ښه ئې پوهَ    چه د پوهي لافو شاف کړي.نه ئې پوهَ
چه دِ پوهَ په خپل عيب نه رسيږي    ترو په عيب به د بل پِهِ څه ئې پوهَ
که دِ ۇساته خپل ځان د نس له مکره    وايه ځان و ته هاله چه ته ئې پوهَ
چه د دين دانائي نه لري په زړه کښي    بيهوده د ځان خوښي په خوله ئې پوهَ

ولې غل د خپل کندړ در نيو نه شي چه د نورو غلا ښئي په غله ئې پوهَ
اول خپل ويران ويجاړ کارونه جوړ کړه که ښتيا د سازول په وله ئې پوهَ

چه مي بې سوالَ مطلب کوي دلبره
څه عجب څما حميد په زړه ئې پوهَ

بيهوده مي ور ته زړه هوسيده عاشقي ده څړه نول و پخسيده
بي له دي چه نا مرادي ته وُ رسيږي ګنړه نشته دي و مراد ته رسيده
زړه مي ميني د حلوا نمړئي ګنړله باري اوس وُ لمسيده چه بلوسيده
کافران به د کتار مسلمانان شي که رقيب مي په ژړا وُ ترسيده
عشق او صبر سره لري دي ناصحَ کله اور کاند له خسَ بسيده
دا د ميني نتيجه ده چه ژاړيږي چه ليمه مي په ژړا وُ پړسيده

د عيسي تر دم کم نه دي اي حميده
پټ په شونډو کښي د ښکليو مسيده

په حرص که مخ د زمکي کړي پړه را به نه وړي تر نصيب زياته زره
په آخري پسي ديرمه زغله هوښيار شه په آخري آخري سړي شي مخسره
وړي تړي پروت په خپلي پوزي ښه ئې نه په تخت دپاسه ناست د بل کره
ته چه دبل عيب ظاهروي خپل به ظاهر کړي هيڅ پروا دِ نشته خو خپل ځان سنبال لره
د منت پلاو دِ زهر شه چه مومي د محنت سوي سکړک له ساګ سره
د نمرود ماشي قصه کړه در په ياده که هر څو ئې په خپل ځان باند غره
کړه د مچ له بونړهاري که هوښيار ئې د مزري د تنړهاري ترهره
هغه دم کبر دماغ د سواره در شي چه دِ بر شي لاس په تانګ په خرخره
له دِ خپلي مغرورئې د سپي لګئې شوي زه دِ خوان ته بولم څي ديران لره

څکه شعر د حميد په ګوته ښو شي
چه ئې عشق په سر کښي کيښوه طره

چه ئې سپک کا عاشقي لک بنړه هغه کس تر کوه. قاف درونډ ګنړه

چه ایري د بي قدرۍ شي پوري مښوي    آئینه د هغو زړونو وي زنګړه
له دانا سره نادان کا اوچي پوچي    هیڅ به بت په ترپو مات نه کا چنړه
له کیني په بینا سترګو بشنوا غوړو    د عیسي په دم قدم ژنده کنړه
که څوک نه پټوي سترګي په حرامو    شي په پښو کښي پیژانده پردي پنړه
چه حمید اوربدوي لاس د یار زنځ ته
کاشکي شاخ د ولي ؤ نسي منړه
څه حکمت دي چه مي نه چوي لاسینه    یاره ستا دِ رقیبانو په کینه
چه دِ زه او رقیب سم کورو ومخ ته    دِ کرمونو کړه ورسته څما اینه
ستا په درکښي رقیبان را باندِ بلوسي    نه ګروهیږي په مکه په مدینه
لکه زه چه ستا له غمَ څواني مرګ مرم    واخله هرڅوک هسي فضل ؤ مهینه
ته څما په ژړا نرم ګرم نه ئي    زه شوم ستا په غم کښي وریت لکه نینه
همنشین مي ستا د غم د آه په تاب کښي    آغوستي نه شي له ویري پشمینه
لکه توره د جلات تل خونریزي کا    څه به نه وي د ستا حسن رنګینه
ستا د درد سپیو قدر مي بیا نه موند    که هرڅو مي ور ته څان کړ کمینه
چرته شیخ چرته تندي د عشق حمیده
چرته جنګ چرته بي دله ارتینه
بد دِ نه مني دلبرَ څما کاته    بلبلان په ګلو کاندِ آلواته
لایقت د وصل نه وینم په څان کښي    په کاته مي څکه کسي ؤ واته
عاقبت را څخه یوور د ستا سترګو    که هرڅو مي زړه په صبر کښي ساته
ته خبر له خپله تاخته ئي که نه ئي    چه دِ کور څما کړ صبر ؤ ناته
په تندي مي له کیني کاږي ؤریږي    چه دِ وینم رقیبان په در پراته
د هغه در و دیوار خضر دربان شه    چه پرِ کیږي ستا واته نواته
چه خندا دِ کندکوهي په زنخدان کښي    ما هاله په کښي لیده خپل پریواته
پټیلي په ما هاله دا بي دلي وه    چه د خیال په دلداري را ته راته

٢٧٧

عبدالحمید

په تمام عالم قرار قراري ده
په حمید د غم مغل دي و خاته

- چه مهتر کا له کهتر سره آري — بدلوي له سادګي شال په شړۍ
چه بل بولي د سپي زوي هغه سپي دي — نه کا سپي سره نسبت زوي د سړي
له هغه چه ولي سپي په کاڼي لوټه — دا بهتر دي چه ور واچوي نمړۍ
مي توبه شه له دغه نام نهانه — چه د ودروي د بدو لکړۍ
په پیري کښي د ځواني چاري نه شي — مه ږده اي زړي بوډي په سر دړۍ
هره چار له خپله وقت سره زیب کا — سپین ویښته نه دي د ځنړي د څړۍ
په دنیا تېرېدد څه په کار نه دي — څه څما له دي بوډۍ غاړه غړۍ
د بهترو په ځاي مه کښېند کهتره — د رینمو په نرخ مه پلوره وړۍ
چه دا هسي سپین سپېځلي نصیحت کا
مه کړه خداي د حمید ژبه تېړۍ

که هرڅو په ښار پاڅي په ښار کښیني — چه د بل په در کښیني په دار کښیني
دا خواري په خواري مه ګڼړه دولت دي — چه په خپله پوزي خوار و زار کښیني
ورک هغه ناست ولاړ شه که په تخت وي — چه مدام په ویار پاڅي په ویار کښیني
سپک به پاڅي د هغه مسند له سره — چه په سر د غریبانو بار کښیني
دل جوئي د خلقو کړه د ښان په سولو — که د شمعي په خیر بر رویدار کښیني
ولي نه کړي د مظلوم له اوښو ویره — ولي مځ ته د سیلاب قرار کښیني
چه نه و خوري نه ئې ورکړي مه ئېویني — که په ګنج باند په خیر د مار کښیني
دا دنیا د قرارۍ مقام نه ده — بیهوده د پول په سر قرار کښیني
سرخ روئي به د د لعلو شي حمیده
که په خاورو کښي له خوارو خوار کښیني

۲۷۹

## خواجه محمد بنګښ

په سپین لاس ئې پورِ کړي دي حنا که سره کړي دي په وینو د آشنا
د غمزې طاقت دِ نه لرم دلبره زه هرګوره ډیر عاجز یم نا توانا
خماري سترګو دِ ډیر عالم آزار کړ که ئې ته د ظلمَ منع کړي جانا
ستا ویشتلي به روغ نه شي بې وصالَ که دارو لرهٔ ئې رایشي سینا
تورِ زلفِ دِ اوریځ د بهار دي مخ دِ کاند لکه نور په کښې بریښنا
لیوني دِ پر حلقه د زلفو بند شو ویساه نه کاند په دام مرغ دانا
د ښایست محې دِ نشته په عالم کښې زړه مې چوي ستا له ډیري استغنا
په احسان سره مشهور په درست جهان ئې
ولې دِ خواجه محمدَ نه آوري وینا

یارَ ستا بیلتانه هسې کړم بې تابَ خوشحالي را باندِ نشته بې عذابَ
سور خوناب مې په بارخو باندِ بهیږي زړه مې درست پاره پاره سینه کبابَ
آبروي ځما د مخ ستا په ژوندون دي بې له تا نه سور په وینو شه بې آبَ
د دنیا له سود و زیان خبر نه وم په دیدن سره دِ مست کړم بې شرابَ
که ئې غوارم په جهان کښ نه ئې مومم ښایسته دیدن دِ شه پر ما نا یابَ
غوټې خورم کله ډوب کله څرګند شم وتل نه شم ستا د بحر له ګردابَ
بې له تا نه پر ما ملك توره تیاره شه په همهٔ اولیاؤ کښ آفتابَ
ته دریاب ئې پر موجونو بهیدلې هیڅ ؤ نه څکه یوه ګوټه له دریابَ
تسلي مې د خاطر په نور چا نه شي بې له تا نه اوس ځما قطب الاقطابَ

ما وِ تل به په دنیا سره ژوندي یو خبر نه وم د مرګوتي له سیلابَ
د ښایست حساب دِ هیڅ نه وه دلبره مخ دِ چا ته څرګند نه کړ له نقابَ
ته قبله وي د هر چا د حاجتونو ستا دعا د خدايِ په در وه مستجابَ
هغه کار کړه چه هوري پرِ نیوه نه شي هغه مه کړه چه عاجز شي له جواب
بي له خوبَ له خوراکَ نور څه نه کړي راشه مه کړه وُ ویریږه له عذاب
لکه خس هسي به تا پر مخ کښې یوسي خلاص به نه شي د مرګوتي له سیلابَ
ته د عشق په لذتونو خبر نه شوي په سراب دِ ځان مشغول که له دریابَ

زه خواجه محمد تمام په ګناه ډوب یم
مګر وُ مي کارِي خدايَ له دي دریابَ.

که دا ما غوندِ غریب پریوزي و اور تَ ستا سنګین خاطر به نه شي کښته پورتَ
د عاشق له آه سړه نه ویریږي ته هرګوره ډیر غره يُ و خپل زورتَ
یا وفا دِ هیڅ زده کړي چري نه ده یا خو نه ګوري له کبره و سر تورتَ
ګوتي تورئ کړي پر ما يُ کړي را پوري زه حیران یم ستا د سپین ګوتُ تورتَ
ستا پعشق کښي هسي چاري پما وُ شوي چه له شرمَ کتي نه شم کلي کورتَ
نور عالم مي همګي لیوني بولي دواړه غوږ مي دي نیولي و پیغورتَ

د اورنګ په بادشاهي کښ مي نیاو نه شي
زه خواجه محمد به وُ وزم و بل لورتَ

ه در ته وایم د دلبرو کرامتَ هیڅ ور خبر نه یم زړه مي یوسي له صورتَ
ه مي جفا کاندِ هر څو زه به يُ وړم خدايِ دِ په یاري کښ هیڅوک نه کاندِ بي پتَ
که دوراندِ خپسر پریکړم په خدمت کښ هیڅ مجره مي نه شي لا په زړه نشم ملامتَ
اوبه نشته چه مي تنده شي پرِ ماته زه به هسي ګرزم سینه سوِ تر قیامتَ
ي تويوم دلسوزي يُ پر ما نه شي خدايِ دِ د هیچا نه که مخدوم بي عنایتَ
و خاص به واړه په دا باندِ هم پوهیږي کله څوك طبیب لره ور درومي بي علتَ
رنځور زیات کا هیڅ صحت يُ مونده نه شي نشته دي حاذق طبیبان لاړ له ولایتَ

سخ د تندرستانۍ چه محتاج د دارو نه دي هرچه رنځوران شو روغ به نه شي له زحمت

نحنۍ قسمنا ئي په قرآن کښې دي راغلي

څوك به ئي بدل کا د خواجه محمد قسمتۍ

زړه مي يوور مهرويانۍ الغياث
له دي هسي دلبرانۍ الغياث

بي موجبۍ ئي ستم را باندِ وُکړ
جادو کرو ساحرانۍ الغياث

سرو لنبو لړه ئي وري په سخ پيلي
کباب کړي قصابانۍ الغياث

د زړه ترس ئي په هيچا باندِ به نه شي
له دي هسي ظالمانۍ الغياث

هيڅوك نشته چه څما غورپر وُ شي
زه په چا وُ کړم يارانۍ الغياث

تر قيامت به نور څاي لړه را نه شي
چه تاخت پرِوُ شه د ترکانۍ الغياث

پر ناحق ورانوي ودان ښهرونه
تفحص نه کا د ورانۍ الغياث

چه حبيب مي په کشتن سره راضي شه
په چا کانږئي رنځورانۍ الغياث

د خلوت په سراي کښې ناسته بي پردي ده
تر چاپير د عاشقانۍ الغياث

په ميدان د سپين جبين باندِ ئي راغي
تور لښکر د حبشيانۍ الغياث

تر غورِونو ئي پر ما باندِ را کښلي
د کړو وروڅو کمانۍ الغياث

پورِ وورِ مي ختلي تر څيګر دي
هزار تير د تور مژګانۍ الغياث

درست ئي وُ يسنتم له عقلۍ له شعوره
خماري سترګو مستانۍ الغياث

خلقي ئي د زنخ په چاه بندِ کړِ
هرګز نه ووزي له زندانۍ الغياث

د غمزو په ناوکيو ئي غلبيل کړم
په کښې تللي تر پيکانۍ الغياث

تورِ زلفِ ئي پر مخ باندِ پرتِ دي
ګنبج نيولي ښهمارانۍ الغياث

د خواجه محمد له حالۍ خبر نه آخلي
له دي هسي سنګ دلانۍ الغياث

زړه خواجه محمد مرم علاج مي کانږئي

جکي جکي طبيبانۍ الغياث

که څښتن شي د دنيا د تخت و تاج غره مه شه عاقبت به شي تاراج

پس له مرګۍ به همه سره يکسان شي که ګداي که مهاجن وي که مهراج

٣٨٢

## خواجه محمد

د دنیا په چار مه کړه ابتهاج — چه آخر دِ ځاي دي تورو خاورو لاندِ

که هرڅو ؤ ساتي لوښي د زجاج — د اجل په سنګریزو سره به مات شي

تا به نه کا خداي هرګز د چا محتاج — که حاجت روا کوي د حاجت مڼ

چه د جوړ دي دا پنځه ورځ مزاج — چه آشنا درباندِ پيښ شي لوي همت کړه

بي زیورَ ناوي نه لري رواج — ښایسته کړه خپل ایمان په عمل باندِ

که دِ بل کړ اندرون د عشق سراج — دا سیاهي به دِ همه له زړه نبیرون شي

کله کيږي په لښکرو په افواج — هغه چار چه د عشق په جذبه کيږي

څه په کار دي بیهوده صورت د عاج — که عاشق په صورت ووړ په زړه لوي دي

یو مجنون دوهیم منصور بن حلاج — عشق رسوا کړ په دنیا او په عقبا کښ

که په زور آواز ؤ نه کېښلي دراج — په ځنګل کښ ښکاري څه ځن خبروه

دا د ظلم داغ شه پورِ په حجاج — له کسري د عدالت نامه شود پات

په هيڅ رنګ به ئي پوره نه کا نساج — د دنیا د تنستي بوده نیمګړي

د هر چا د پیغورونو شه آماج — که عاشق ئي له تهمتَ مه ویرېږه

د خواجه محمد ګناد و خداي ته څه دي

د کرم بحر ئي درومي په امواج

ؤ څکه د عشق مسته پیاله شهد و شکرد — څو به د دنیا په حب کښ کرزي نامردَ

مینه پر فاني دنیا مه کړه که مزکه زرد — غم د آخرت کود طالبَ چه باقي دي

مینه د دنیا دِ په خاطر باندِ سنګردَ — پند د ناصحانځ هيڅ اثر در باندِ نه که

عامه خلقه ئي له لذتَ نا خبر دَ — سخ د عارفانځ چه د یار په یاد مشغول دي

راشه آئینه پر د زړه صافه کړه له ګردَ — ذکر د کامل د خولي صیقل دي که دانا ئي

خلاص له نورَ غمَ مشغولا ئي له دلبر دَ — ذوق د عاشقانځ چه د عشق له میو ؤ څښي

سر و مال پرِ دواړه ؤ ښنده خواجه محمدَ

ؤ غواړه یوه ذره د پیر کامل له دردَ

څکه تل مي سریکار له آه فریادَ — غه مین آشنا مي نه ووزي له یادَ

اندرون کوګل مي درست پاره پاره دي — له بي دردَ احوال پټ لرم زیادَ
دا مین آشنا څما کله وُ هیرېږي — چه د ده مینه څما په زړهِ بسیا دَ
رنځوران په جهان نشته دي عالمَ — دا دارو کوڵ طبیب ته مهیا دَ
رنځوران واړه خواړهِ دارو ګنړینه — چه طبیب ئي ور کوي سقمونیا دَ
غافلان په زړهِ ړانده دي نه ئي ویني — لك نور په درست بدن د ده ضیا دَ
دنیا پریږده حقاني مینه وُ غواړه — ته دغه اندیښنه مه کړه چه نسیا دَ
په کامل یقین ښکاري تر مطلب رسي — ته د صبر هنر زده کړه له صیادَ

اي خواجه محمدَ پیر کامل وُ غواړه
توجه د کاملانُ کیمیا دَ

نن مي وُ لیدلِ ښایسته سترګي خمارِ — زړه په دواړه لاسَ تندي وهم وهم زارِ
زړه مي سباهي لاندِ کا عالم وائي بلا ده — زلفِ ئي پر مخ باندِ خورِ شوِ تار په تارِ
زړه له دیره غمَ لیوني ور پسي شوم — که مي ګریوان څیري تر لمنِ پارِ پارِ
زړه ور پسِ ګرزم د یوه دیدن دپاره — نه ګوري لهٔ کبره هسِ درومي په تلوارِ
هیڅ پروا ئي نه کیږي که وُ مرم عالمَ — ما غوندِ ئي څو په درِ پرتي خلقي خوارِ
چه قرار آرام ئي واړه له ما یووړ — څکه مي پر مخ اوښي بهیږي لار لارِ

سل څله ئي بولي بیا ئي وُ شړي چه درومه
کا دِ د خواجه محمد په سردا هسي چارِ

مه کړه دیري آشنائي و ته وروړ — نه ویني هجران تاختونَ کاندِ لور د لور
تله دي تیریده دي دا جهان دِ مقام نه دي — شاه دي که ګداي دي خو به ور یشي تر ګور
شیخ دي که ملا که په علم دانشمند دي — هیڅوك به خلاص نه شي په هنر د مرګ له پور
هرچه عارفان دي مجازي مینه به نه کا — نشته دي بهتره بي له یاره مینه نور
ته چه دیر هوس کړي د دنیا پر لوئي باندِ — څه شو فکر وُ کړه مجلسي یاران وُ ګور
زه له خپله یارَ سره خوښ په خواب وده وم — لاس تړلي بوتلم بیلتانه سورو لـه کور
وار په وار همه واړه مین له ما جدا شو — درستَ مي په غم سره د زړه تخته شود تور

زه خواجه محمد د بیلتانه په لنبو وُ سوم
ځکه مي تر خوله آه فریاد خیژي په زورَ

چه پیدا ئي ته دپاره د صواب کړِ — نه ښائیږي اي سړيَ چه عذاب کړِ
شپه و ورځ ثنا صفت کړه له خالقَ — چرِ نه وي په لحظه کښې ځان کړیاب کړِ
ته په تخت د قناعت کښینه بادشاه شه — څه منت به د امیر و د ارباب کړِ
د دنیا عمر خو لږ دي زر به تیر شي — نن دِ وار دي که به ځیرمه د حساب کړِ
تنعم د دنیا مه کوه هوښیار شه — چرِ نه چه وران ودان سره خراب کړِ
دِ مرګي سیلاب عالم سره لاهو کړه — څه تیکاو به ته و مخ ته د سیلاب کړِ
عاقبت به د کوچمال په نارو ویښ شي — که هرڅو د بیچونړو د پاسَ خواب کړِ
په هیڅ رنګ به خلاص نه شي له مرګيَ — که چاپیر تر ځان اویا زره حجاب کړِ
شیرین عمر لکه واوري ویلي کیږي — لا تر کومَ به سرور په چنګ رباب کړِ
کله خوید کله پخه غله روده شي — څه امید به ته پر شیب و پر شباب کړِ
اي خواجه محمدَ ژاړه ویر د ځان کړه — که هورِ دِ خداي پښتي څه به جواب کړِ

د خواجه محمد امید ستا په کرم دي
د ځواب طاقت نه لري که عتاب کړِ

که نظر په نعمتونُ د ښه خداي کړِ — ته به کله د یوه شکر په ځاي کړِ
یو نعمت ئي د اسلام در لره درکا — بیا ئي لاندِ تر سایه د لوي همای کړِ
همیشه لکه بلبل چه ترِ ځاریږي — چرِ نه وي په آخرپسي واي واي کړِ
لاس و پښې به دِ عالم نسي پر مینه — که ته ځان د فقیرانُ خاك پاي کړِ
و مقصود وته به هله وُ رسیږي — سر و مال چه ور ته واړه همه فداي کړِ
هره ساه خپله ورستئي ګنړلِ بویه — مرګيُ دیري خلقي سره بي ځاي کړِ
خلقي ور باند راغلي بیا ترِ لاړي — ته به څه رنګ امید پر فاني سراي کړِ

د دنیا له بادشاهئي نه مي توبه ده
که خواجه محمد د یار د در ګداي کړِ

که د مینه محبت دي له عزیز — درست به ؤ شلیږي له ورور له عزیز
د مجنون په دود به سر شي په څنګلو — ملاحظه به د هرګز نه شي له خریز
څو آخستي غوښي واړه توئي نه کړي — و مقصود وته به ؤ نه رسي کریز
شپه او روځ د دي فاني په طلب شوي — و باقي وته د شا کړه بي تمیز
عاقبت به ئي په زور درڅخه واخلي — دا جامه د عاریت که ده عزیز
حیوانات په څرکښ واړه بوټي نه خوري — ته مخ نه آړوي هرګز له یوه څیز
څوګداز د پیر کامل په بوته نه شي — دا چاندي به جدا نه کړي له ارزیز
که هرڅو ورته صفت د محبوبا کړي — د مردئي صفت مه غواړه له هیز

زه خواجه محمد د غم په دریاب ګډ یم
که مي ؤ کاري صاحب ته له دي نیز

زه و تا ته کړم ورورړه التماس — غلط مه شه د دنیا په تش لباس
په فریب ئي خلقي سره طوفاني کړ — دک د زهرو ګرزوي د زرو طاس
د فلك میچن د خلق په سر ګرزي — کوم زمان به دور راشي ستا په راس
نفس ته ایل کړه د فاقه په درنو ملون — په غیزد سره به تینګ نه کړي دا آس
له خوراك غرض قوت و لایموت دي — هرچه تا لره موجود شي څه اجناس
پټول د څان ضرور دي کړي بویه — که دود در ګزه شړئي وي یا کرباس
هر نفس د بي بها در و مرجان دي — خبر دار اوسه کوه پاس انفاس
ګفتار واړه موافق کړه له کرداره — بیهوده خبري مه کړه کوز و پاس
څو قوت د د عذاب دي را ته وایه — کنځونه هم کوه پر هغه قیاس
عاقبت به د پسرلي په باران لوند شي — چه جامي د وي آغوستي د قرطاس
و صراف ته ئي ظاهر باطن معلوم وي — که هرڅو په زرو ؤ نغاړي نحاس
دا توبري به د ؤ نه خیري له هڅ — څو د غوښي غوڅي نه شي په الماس
چه خبري ئي د کبرو د لوئي کړي — شیطان څکه له رحمت شه ایاس
سود و زیان واړه له خدایه دي بي شك — په ناحق ول کړي د زړه وسواس

لا په خوي د هلکانۀ ئي نا پوهٔ  اوس چه تیر شوي تر چهل و تر پنځاه
که یو گوټ د محبت له جامَ وُ څښي  وُ به نه مري لکه خضر مهتر الیاه
زهٔ خواجه محمد دِ پروت یم په دربار کښ  میان صاحبَ که مي وُ نه سي تر لاه

زه خواجه محمد هرگوره ډیر ویریږم
لور په لورِ لار وهي وړاندِ مواس

د دنیا محبت هسي کړي بي هوشَ  چه دِ کار د دین کړهٔ واړهٔ فراموش
د پیشو په دود همیش مراقبه ئي  نور دِ هیڅوک په کار نه دي بي له موش
په ظاهر دِ د صلاح جامي آغوستي  دغه باز گندم نمایه جو فروش
بیا هله به ارمان کړي وار به دِ تیر وي  چه و تا ته د اجل پیاله کا نوش
د خارج د مرگ نارِ پر غوږو آروي  ستا د مرگ نارد به هم ورشي تر گوش
آدم زاد ئي پیدا کړي دي نیکئي له  ته چارپاي نه ئي بدي مه کړه نیک خوش
چه د تن له سرایَ ووزي توښه واخله  ودانې په هور ته نشته جگر گوش
مسافر ئي ته به دروهي بي غم مه شه  اسباب وُ تړه په فکر کښ دِ تلو ش
وړاندِ لار مواس وهي یواځي مه ځه  پاځه وُ گرزه په زیرمه د خپل ملو ش
په کونښښ که څوک تر ځایه نه رسیږي  هر سړي تر ځایه نه رسي بي کوش
هر صبا بیگاه زاري کوه و خداي ته  اوښي ویني توئیوه د زړه له خوش
غیر غیر محبت زهر قاتل دي  د ساقي له جامَ گوټ وُ کړه په ښو ش
فریاد هسي کړه چه څوک در خبر نه شي  یار په زړه کښ یادوه شونډِ خاموش
دنیا توره آخر مخ د شړي تور کا  ته شراب د محبت وُ څښه شرخ روش
اي خواجه محمدَ خوب بي غمَ مه کړه  چه خبر شي د مرگي له پوښه پوش

زه خواجه محمد تمام له عیبَ ډک یم
امید وار یم له کریمَ عیبَ پوش

چه خبر نه ئي د خپل صورت له فرش  په دروغ دعوا مه کوه له عرش
گفتار واړه موافق کوه له حالَ  زیات و کم خبره مه کړه را شه درش

که هوس دِ د طلب دي اي طالبَ — په خدمت د پیر کامل تر دره ورشَ
کاملانٌ څخه هسي رنګ کیمیا ده — تر قربان د کیمیا ګرو واړه زر شَ
دغه لار هرګوره ده باریکه سخته — که عاشق ئي ته د هرِ بلا سپر شَ
چه کامل و تا ته وائي هغه وُکړه — که بزرګ نه شوي بیا هله ته مرور شَ
کړِ رنړا ورځِ ته وائي چه دا شپه ده — ته انکار ور څخه مه کړه کور وکر شَ
دي خبر دي د سفر له منزلونٌ — ته خبر نه ئي کوښښ وُکړه خبر شَ
ماضي عمر دِ همه په غفلت تیر کا — اوس چه پاتِ دي له دي نه بهره ور شَ

لا تر کومَ به د نفس په بندیخانه ئي
اي خواجه محمدَ پاڅه قلندر شَ

ته مي له هرَ بلا وُ ساته خدا حافظَ — چه بي له تا نه هیڅوک نشته دي څما حافظ
ما امور د دواړ کونٌ دي پر تا سپارلي — چه د هرِ چارِئي هم د دین هم د دنیا حافظَ
په هرلوري نفس شیطان را ته ولاړ دي — د خلاصیدَ لوري مي نشته بي له تا حافظَ
د دنیا له آفتونٌ مي ویره نه شي — چه ته مي په سرئي په هرلوري د بلا حافظَ
زه چه تا لره درڅم څما دوړاندِ ته شه — په دغه لارِ مي نور نشته آشنا حافظَ
په هرسحر در ته زاري کوم وصال غواړم — یو سحر قبوله کړه څما د خولي دعا حافظَ

ګناه کار خواجه محمد له خپله مینه ورکړه
چه همیشَ وي ستا .د ذکر د ثنا حافظَ

عاشقان به دِ په درکښ نارِ وُڬَ — که اثر دِ په خاطر کښ بارِ وُڬَ
طالبانٌ دِ جندري د در وهلي — هیڅوک نه وي چه جوابِ د آرِ وُڬَ
غمازان که ئي هرڅو په غوندو ولي — چاپیره به ور ته سختِ بارِ وُڬَ
که ئي سر له تنَ درومي وا به نه وړي — مګر ښه ستا د دیدن نندارِ وُڬَ
ته که څان له خلقَ پټ کړي په حجاب کښ — یارَ بیا د تورو سترګو چارِ وُڬَ
جګي جګي ور ته وُ وایه ریباره — چه پڅُ مهر را ته دوه ګفتارِ وُڬَ
د خواجه محمد پرحال ئي ترس نه شي — که پر مخ باندِ ئي اوښي لارِ وُڬَ

ظلم جور ئې همه سره ثواب دي
د خواجه محمد په سر چه یار وُ کَ

ولي نه کروهيږي اي څما خاطرَ سنګَ وار په وار مين ياران کميږي د رنګ تر د رنګَ
تا چه هسي بارونه وُ ترل روان شوي څه رنګ به تيريږي ستا دوراندِ کوڅه تنګَ
وُ سوزه ايره شه که مين پر محبوبا ئې راشه اي طالبَ مينه زده کړه له پتنګَ
پريږده دا دنيا و غافلانُ وته پريږده صافه آئينه کړه د غفلت له تورَ زنګَ
ما په دوارِه لاس د پير کامل جاوجئ نيولي کندِ بري بيا مومم د نفس شيطان له جنګَ
ستا ديدن دمه د رنځورانُ د خاطر دي زه به ترِ قربان شم د شها د در ملنګَ
سر و مال مي دوارِه ځار ترتا شه اي ريبارِه وُ ښيه و ما وته د يار بشرِه خوش رنګَ
وُ خاته سيندونه اوبه شول لرِ ملکونه زه له تندي مرم د عظيم درياب له څنګَ
مه کوه هرګوره ګرياني خواجه محمدَ
وُ به کا کامل د خادمانُ د در ننګَ

نن غه مسته محبوبا راغله پر سيل چه حيران ئې مخلوقات شه پر طفيل
تر حجاب ئې مخ عاشق و ته ځرګند کړ په فرياد نارِ وهي نهار و ليـل
خوشبوئې ئې د اثر پر ملک خورِ شوِ دوارِه زلفِ ئې لـړلِ پـر فليل
بي له خدايه مين وارِه بي وفا دي پر امان تر دا دنيا تير شه بي ښکيل
چه د شاه له محبتَ خبر نه شو تـه ابده د هغـو پـر بخرو ويل
غافلان به ارمان کا وار به ئې تيروي د هر چا عمل به وُ کوري پر کيل
آخر تله دي له دنيا نه خواجه محمدَ بي له خدايه و نور هيڅ ته مه کړه ميل
د خواجه محمه مدد شه محمدَ
چه ئې لاس دي لګولي ستا پر ذيل

روغ عالم ته د زړه حال ويلي نه شم که ئې نه وايم درد زغملي نه شم
په تمام خلق کښ هسي رنګ مطعون يم که له خپلِ غم خاني ويلي نه شم
د تهمت له غمَ پروت يم سترګي پټي زه له شرمَ چا ته غښ کتلي نه شم

حلق مي هسي د هجران پر پياله تريخ دي چه د دِ دنيا خوارِه څکلي نه شم
يار څما پر حال خبردار وم نه کا د رقيب له ويري حال ويلي نه شم
زه به له يارِه لري پر هواد شوم په هيڅ رنګ د يارِۍ پټ شلولي نه شم
د فراق اوښي مي تل پر مخ بهيږي پر ليمه کښ د يار خيال ساتلي نه شم
هميشه لك لاله ويني د زړه خورم زه خواجه محمد څرګند ژړلي نه شم

زه خواجه محمد هرګوره دروغ ژن يم
چه د يار پر مينه سرښندلي نه شم

فريادي يم فريادي يم له هجرانَ چه ئې زه په ژړا بيل کړم له جانانَ
يار څما روح اعظم زه ئې کالبود يم د کالبود جدائي سخته ده له جانَ
اندرون کوکل مي درست په لنبو ؤ سه جکي جکي هجران څه غوارِي له مانَ
زه چه دپر آه و فرياد کوم کرم نه يم زړه مي درست پارِه پارِه سينه بريانَ
که په نورو وداني ده زه ئې څه کړم بي له تا نه دا دنيا شوه په ما ورانَ
دم په دم مي د زړه رنځ پسي زياتيږي د دي پسَ تا اميد شوم له درمانَ
طبيبان ئې په ما خبردار ؤ نه کا په قيامت به ئې ؤ نسم له کريوانَ
اي خواجه محمدَ صبر وظيفه کړه طمع مه کړه د وفا له دي جهانَ

چه هيڅرته څما په مراد را نه غلي
زه خواجه دِ څه کناه لرم آسمانَ

د دنيا پر لوئي مه کړه هوسونَ د مرکي په ناره وران شو الوسونَ
ښايسته ياران کلونه د بهار وو د آهار په غرمو مړاوي شول ؤ سونَ
اوس همه پر تورو خاورو کښ پراته دي چه کړي پکړئ سواره وو پر آسونَ
چه ئې خوب پر ببجاونړو کا د خوبانَ د هغو له مرګَ تير شو عرسونَ
هغه جونِ زلمي لاندِ شوِ تر خاورو چه پاسته ئې تر بخملَ وو لاسونَ
فاضلان د زماني تر دنيا تير شو چه پر تول د طالبانو وو درسونَ
طبيبان بي به په کوم پرهار ملهم ږدي درست مجروح يم د هجران په الماسونَ

زه خواجه محمد چه ژاړم کرم خو نه یم
چه را یاد شو د یارانو مجلسونَ

چه را یاد شو مجلسي یاران د میني — ګډي وډي مي پر مخ څي اوښي وینِ
ښي ښي خولي ئې همه شولي توري خاوري — چه هله ئې پر خبري کړي شیرینِ
چه کړي پکړئي ئې یښي وِ له خیالَ — اوس له خاورو سره خاوري شوِ کمینِ
څما زړه ترکاڼري سخت هیڅ وُ نه شوي — ښه یاران در څخه درومي ته ئې وینِ
په هیڅ رنګ به خپسر خلاص نه کړي له مرګ — که ته کوټي ترځان چاپیر کړِ آهنینِ
اوس همه په تورو خاورو کښ پراته دي — چه په ناز ئې وِ ساتلي بشري سپینِ

په هر ساه ئې شکر کړه خواجه محمدَ
چه داخل د محمد نبي پر دینِ

په ما غم دي واړه ستا د مینِ مینِ — زړه مي درست پاره پاره شه وینِ وینِ
اندرون کوګل مي درست د وینو ډک شه — ظاهري جامي واغوستي سپینِ سپینِ
بیا دِ نوي پرهارونه په ما روغ کړه — لرغوني مي لا روغ نه دي څنِ څنِ
په ژوندون ئې څه احسان را سره نه کړ — څه په کار دي که ئې کړي په مړینِ مړینِ
زړه دِ درست له باغ وُ یستم دلبره — تور زاغان پکښ میوي خوري خورینِ خورینِ
تورو زلفو دِ خوشبویه کړه ملکونه — دواړه کلوښتي دي د مښکو چینِ چینِ

خماري سترګي دِ دواړه شنه مزري دي
د خواجه محمدِ و مرګ ته ورینِ ورینِ

چه بادشاه ئې د جمله وُ ښایسته وو — خبر واخله د عاجزو خوار خسته وو
زړونه مه ماتوه لعل د بدخشان دي — بیا مشکل دي رغول د شکسته وو
زړه مي ستا پر محبت سره تړلي — نظر وُ کړه په دا خپلو دل بسته وو
د چمن ګلونه واړهِ پرِ تازه شو — شمال راغي ستا د مخ له ګل دسته وو
چه ئې قد و قامت ستا په سترګو وُ لید — ملا شوه تیته د همه وُ آراسته وو
درست ئې وُ یستم له عقلَ له شعوره — ستا خوږو خوږو خبرو آهسته وو

ښه سر به تراوم آسمان تیر شي که مي کړي د خپل مجلس له نشسته‌وو
یارسنا په خیر نیک خويَ سړي نشته مګر تا زده کړ دا خوي له فرشته‌وو
زړه ئي یووړ له خواجه محمد کلیمَ په فریب فریب فریب دهان بسته‌وو
سر و مال به همکي څنِ قربان کړم
زه خواجه محمد مرید د ښایسته‌وو

چه مین د زیړو ګلو د بوستان شوَ پوره وړي د غمونُ بلبلان شو
په فریاد ناري وهي پسِ چیغار کا چه ګلونه واړه توئي پر خزان شو
چه هله پر خوشبوئي د ګلو مست وو د هجران غمونه واړه پر تاوان شو
مشغولا خندا ئي بیله شوه. له خلقَ ور ته زهر لذتوله د جهان شو
لا میوي ئي د وصال څکلِ نه وي په ارمان ځبله جدا مین یاران شو
یو څو ورځِ ئي خوښي د وصال وُ کړي اوس په برخه ئي کلونُ د هجران شو
اوس که تبهتي له نصیبَ نه خلاصیږي په ازل برخه چه غم د عاشقان شو
طبیبان د زماني که ډیر پوهیږي د خواجه محمد په رنځ ولِ نادان شو
زه خواجه محمد به ډیر آه وُ فریاد کړم
ساعتونه د وصال څما ارمان شو

ډیرځلمي جونه د تورو خاورو بندیان شو ښکولي بشري ئي څموږ د زړه ارمان شو
مه کانږئ امید پر دا فاني استوګه نشته وارپه وار به موږ همکي پسِ روان شو
خلق چه ځښتن د ولایت د خزانو وو اوس ئي له دنیا نه ورک نام و نښان شو
هرچه فقیران ور ته ولاړ لاس په نامه وو اوس پر د. لحد کمر پریواته ویران شو
نوم ئي د جود و عدل شته دي لا تر اوسَ تیر له دا دنیا حاتم طائي نوشیروان شو
نشته دي په زور نه په زاري خلاصي له مرګَ سخ د عارفانُ چه مشغول پرجاودان شو
زړه مي په الماس د بیلتانه پاره پارهِ دي وار په وار همه جدا مین یاران شو
تله دي له دنیا نه خواجه محمد څه امید کا
لاندِ چه تر خاورو ښایسته پیغمبران شو

د دنیا عمر دِ تیر کړ بیهوده — که شپیته وه که اویا که زیاده
بحث ورُ له دنیا نه فایده یووړه — تا بي زیانَ هیڅ وُ نه کړه فایده
د مجلس یاران همه درځه لاړل — نظر نه کړي په رنړو سترګو اوده
پرسري باندِ چه غم پریوزي خوب نه کا — ته چارپا يُ که سړي آدم زاده
پلار نیکونَ دِ همه له مرګَ تمام شو — خلاص به نه شي یك تنها علیحده
زنده سر به په دنیا کښ پاتي نه شي — چا آخستِ ده غافلَ ستا عهده
له پیرئ دِ ږیره سپینه شوه ملا تیته — لا تر کومَ به پائیري جګ زده
ستا شپیته کلونه تیر شو او زوړ شوي — ته لا ځان ګنړي د ده و چهارده
که عاقل يُ دنیا پریږده قلندر شه — فقیران په دواړه کون دي آزاده
د ګمان پرده دِ لري کړه له مخَ — رضا کیږده د صاحب په اراده
د مغان د میخاني د در خادم شه — چه د عشق له جامَ در کاندِ باده
هدایت و ماته وُکړي يوَ خدایَ — چه و تا ته څم په سم لارِ سیده
که ما بد وُکړ بنده یم بي ادبَ — ته بخشش کوه پر خپله قاعده
چه سړي و بل څه ورکه بیا يُ آخلي — ته خو خداي يُ بیرته نه آخلي داده
ګناه کار خواجه آزاد کړه غني خدایه — غنیان تل آزادوي زاړه برده،

ته ستار د بندهګانو يُ صاحبَ
ځیره سه کړه د خواجه محمد پرده

ستا تر مخ پورِ خجل باغ د ارم دي — بي له خالَ څوك محرم په دا حرم دي
د همایست مخي دِ نشته پر جهان کښ — هر سړي چه صفت نه کاندِ ګرم دي
چه صفت يُ ستا د حسن آرویدلي — نا دیده پر مین شوي لاجرم دي
هسِ خوښ په جنت د پاس خورم نه وي — چه عاشق ستا په در کښ خوښ خورم دي
چه يُ ستا د آستاني خاوري بوسه کړي — هغه کس په دواړو کونُ محترم دي
پر هغو د عاشقئ بوي حرام دي — هرچه حب يُ د دینارُ د درم دي

هیڅ عمل يُ د نیکئ دوړاند نشته
د خواجه محمد امید ستا په کرم دي •

۲۹۴

## میرزا خان انصاري

الف اول څرګه وحدت دي    نن راغلي پر کثرت دي
د ناسوت په کیل ئي زره ؤ    څرګند کړي ئي قدرت دي
هستي ئي بي پایانه    په هرڅه کښ ئي صفت دي
پر سړي باندِ ئي ینښي    دا خپل علم امانت دي
مجازي غلاف ئي کړي    پہ کښي ینښي حقیقت دي
پ یوڈ کښ دووم نشته    بیهوده ګمان غفلت دي
هره چار کانده پخپله    بهنه کړي ئي صورت دي
طالب ئي فو فنا که    له مطلوبً ئي غیرت دي
له اوباله نه ویرېږي    له ثوابً فراغت دي
پهر کور کښ تجلا کا    عجب نور د معرفت دي

میرزا په پښتو کړي
د یوه مولي صفت دي

خ خودي دِ خپل ګمان دي    پہ ګمان کښ دِ ډیر زیان دي
په صورت غلطي مه کړه    په بهار پسي خزان دي
په مقصود پسي منزل کړه    څو په حکم دِ عنان دي
مولیٰ نه دي له تا لري    در نږدي دِ تر خپل ځان دي
کہ زمکه په آسمان کښي    هم محیط تر دغه میان دي
په وحدت کښ یګانه شه    پر کثرت باندِ پریشان دي
له لاهوتً ئي را کوچ کا    نن ئي سیل پر جهان دي

حد پایان ئې مونده نه شي | په سړي کښې ئې مکان دی
خود ښځود کاندِ بازي | بهنه کړي ئې انسان دي
هر ولي چه آغاز وُ کا | څرګند شوي ئې برهان دي

د میرزا ګمان فاني شهٔ
هر چه وائې میان روښان دي

ص صِرَاطَ الْمُسْتَقِيمَ دي | او منزل ئې په ډیر بیم دي
د شیطان مکرونه ډیر دي | لا بتر دِ نوس غلیم دي
د هوا پسروي مه کړه | بد ئې حال بد ئې تعلیم دي
د اولاد لومه ئې کښیښوه | خال ئې رنګ په رنګ نعیم دي
یو حصار ئې نام و ننګ شه | بل ښائیست ئې زر و سیم دي
ګوښي څوي په ورو لك | هر چي نقش پر ګلیم دي
په دنیا به معمور نه شي | چه په نغوتَ د رجیم دي
که اقلیم ئې شي په حکم | زړه ئې بند په بل اقلیم دي
چه د نوس امرونه نغوړي | وَ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِیْم دي
چه تر دا آزمیښت تیر شه | د کامل قلوب سلیم دي

پر میرزا ئې عنایت شه
هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِیم دي

ع عیب د بد ګمان دي | په ګمان عالم حیران دي
هغه زړه به جمع نه شي | چه په هیڅ پسي پریشان دي
د وحدت بهره ئې نشته | پر کثرت کښې څان پڅان دي
د پندار تابیه ئې ډیره | لك ابر بي باران دي
ته کمالَ به ور نه شي | چه نظر ئې پر نقصان دي
نا پوه ظلم پرِ څان کاند | چه د امانت زمان دی
خود پرست په خودي لښلي | د آدم په دود جیران دي

روح يوسف شه په صورت کښې    دا صورت خوئي زندان دي
چه له دي زندانَ خلاص شه    د امين مقام امان دي
مست د عشق په بوراق سور شه    خوښ وتلي پر چوګان دي
ميرزا راشه ننداره کړه
دغه ګوي دغه ميدان دي

غ غير خوي تغير کړَ    روح بادشاه عقل وزير کړَ
نوس نادان دي مه ئي نغوږه    ته دانش په فهم خير کړَ
د شيطان مکرونه ډير دي    هر افسون د ده ځنځير کړَ
ستا په کورکښې پنځه غله دي    واړه ځاي پځاي اسير کړَ
بده طمع ځني واخله    توکل په زړه ځاي ګير کړَ
و اخلاص وته نژدي شه    آواره لباس تذوير کړَ
په بيوره مي در ته وُ وِ    درست عمل په دا تدبير کړَ
که په دا صفت موصوف شي    نور صحبت له خپله پير کړَ
له خناسَ خاطر ږغوره    د خداي ياد باندِ تحرير کړَ
مجاز خوب دي په دنيا کښې    نن د حقيقت تعبير کړَ
د ميرزا کلام دقيق دي
ته ئي فهم پر تفسير کړَ

اي په ځان له خپلَ ځانَ بي خبرَ    ته معني له معنيُ وُ غواړه بشرَ
د ايمان له روښنائي خبر زده کړه    دا د کفر تياره يوسه تر سحرَ
له ګناه و طاعت وته روان شه    دغه لار د بي اندوه بي خطرَ
دا خفي ذکر چراغ د حقيقت دي    د کامل له لاسَ بله ډيوه درَ
که چراغ د محبت دِ په زړه بل شي    د روندون لذت به مومي سر د سرَ
عارفان د دواړو کونو ننداره کَ    شوپرک په تياره ګرزي بي نظرَ
نا بينا مي د ښائيسته له حالَ څه زده    د آواز معني به څه غواړي له کرَ

یو په یو به د هر قام په ژبه پوه شي — که د زړه غوږ دِ شنوا کړي مبصرَ
د صفات په عددونه غلت مه شه — او د ذات اصل ته ذاتَ پورِ ورَ
فاصلان له خپله جودَ په عذاب دي — د فنا ویره په څه شي له ضررَ
هر واصل چه له فاني خوي فاني شه — د بقا معني ئي راوړه مقررَ
د کثرت په انبوهي کښ ئي سفر کا — د وحدت په دیدن راغي ته حضرَ
دا میوه چه پخپل ښاخ پوري پخه شوه — د کمال دعوه ئي وُ کړه مختصرَ
که هر څو دِ په لوئي نهایت نشته — په دا وجود کښي دِ تمام وینم شجرَ
له اولَ دِ بنیاد له ما زرغون شه — د مقصود چارِ دِ پر ما شوه موخرَ
د شجر له لوري هسي څواب وُ شه — چي تا رنګ و خوند له چا موندَ ثمرَ
له یوي میوي یوه ونه پیدا شي — او میوه ئي کال په کال شي مکررَ
ترو دلي وتَ څواب د وني به دي — که وینا د دي میوي ده معتبرَ
له بي مغزه هیڅ غله نه زرغونیږي — څوک د تخم غله نه کا مقشرَ
د نفر په خپل صاحب پور عزت دي — د صاحب صاحبي نه شي بي نفرَ

د میرزا خبري وُ غواړه په زړه کښ
که د زړه تخته دِ نه ده مکدرَ

ما چه وُ کوت په باطن د معني ولي — د وحدت په انګڼ میشت د کثرت کلي
د لطیف د بیحدۍ صفت به څو کړم — چي تمام کسیف ئي رش پرِ مخ نیولي
پر ابو باندِ د خاورو جهاز وینم — لور په لور د کانیو میږ ترِ وُ ختلي
په هوا ګردان په څو پر بل ګرزي — لوي حکیم په کوم حکمت پورِ ترلي
د عاقل د عقل قیاس رسیدي نشي — چه د کن فیکون لاس دي رسیدلي
دا ساده آسمان په نقش و په نګارشَ — د قدرت په الماسونو دي کندلي
آفتاب مهتاب چراغ پرِ باندِ بل شو — دغه خپل هنر ئي نه پرېښود پوښلي
له اوورو ئي ښه باران پزمکه کښي کا — ځاي په ځاي ئي نباتات باند کرلي
د بهار د خزان مخ پرِ ښائسته شه — د غرمو د سرو رنګ پرِ پورې وهلي

کل د بیرنګئ ئي رنګ دي ښرکندیږي رنګا رنګ د زمکې مخ پري آخښلي
پهر لور چه نظر و کړم لون لون د عظیم فراش بسات دي غوړولي
بي حسابه مخلوقات چه ښرکندیږي د دي لوي شطرنج لښکر دي پسولولي
و هرچا وته خپل قسمت رسیږي له ازل ئي سور سور دي پلي پلي
دا آدم په اصل واړه سره وصل ښني ښني بادشاهي کا ښوک نتلي
حیوانان که ژوندي ګرزي بي تکلیفه کل د کړو د نه کړو بار پر سري لښلي
هر سړي د خپل چار پسنده دي تن په تن د حاکم حکم پر ویشلي
د الست رحم پر هرچا برابر دي په اختیار ښني منکر شوه چا منلي
مخلوقات د آدم زاد د پاره و شه او سړي دي معرفت لره سازلي
چه په دا حیات خبر نشي له ذاته هر حیوان ښه انسان نه بویه ښللي
چه د نفس اماره په نغوته کښیووت که ظاهر صورت حیات روح ئي وژلي
د مجاز په روندون ښه لره نازیږي بي طلب پر لار ولاړ دي لك ښلي
تل په غتي سترګي خوب کا لك سویه په ښو ویښ د خوب بیولي په دود غلي
د خناس به نصیحت له لار و ووت د ریا په ډیر مکرونه ښان تکلي
خوارجاهل د دیو و ددو په حساب دي لا بتر له خوشیو مړو سره شمیرلي
تنګ تاریك زړه ئي لحد روح ئي مرده شه آراسته صورت ئي ګور باند ړبلي
او پریشاني اندیښني مثال چنجي دي ګور لحد ئي سلامت روح ئي خوړلي
هیڅ راحت پر باند نه شته بي عذابه دم په دم په خواري خوار په خوي رتلي
د یوه صورت د ورو قوت ئي نه در امانت ئي په سر واخست بي تللي
قچر په دود ئي اصل بر طرف شه چه یو اصل په بل اصل کډولي
د ظالم د جاهل هسي رنګ بایده وو چه تیري نار ئي کړي سر ئي وهلي
هسي بارچه آسمان زمکي وړي نشي بي قوت نادان په کوم قوت زغملي
په تلوار د کاملانو طلب بویه چه دا بار نشي و تښتن وته سپارلي
هر دانا چه له دغه تاوانه خلاص شه ترو سهي علم لدون پر ورغلي

د دي هسي علم قدر اوليا زده — چه په څان ئي تر جهانَ پلتلي
د ده امر پهر څه کښ روانيږي — د اومو خاورو ديوال ئي دي تنډلي
مرډګان ئي د رونديو په حساب کړل — چي کامل په خپله دم په کښي دملي
تل ته تله به حيات وي مرګ ئي نشته — چي حيات د حيات مزي ترِ وکښلي
کوم ذلك بخت له بيګانګۍ پاکيزه شه — چي ولي د ولايت په اوبو وللي
پرِ اوبو باندِ د ده چراغ بليږي — شرك ګمان پرِ باندِ سوزي لك خلي
په طلب ئي نحوست له ستوريو واخست — په ښه خوي ئي هيڅ ساعت ندي کړلي

لك حق د اولياؤ د صفت دي
اي ميرزا له ډيرو لږ دي چا ويلي

محبوب نه ده له تا پټَ — اي د څان دوراندِ ختَ
ته په خپل خپل حجاب شوي — د ګمان په لار کښ هتَ
ته څرګند شوي دا غايبَ — ستا پر څير ده کتَ وتَ
پاکيزه له شش جهتَ — څرة مخ شوه بي له څتَ
که دا وُ ويني نيکبخت ئي — څو دِ څان ته ګوري رتَ
چه په زمکه تومن پريوزی — يو څل ورك شي ساپتَ
دانه چري زرغونيږي — په خشکي کښي سختَ غتَ
بورا سپك پرِ ګلو ګرزي — تر بار لاندِ شوِ ګونګتَ
لنبه زر تر واښه پريوزي — په زار سوزي پيرِة ستَ
زرة ژوندي په محبت دي — چيچي څودي بي لوهتَ

ميرزا شرط د عشق بازي
پتنګ درست کا له ډيوتَ

د عشق درد دي بي پايانَ الغياث — بي علاجَ بي دزمانَ الغياث
ګل هرګز بي خارة نوی — آشنائي ده له هجرانَ الغياث
شاه له خپلَ څانَ خوښَ — بي پرواهَ دل ستانَ الغياث

## میرزا خان انصاري

د عشق درد به هغه ویلي چه خبر له وي له ځانَ الغیاث
د آشنا په یاد ږوندي یم زه به نه پایم بي جانَ الغیاث
د میرزا فریـاد د دغـه دي
چه مقصود ئې بي نهانَ الغیاث

څه عجب دي د عاشق د خاطر اوج چه و تخت وته ئې لار له ود د عوج
د منزل ئې د صراط تر غاښي سخت وه ترو په سؤ پر باندِ ؤ خوت د عشق فوج
محبت ئې یو بي حده لوي دریاب شه په ورمي اثر ئې لاندِ کا تر موج
د وحدت توره ئې واخست له میانه پر کثرت ئې نامه کښیښود د زوج
اي میرزا محیط و هو چا رسیدلي
او ګنګا پر شمس آباد دي پرّ فنوج

په ژونهون که دِ رضا دي بي لالچ دغه صافه سینه خلاصه کړه له ثبج
په غفلت دِ خاطر ښکلَ ځنګل شه شیطاني وسوسه شپږه ګنړه ږنج
نګران زړګي دِ یو اندیښني ډیري د ږوندون وعده دِ لږ و ډیره هیچ
ږوحاني میلمه عزیز دي ښه ئې ګوره د ملوک لائقت نه لري خمبج
بدد طمه د سترګ خوږي په دود ښوري پښه توکل ئې خلاصه کړه له لیج
وو شریږ کرېدل په کهتري کړي د غرور توره دِ کښیاسه په تیج
په مثال د لرمي لښتي شه خمیزه نـه پښله رضا سخته کړکه وچ
د پنځو ګتو عجب سرږ واده ده چه په کهتري اقراره شوه کمبج
د صورت په کمښي کښي درجه ده د لکین لائقت ورغي ته خبچ
په ظاهر کښ د باطن لنداره کړه د یقین په اصل لوي په ګمان کبج
اي میرزا د یکالکئي لوني ګوره
چه شیرین عسل پیدا شي له مبج

ترخه شراب بایده دي چه تعریف ئې شي له زور مګر یو زمان به خشو شم د دنیا له شرا شو
د ساقي له میر لوش کړه زینت وارد فراموش کړه چه سلیمان له تخت پریوت څه بهرام څه ئې له ک

ه امید کړي.پدا دهر نوش ئي نیش دارو ئي زهر  په طلب کښي ئي ډیرغم دي د بیلتون تلخي ئي
ځ په روځ فرښتي سفرکا لور په لورِدا خبرکا  عمارت به کل خراب شي هرڅه ؤ زیږي له
ځو زړه پدنیا بند کړي عاقبت ښځي پندکړي  که په دا دِ باور نشي ستا پښوا پیرئي
یا ناوي زړه شوي په خون نه ده مړه شوي  مقتولان ئي ځان کندن کا بیا ولاړه ده سر
ئي مړه پراته په غولي نوي نور عاشقان بولي  چه د زړه سترګي ئي نښتي پسي زغلي لورد
سړي چه پرِعاشق شه په ړوندون د غم لایق شه  په عمل ئي نه پوهیږي د هلك مینه له
دنیا پسي څو دروهي قرارګاه به ئي نه مومي  که ته مځ په نمرؤ نسي در پسي به دروهي س
یکخواه پندونه نغوړه په مقصود پسي ؤکوړه  کم دلیل په غوړو کوڼ ذي زه وتا ته وایم و

میرزا وخت دِ آخرین دي پرِقسمت سفله کمین دي
د دي دور. فتني ډیري لـه بدانو خپسر رغورَ

که یوځل د خدای له عشقَ همخانه شِ  یو په یو به لـه عـالـمَ بیګانه شِ
له هستئي به نیستي درلرِه درشي  په دا نیست به له کل هستَ یګانه شِ
دا کمال عقل واړه تا څخه دي  په نظر بـه د کم فهمو دیوانه شِ
د تهمت غشي به واړه پر تا ووري  ترو به ته د عام و خاص نشانه شِ
د زړه حالَ به له نا اهل خلق واخلي  همیشه به لکه ګنج په ویرانه شِ
دغه ځپله ودانی به ویرانه کړِ  بیا به ته د کل ویرانو ودانه شِ
که دِ ځان پر دا سوزانَ لنبه کښیښو  .په دا دود به ځان ګداز د پروانه شِ
یو شراب حقیقي به دِ تر خله شي  تل به مست په دغه مست مستانه شِ
په هیڅ دود به د دوو کونو پروا نه.کړي  که توانګر د قناعت په خزانه شِ
ترو باران به َد رحمت پرِعالم ووري  هم به تخم پرِجهان دانه دانه شِ
دا د حال اهل به ستا له حالَ وائي  په ربتیا بـه د ربتنیو افسانه شِ
په ویل به د ویلو څواب ورکړي  ته به زیب د. واړو چنګ و ترانه شِ

که ګویا د دِ ګویا په ثنا کښیوزي
د میرزا په دود به یاد پزمانه سِ

چه امید په دروغجن مکاره لك | په دا هیڅ هنر د هیڅو انګاره لك
د نادان د نادانۍ تر فهم و عقل | چه په سخت اهار د واورو مناره لك
ودانۍ ئي مشقت په زهیرېږي | ویراني ئي نوي غم پر دوباره لك
هر سړي چه له دنیا وفائي غواړي | بي وفا په ډېر غمونه اجاره لك
سعد و نحس په کرده پوري تړلي | کم دلیل د چار قیاس په ستاره لك
زه عجب و دغه هسي رنګ عالم ته | چه امید به د حباب په نواره لك
یوه ورځ به دریاب موج وهي پر بله | په تعجیل به د حباب جامه پاره لك
سالکان چه دا رواني اوبه ګوري | په دا تله کښي د خپل عمر ننداره لك
دانایان د خپل مقصود په طلب ګرزي | حیوانان زیرمه د نماستو د چاره لك
ذاکران چه د غفلت له خوبه ویښ شو | د نفس و چلیده ته نظاره لك
مسافر چه له خواږه خوبه بیدار شي | په سحر جرس د تلو په وقت ناره لك
د فقیر خوښي له سوزه له کتابه | امرا به ئي په توغ په نغاره لك
هغه ملك به له خلل نه خلاصیږي | چه لښکر ئي لوامه او اماره لك
که آشنا د نا آشنا خبري نغوږي | آشنایان به خپلي چاري آواره لك

چه فرمان د زورور ور باندِ وُ شي
د میرزا قوت له کومه څه چاره لك

زه به څه وایم چه څه یم | نیست و هست واړه په ده یم
هر چه نیست شي له هستۍ | د نیستۍ معني زه یم
که ذره د نمر په مخ کښې | کاهي غوټه پر اوبه یم
د وصال په هوا ورزم | د دي لا مکان مرغه یم
ځان د یخ په نامه بولم | جمع شوي په ساړه یم
یو څلور عنصر مي واغوست | د آسمان پر مخ اوره یم
له وحدته پر کثرت شوم | هغه نه شته چه زه نه یم
حیاتي مي له حیاتو | او ګویا په هره خوله یم

زه شنوا په کل غوږونو بینائي د هر لیمه یم
توانائي مي په هرچا کښ دانائي د هر یوه یم
ارادت مي دي له واړو بیا راضي په دا خپل کړه یم
له بدانو مي بدي ده له نیکانو سره ښه یم
د نیکبخت پر بخره ښهد د کم بخت په ځان لاشه یم
له هر چا یم په هرڅه کښ خیري نه لرم ناره یم

د میرزا په خوله وئیږم
یو روښان بي مثل زه یم

که جهان د حقیقت په نظر وینِ زیان و سود مي د هرچا له خپل مینِ
که لاهوت يې ښائسته په سادګي دي د ناسوت جامي يې روغ کړ رنګینِ
دانایان په هر ظاهر کښ باطن ګوري د جاهلو زړونه تور شوه سترګي سپینِ
یو اصل د اوبو دي یو د زمکي او میوه ځني ترخي شوي څوک شیرینِ
د مشرک آرسیِ یوه مخونه دوه شوه د عارف سترګي مي دوه نه دي دوبینِ
د حقیقي محبوبه څه رنګ صفت کړم چه آخر بخري يې راوړي اولینِ
نن مي ځان له سود و زیانَ فراغت کا واړه عمر امر وینم له مسکینِ
یو زمان هستي نیستي نیستي هستي کا د فرمان چارِ يې واړه دي متینِ
سامعان يې د رموز په معني پوه کړه د واصل ذاتَ صفات دي له امینِ
سالکان يې د سکونت په سر روانِ کړه د اول چارِ يې واړه کړي پسینِ

د میرزا مخ يې و مخ ته ائینه کا
د بینا سترګو لیده د زړه یقینِ

هر سالك به د سلوك په لار کښي سم مري چه د حقیقت د مینِ په صنم مري
دغه عقل چه پر عشق باندِ شیدا شه د عرب په مینه ګوري چه عجم مري
حیاتي به تر ابدَ آرزو نه کا عاشقان چه له محبوبَ سره محرم مري
تر دغه ښادي به زیاتَ ښادي څه وي چي په هسي محبت کښي دم پدم مري

معرفت ئي د عارف د زړه چراغ کا | د توحید ډیوه چه بله شوه تور تم مري
بد ګمان د نا بیناو رنځوري ده | چه صحت ور لړه ور یشي الم مري
ذوق و شوق ئي د اندوه پرغولي پري مشت | چه ښادي ئي په کمال شوه اوس ئي غم مري
عنایت د مسیحا ور سره مل شه | په افسون ئي کهي مار کهي لړم مري
واړه چارِ ئي په امر پوره کیږي | بد خواهان ئي له دښمنو سره درهم مري
خداي جوئي د مخلصانو حیاتي ده | لك کب چه یو زمان بیرون له یم مري
د الف د یکانګۍ بزرګي ګوره | چه دوبي ئي له عالمَ په رقم مري
مشرکان د څان تر سیوري فراغت شوُ | چه دا یو یواځي ؤ ویني دووم مري

ذات صفات ئي همیشه پر یوه حال دي
د فقیر میرزا خویونه زیاتُ کم مري

د دي مستي شها زلفِ تار په تار دي | غوړولي لكَ سیوري په رخسار دي
هر ویښته ئي ګوښي ګوښي کمند روغ که | خوري شوي د زخمي زړونو په ښکار دي
پر هغو زړنو به چرِ قراري وي | چه څکولي ئي د میني په مهار دي
چه له هسي خپله څاي شوي بي څايَ | د استوګي ملك ئي کوم دي چه قرار دي
چه د دي محبوب په مینه دیوانه شوُ | اوس وتلي له تسبیحَ هم له زنار دي
واړه چارِ په خپل مینه شوي دوړاندِ | او بي میني له جمله کارَ بیکار دي
په خلوت په مېخانه کښي ئي څاي نشي | نه په مینه د مسلم نه د کفار دي
له دي هسي شها څرنګ هتیاتي کړم | چه کاته ئي و ویشتو وُته طیار دي
ښائسته صورت ئي ونه د چندن کړه | دا ګیسو ئي ترِ پریوتي لكَ مار دي
چه و هسي رنګ دیدن وته هوس کا | د جهان غمونه واړه پرِ انبار دي
همیشه د عاشق زړه باندِ ورتیږي | د محبوب کاته لښي سترګي انګار دي
نن ئي بیا د خپل جمال ډیوه کړه بله | عاشقان لكَ پتنګ ترِ زار و زار دي
عندلیب او د غاشق نامه یوه ده | په ثنا ئي خبر زړونه موسیقار دي
دغه سترګي ئي کنول کسي بوړا شو | او کاته لك هوسي صاحب اختیار دي

دواړه وروځي ئې لیندي بانه ئې غشي و آشنا ته ئې نیولي په ګذار دي
مخلصان په دواړه کونَ آزادي که د محبوب و نهه دیدن وته حصار دي
تردغه خوبني به زیات خوبني څه وي چه هر دم ئې و نظر ته انتظار دي
دا کثرت ئې په وحدت باندِ ارهت کا او راتله ورتِله د هرچا پخپل وار دي
وَ هرچا وته ئې خپلَ پوهه کښي نبوه د هر چا لیده د فهم په مقدار دي
ای میرزا ته دا ملالي سترګي وینه
چه مدام د یار له میني په خمار دي

د عاشق له حالَ څه پوښتي وګړي د بي حدي لارِ قیاس نه دي چا کړي
په دا هسي غم به ولي مبتلا وم که خاطر مي د نظر له نغوتي ژغړي
پرهغو باند به څرنګ قرار ي وي هر چه زړه ئې د محبوب کرشمي وړي
محبت ئې د خراب خاطر خنځیر کا د دیدن په زور ئې را څکاوه ذا پړي
یو عجب د میني حال پرِ برابرشي بي دیدنَ نا قرار په طلب سترِي
بي اختیارَ د اختیار تلاش لرینَ لدي مرګَ د ږوندون هوس کا مړي
چه میوه په کمالیت له ونی پریوزي په خوبني له زمکي سر پورته که زړي
دا حباب له اوبو روغ پراوبو مات شه د سیلاب له مخَ تبهتي نیازه وړي
کم دلیل له خپلَ بختَ مشوش دي دا هوا ئې تبهتوي لک خسري
د معني په معني یو یو پوهیدلي پر څرِه لارِ سفر کا څرِه وړي
ای میرزا و آئینه ته نظرؤ کا
د پولاد په میان کښ نشته اوسپین خري

٥٠٦

له دیوانَ د محمد کاظم خان شیدا تخلص

ځوي د محمد افضل خان ختک

## محمد کاظم خان شیدا

٥٠٧

بسم الله الرحمن الرحیم

آلهي د محبت درد و فغان را | په معصوم کنار د نور غند جانان را
چه مژګان مي د جوهر حکم پیدا کا | هر نفس لکه مرآت حیران ځشمان را
ما له درده د غنچي په شان اوده کړه | و پهلو ته مي بستر د خارستان را
چه خپل برګ په آب د چرخ نه کړم سرسبز | د همت علو پشان د کهکشان را
چه مدام وي په چشمه د آفتاب وللي | د سحر پشان درست عمر سپین دامان را
چه کباب ئي په ګرمي ځما جګر شي | د لاله غند په جام مئي جوشان را
چه خالي نوي یو دم له جوشِ خون | زخمي زړه لکه غنچه په تیز پیکان را

ما شیدا کړه د یثرب له جاروب کښو
و تدفین وته مي خاك د پاك آستان را

مرده دل ئي د جمال تماشا ځه کا | د مجنون تصویر ادا د لیلا ځه کا
چه آشنا لکه غزال د هیچا نه وي | په هغو سترګو اثر د وفا ځه کا
د سرور اسباب په کار د مهجور نه شه | د دستار غنچه مقدم د صبا ځه کا
چه پاره ئي ګریبان لکه سحر وي | تستر د حال دا هسي رسوا ځه کا
هرګز نه لري بهره له دست و پایه | د سمک عالم به رنګ د حنا ځه کا
سپك په شان کړي د حباب تنګ ظرفي | و تمکین ته دِ جوشش د دریا ځه کا
د وفا طمع ئي مه کړه سکندره | ور ته وه ګوره دوران په دارا ځه کا
په ستم ئي د تاختن تمام خراب کړ | د محمل ناقه ئي نور په صحرا ځه کا

۵۰۸

که پرواز لکه شهبازؤه کا هاله شي
ګیرائي د هغه دام په شیدا څه کا

که ساقي تلخه باده دریاي شور کا — د فلك په جام به مست کله مېّ خور کا
آراسته وي تل محفل د خنده رویو — زمانه به د ګل جام څه رنګ نسکور کا
چه په لاس کښي ئې تل چوب لکه شانه وي — بي افسونَ به نیول د تور منګور کا
دل تنګي کړم لکه ګل په خندا ورکه — که مي بل د صبا باد په خونه اور کا
چه په سرئې سبز آسمان زري دستار پږدي — عاقبت ئې لکه شمع بیا سر تور کا
لکه ګل کړي ګران بار تر دامني — باد دِ څه لکه غبار په کتف سور کا

چه امید په خپل صورت د وفا نه شته
شیدا څوك د ځان آشنا یا ئې خمسور کا

ستا ګلګون به ولي عزم د میدان کا — په دیده مي دِ ګردش لکه مژګان کا
پس له مرګَ وي ناله د سینه چاکو — بي نفسٌ د جرس غندِ فغان کا
و اصلاح ته ئې نمك ګرزي په خیال کښي — هر خاطر چه د کباب غندِ بریان کا
تیر ماري د هغو زلفو لوي آفت دي — چه حلقه ئې و عالم ته په کمان کا
چه نفس څما د آه کا سر کښي — فلك لاندِ خپله شمع تر دامان کا
د حباب په شان ئې زړه نمایانه نه شي — چه سینه له درده چاکه بیدلان کا
و صحبت وته ضرور مناسبت دي — سنبل څکِه په سرو ګلو پریشان کا
هر مضمون ئې مبتذل په شان د ني دي — ګویائي چه دَ معني تهي دستان کا
که نرګس غندِ عصا د پیرئِ واخلي — عاشقان به کله بند ورِي چشمان کا
د نمراورئِ په سر بل به فریاد غرونه — دا سنګدل مګر ستم په درست جهان کا

تل په خپله ښیښه مست لکه غنچه یم
څه به یاد په ما شیدا پیر مغان کا

حلاوت شه په عالم کښي بس عجب — په شکر باندِ شي لید مګس عجب
ګرمي هسي د صحبت ولاړه له خلقَ — چه له اورسره ښکاره شي خس عجب

سر بالا کړه لکه ګرد تر ګرد غافلَ — نن فریاد کا په دا لارجرس عجب
بلندي ئي د حباب په شان یو دم ده — څه آماس لري د سر نا کس عجب
له تیزئي ئي هیڅ غبار د جولان نه شته — لکه چرخ لري کبود فرس عجب
د سبب له پردي ؤ زه شیدا ګوره
بي حائلَ د ګرداب قفس عجب

نه حاصل د ممسکانو له دولتَ — د اشعار بحر وي تل بي تراوتَ
خود بیني کله شیوه د صاف طینت ده — سترګي نه دي هیڅ آګاه له دِ رویتَ
سرګردان کاند ګرداب خلاف د بحر — پیروي ده د کلان بي مضرتَ
د زوال علاج هرګز نه شي په زرو — آفتاب وه ګوره چه پریووت له رفعتَ
د مرآت غند جوهر په ایرو ورکا — کله فعل د صاف دل وي بي حکمتَ
چرِنه چه دار محروم په میدان پریږدي — که یو سر په تن لري بلند همتَ
په ذلت کښي مي عزت د ارتفاع دي — که مي څوك لکه غبار وهي په لتَ
همیشه وي نرم چوب غذا د کرم
شیدا مشه مرد خالي له سیاستَ

ایوانِ څه کوي په دا سپنج عبث — دردِ سر وارِه ضائع دي رنج عبث
د دنیا قحبه همیش مردارِه ګرزي — فریفته ئي شوي په ناز و غنج عبث
نه ئي خوري نه ئي خوروي خاورِئي قوت شي — څوك چه جمع لکه مار کا ګنج عبث
څو به جورِ وي دړئي مشکین خالونه — یا لباسِ زعفراني د جنج عبث
عاقبت به د دِ نردِ بازي باخته شي — چار و دو لري تل شش و پنج عبث
تك و تاز بویه شیدا په لویه دشتَ
شاطري کوي په دا شطرنج عبث

ه مدام لمستئي پروت ئي فه کړِ هیڅ اندیښني نورِ — شه ساحل د محیط بحر یعني ؤ څښه اوبه
شتِ پردِ عندلیبَ د ګلریز خس و خاشاك کړه — تل د عشق په نو بهار کښي تر پتنګ پورِ کو
اره لکه شفق څي سره لمن هسکه نیولي — په آسمان کړه خپله خونبه بیا آخته د خون

ب کښي مي کور ځکه د حباب پشان معمور دي    چه بنا ئي هرګز نه شوه دل بسته په مسکن پو
ي قسمت ځني وګړي په هزار شان حاصل کړ    د حباب پیالي که بحر تل پلاس کښي وړي نسک
يم را باند راشي لکه نمر په زر ریزي کښي    زه په دا افتاده ګي کښي ترګریز کوم د سي

له سائي سره ئي نه وي شیدا سم د شهباز اصل
چه قانع لکه همای شي د دِ خوان په لقمي سپورِ

په دا بزم کښي به لوي تر جمشید نام کړِ    د فلک پشان که خپله ښیښه جام کړِ
چه ئي لري کړ نقاب له زیبا مخه    د صبا قاصدَ فکر د مقام کړِ
ناز به نه کوي هرګز په نو حظئِ    اندیشه که په آغاز کښي د انجام کړِ
مشي بوي د دِ تنګ چشمي غنچي ګلَ    ازاله که له دماغ د سر سام کړِ
ډیر به ستا په سبب خواب د راحت وُکا    که د مهد په شان ورك د ځان آرام کړِ
رنګ دِ څه وُکا پرواز د غنچي مثلَ    خپل صورت دِ ځان دانه کړِ هم ګلدام کړِ
ځني ګوي دُ هند سبزان یوسي په سترګو    آراسته که په هر باغ شاخ د بادام کړِ
د تنور شعله په آب د فواري شي    سرد جوشي که ور ته یاده د ایام کړِ

شیدا زده کړه د آفتاب ګرم روئي
لاَر به طي د خپل مقصد په یوه ګام کړِ

په سبین مخ ئي تورِ زلفِ تار په تار کړِ    د عالم خوني ئي وراني وار په وار کړِ
څوك دِ روغ نه دي پریښي پدا ملك کښي    د غمزي توره په لاس په چا ګذار کړِ
چه آفتاب دِ د جمال شه بي نقابَ    بیا به ګرم په عالم د عشق بازار کړِ
مسخر دِ ولایت کړ په خوبیو    غلامان به تول خوبان د هندوبار کړِ
هیڅ به کم ځما جنون نه شي حکیمَ    خپل ګلداغ به را ته عین نو بهار کړِ
چه د زړهِ په هدف تل لکه سم لګي    د کږو بڼو له تیرهِ به ځو زار کړِ

خپل ناکام به دیوانه شیدا دربیائي •
که دامن په کانیو ډك لکه کهسار کړِ

بوي په زلفو کښي ځما ګلبدن راوړ    که په دام کښي ئي آهو د ختن راوړ

خاصیت لري د گل غنچه دهانَ پس له کاله دِ څو ورځي دیدن راوړ
قطرات د اوښو تل په دامن جمع په نصیب مي لکه چرخ گریستن راوړ
چه څما په آتشین آه نرم نه شه زړه دِ سخت را ته ترسنگ و آهن راوړ
شمع څان ترمرگ پخوا ژاړي عالمَ د فانوس په بهانه ئې کفن راوړ
سر زنش به بیا د کوم شوریده کاندِ د صحرا په دود ئې سنگ په دامن راوړ
د ماتم لباس مي سپین په بدن نه شه ما د خاورو په نشان تور پیرهن راوړ
نن شیدا له څانَ سیر دي لکه شمع
ستا محفل ته ئې بي سره گردن راوړ

راغلي بیا په قصد د گلو گل فروشَ چه هیڅ مرغ د چمن نه دي بي خروشَ
هر جرس ئې دي حباب د هموار بحر قافله په دا. صحرا درومي خموشَ
په طلب کښي ئې شه رنگ د څان په وینو لا ئې نه رسي یاقوت تر بنا گوشَ
که افتان لکه پروین کښي خیزان څي ستا له بزم روان شوي څو مد هوشَ
ما لباس ور پسي رنگ د گل په شان کړ لکه بوي هسي مي وُه ووت له آغوشَ
راشه گوره د کاکل سیه مستي یو قدم په لارِ تلي نه شي بي دوشَ
د آسیا غند به زړه د گرداب وُه چوي
زمانه شوه د شیدا هسي سرِد جوشَ

چه غیرت ئې پیچ و تاب په هر موکښیښ شاني ولي لاس د تا په گیسو کښیښ
ندي سترگي د آهو ښه ورته څیر شه ستا د سترگو شوخي داغ په آهو کښیښ
گویا بوي د یوه خار په چمن نه شته تا د گل په بستر هسي پهلو کښیښ
څو به نازکوي فلک شب هلال چه له خیالَ ئې کلاه په آبرو کښیښ
چه اثر ئې په بیمارو سترگو کاندِ په شرابو ئې لقب د دارو کښیښ
پیچ و تاب ئې د حسرت دي جوهر ندي تا چه مخ وته مرآت رو برو کښیښ
هغه لاندِ کړ شیدا جهان په فکر
چه ئې سر لکه آسمان په زانو کښیښ

اي څما تنها خاطره کم فراغ — چا صحبت در سره گرم کړ بي داغ
گل مي هسي په قفص د غنچي بند شه — چه ئې رنگ چرِ پرواز نکا له باغ
په باده کښي ئې بهار دي جنون يښي — را کړه ما ته نهاځ د گلو څو اياغ
در کښي نه شته د چراغ گرم روئي — پروانه دِ څکه ورك دي شب چراغ
تواضع د بلندئِ پايداري ده — لکه سر د کوه قاف شه بي دماغ
تل په هيڅ وي سيه مست سفله وگړي — جام جم کله راغلي دي تر زاغ

چه ئې سترگي دي په کنج د زندان سپړدي
د شيدا وحشت خبر نه شه له راغ

بيا دِ راوړي په رخسار تار په تار زلفِ — که پريشاني کړي سنبل په بهار زلفِ
گستاخي وه د شاني شوخي د باد هم — بي څه نه دي آشفته د نگار زلفِ
ورته وُه گوره عجب دورِ قمر دي — پچيده د هغه شوخ په رخسار زلفِ
راغله نن نوي فتنه له جولان گاهه — چه ئې راوړي په رخسار د غبار زلفِ
د شاني په دود پيدا کړه رسا فکر — باريکي لري څما د اشعار زلفِ
چه ورځي له درازئِ تر زمينه — قدم سم نه ږدي له نازه په لار زلفِ

له کمنده ئې شيدا څه رنگ رها شي
چه شيران د دشتي بند کا په تار زلفِ

چه ناله کړه عندليب د نو بهار گل — خوله چه پريشوه د غنچي پڅپل رخسار گل
هرگز نه شه په احسان د پسرلي مني — له صورت کړ پيدا د شمع تار گل
سرِ سبزي ئې د بهار له ابرَ نه ده — په خپل زخم مرهم کښيښه د زنگار گل
ستا له باغ خزان هسي دور تر اوسه — چه شي بوټي د چکن ستا په دستار گل
شکسته شي لکه رنگ له نازکئِ — که بستر کا ور ته جوړ د خپل کنار گل
غلغله ئې په سودا وُ که بلبلي — رخت چه واکا يو نفس په خپل بازار گل
چه په شان د بوی روان شه له چمنَ — معطل نه کړ په لار کښي د پا خار گل

٥١٣

## کاظم خان شیدا

په تدفین به توزِ خاورِ د صحرا وِ
شه چه زرکړه شیدا خرڅ د خپل سرکار گل

چه لبریز لکه لاله په مې ساغر کړم مهیا کباب د خپل سوخته جگر کړم
ملك و مال دي تل باخته د آزاده ؤ دا بازي لکه گوي څکه په خپل سر کړم
د فانوس په پرده بند لکه شعله شي زه که برق د یار په لوري نامه بر کړم
په صورت مي شي خولي له حیا ماتِ که و نان ته د آفتاب ځخو نظر کړم
ایمني مي غنچه شان وي له گلچینَ پوشیده چه لکه عیب خپل هنر کړم
کله لوبست شعاعي خط شي په کورانو که آسمان مژکه د حرف زیر و زبر کړم
نور به څه په بل دښمن ؤ باسم توره په خپل تیغ د ځان خونریز لکه سحر کړم

شیدا نه موسم گرمي له هم صحبتَ
که خپل ځان په سرو لنبو کښي سمندر کړم

هسي رنګ له دِ عالم تنها خوښ یم چه مدام لکه وحشي په صحرا خوښ یم
ترهغه چه خشك طینت د ساحل وینم لکه موج آواره په دریا خوښ یم
چه شاړ ئي له لقمي وړې مکس شي کله زه د هغه خوان په صلا خوښ یم
چه په شان د آفتاب نه ده گرم رویه ستا په سرکه په سایه د هما خوښ یم
چه په قید ئي د قفص کړم لکه زرکه تر دا هسي خندا زه په ژړا خوښ یم

که بیدار لکه تصویر له خوابَ نه شه
په ذا حال له خپلَ بختَ شیدا خوښ یم

چه له خپله سره تیر د کِلك په شان یم په طلب هاله د دِ کښلي جانان یم
دا گرمي ستا د چشمانو د نګاه ده چه سوخته لکه د تا سیه مژگان یم
چه خاطر مي شه مسکن د دِ سبزانو را ته وُه گوره یو نوي هندوستان یم
دَ شاني په صد پارهِ جگر قسم کړم چه په غم کښي دِ تر زلفو پریشان یم
د خزان له ترسَ گل ته کتي نه شم په دا باغ کښي لکه بید هسي لرزان یم
که پرواز مي په هوا دي رها نه شوم مطوق د هغه سروِ خرامان یم

د غبار په شان ئې یووړم پروا نه کا — دامن گیر د هسي شوخ گرم جولان یم
په هندنۍ ادا ئې وُه کړِ په ما چارِ
زه شیدا په زړه ساده د روه افغان یم

چه مین په کجلي سترگو شهلا یم — مبتلا په یوه څه توره بلا یم
یو قدم په مزکه نه لگي بي سنگ — سرگردان په هسي لار لکه آسیا یم
له احوالَ مي غافل تیر و تفنگ دي — چه ممنون د تنهائي لکه عنقا یم
چه مي نه شي قراري په یوه دشتَ — نه پوهیږم شوریده د کوم صحرا یم
د گداز موجَ مي دم په دم زیاتیږي — له ساحلَ مي ځان وُه ساته دریا یم
حواله مي په تیشه د فرهاد نه ده — تر هغه چه نا هموار لکه خارا یم
تر هغه چه سرد جوشي د حنا وینم — خوښ په طور د سمك بي دست و پا یم
آمیزش مي لکه آب د گوهر نه شته
شیدا کله له ساحل سره آشنا یم

چه جرس ئې خالي نه شه له فغانَ — قافله ده په دا دشت سر گردانَ
په خیره نظر جلوه د حسن څه کا — آئینه و دِ عالم ته ده حیرانَ
اختلاط ئې په وحشت د سترگو نه شي — د هوسیو رمه رم که له شبانَ
مگر وُه ژاړه فرهاد سیل د زړکو — چه په سرو سترگو راځي له کوهستانَ
د صبا په شان ئې طرز د خرام وینم — بیا په عزم د خونریز ده خرامانَ
چه مشغول په تماشا د نو بهار شوم — هیڅ حاصل مي په کښي نه وه بي ارمانَ
په هر ښاخ ئې د گلبن وِ یو څو چیغي — دریده ووُ په ماتم کښي څو گریوانَ
لکه موج په هر دم زیر و زبر دي — د وفا طمع به څه کړي له جهانَ
په هر لور لکه حباب خانه بر دوش ځي
که شیدا شه آواره له خان و مانَ

د اشفاق طمع به څه کړي له اخوانَ — نتیجه ئې ورکیده دي له کنعانَ
آخر وُ ژاړي په شام د غریبانو — که هر څو د وطن صبح ده خندانَ

# کاظم خان شیدا

زمانه په رعایت د ګاو و خرده پرورش د علف زار بویه باغبانَ
د کورڼي نیل دِ پوري په دیده کړ بصارت د تمیز نه لري آسمانَ
د غبار تدبیرِ دِ څه په خاطر ګرزي اي د ناز په مقتضي دامن افشانَ
هغه دم شي نیشکر له شیرینۍ ته چه لب کښېږدي په ني څما جانانَ
په لیمه کښي ئې د خس په شان غړیږي تا به سبز کا سپهر کهکشانَ
خسته زړه ئې غورزوي پتورو خاورو
اي په رغم د شیدا کاکل افشانَ
د شبنم دانه که تخم شي د ګلو زړه به سوړ په دیدن نه شي د بلبلو
چه ئې نه شته لکه ګل ښه رخسارونه څوك به څه کا توري زلفي د سنبلو
حال د سوي طالع څه بیان کړم چا ته لکه نمر څما جبین دي د داغلو
معطل په عارضه د شام غریب دي که مي زړه په حلقه بند شه د کاکلو
د آسمان په شان ئې تیز د فتنو تیغ کړ صبح و شام ګرزي ښکاره په سرو منګلو
د دریاب له سردِ جوشۍ د حباب زړه چوي
شیدا قطع د امید بویه له خپلو
کاشانه د دِ دنیا وُه ګوره درومه آشیانه لکه عنقا وُه ګوره دروه
کهن سال لکه اطفال کوي بازي دا عجبه تماشا وُه ګوره دروه
که مي نمر په تندي وُه دري همایه په دا حال مي استغنا وُه ګوره دروه
په مشعل د خپل خاطر په دا ظلمت کښي لار د تللو برق آسا وُه ګوره دروه
سمك نه لري بهره له دست و پایه په دریاب کښي ئې شنا وُه ګوره دروه
په محفل کښي د مینا یوه کړۍ په دا ډکه خوله خندا وُه ګوره دروه
دم د مهرهرهِ وړځ وهي شیدا ته
د فلك مهر و وفا وُه ګوره دروه
روغ به نه شم بي وصالَ راشه کښېنه شه خبر څما له حال راشه کښېنه
آخر کړي اِدي قرار رم سرشتانو د وحشت په خوي غزالَ راشه کښېنه

په مراد د عندلیب بي وفا گلَ جلوه گر شوي پس له کالَ راشه کښینه
زه آرام لکه بسمل په پرهار مومم له تا`نه غواړم دسمالَ راشه کښینه
تل په دا خمنه ابرو په شهلا سترګو د خپل یار شام و هلالَ راشه کښینه
چه ایام کړو سره یاد د بي غمئ یو ساعت څما همسالَ راشه کښینه
نازکي د یار د طبع کړه منظومه
اي شیدا نازك خیالَ راشه کښینه

په انزوروي بلبل ؤه کړه چیغارونه کښیده ئي تازه گل ستني خارونه
په رخسارئي عرق وینم توري زلفي که د گل په شبنم میل کا مارونه
په یوه قدم عصا خي تر تا وړاندِ مستعد په لړ اسباب کا ډیر کارونه
و چشمانو ته ئي خم دواړه ابرو دي صیادان د غزالانو کا ښکارونه
که ئي ؤه لګي نظر د تا په حسن د تالاب په شان به بند شي آبشارونه
پس له شامَ گوره رنګ د شعله رویو په شپه گرم وي د شمعو بازارونه
د هغو د سر کلاه کله پریوزي چه ئي ترك لکه آسمان کړه دستارونه
چه روزي ئي استغنا په شان د آب شي بي مرهمَ ئي رغیږي پرهارونه
د شیدا د طبعِ ښه بلبل گویا دي
راشه نن د خیالات په گلزارونه

په نرميَ د هیڅ دښمن اعتبار مه کړه له دریاب سره بي غمه روزګار مه کړه
آخر نهویني آرام د بسملانو د مرهم فکر فکاره زنهار مه کړه
لاس دِ پر لکه مرآت پخپل جوهر دي هیڅ منت د معادن و مدرار مه کړه
خلاص به نه شي سرکشان له گوشمالئِ چه فلك په جهان شته دي تلوار مه کړه
سکونت دِ په اختیار نه دي تمثاله آرایش په آئینو د دیوار مه کړه
زر افشان لکه آفتاب شه بي طلبَ
شیدا سوال ته د سائل انتظار مه کړه

څه افسون دِ په ما ؤه کړ پریزاده چه یو دم نه یم خالي د تا له یاده

زړه مي دك لكه سپند دي شعله بويه — چه د زړه په مراد وُه كړم څو فرياده
بهانه دِ د غرض مكر شانه كړه — ته ئي لاس ور وړي و زلفو ته شمشاده
چه آواز دِ د تيشي په كهسار نه شته — د شيريني په طلب لاړي فرهاده
پاسباب كښي مي زړه بند پاسباب نه دي — د چمن په قيد سروه ده آزاده
نتيجه ئي د ديدن عظيم آفت دي — لكه برق شعله په لاس وزي بيداده
مهيا ورته قفص د شاخ گل كړه — كه څه رحم په بلبل كوي صياده
په سختي كله امساك د دولت كيږي — جوهر نځي په هيڅ وقت كښي له فولاده
چه په هر منزل كښي سرخوري لكه شمع — د هغه رهرو څه نفع ده له زاده

همیشه ئي پيچ و تاب لكه جوهر وي
چه شيدا راغي تر دِ حيرت آباده

كړي چا په خپل هنر خود نوازي ده — په محمود باند موقوفه ايازي ده
د دنيا نعمت ذليل كړي لكه زړي — په خروج دِ له ميوي سرفرازي ده
زه په صل مرگه يم مړ په ژوندانه كښي — هر نفس مي لكه شمع سربازي ده
د هدف په شان مي آه ترخولي وُنه خوت — كه زده كړي دِ په ما تير اندازي ده
په ژوندون به لكه شمع دل سرد نه شم — چه ترمرگَ پورِ څما جان گدازي ده
د پتنگ غند ئي تل په ما غضب دي — چا مي كړي شعله خوته غمازي ده

راست گويان لكه مرآت شيدا حيران دي
په هر لور د زماني سخن سازي ده

نو بهار له باغ و راغ سره آشنا شه — په سرو ستر گو ئي ژړل څني جدا شه
د غنچي د رباط در په وا كيده دي — قافله د رنگ و بو دروِمي صبا شه
د سوخته جهان لوخړي فلك بولي — ستا خطا فكر ته څه وايم خطا شه
آبادي ئي مستلزمه د زندان دي — هر خاطر چه آزاده لكه صحرا شه
چه تر اوسه دي حيران په جهان پاتي — د مجنون اسم څما په تماشا شه
چه په تله ئي خبر نه شوِ په افكار هم — ستا له صافَ شستَ تير هسي رها شه

٥١٨

اپادي ئي بيا محاله ده ناداڼ
د شيدا خاطر لوي ښهر وُه تالا شه

اعتماد نه شته په کار د آسمان څکه چه له دِ اوجَ ئي نمر وُه ويشت په مزکه
و هلال ته ئي ورکړي په لاس لوردي د درو کارونه غواړي له نازکه
د دنيا آرايش هيڅ دي و دانا ته په خپل حسن به نادان غلوي نيزکه
نه به څه په دا ميدان چوګان بازي کړي عراقي په نيستان نه شته هلکه
د سحر دولت کامل بدر حاصل کړ لکه مياشت د خپل نقصان له لاسَ ورکه
د ذري په احوال تل د نمر نظر وي لوي به نه ګوري واړه په سترګه سپکه

که دِ جام لکه حباب وه نه نيو سيند ته
آفرين دِ په همت شيدا ختکه

لوي راحت دي ستا د جور ګزندونه لکه نيش هسي دِ نوش لري خوندونه
څما زړه ئي کله را نيو ستا له زلفو که هرڅو ئي شاني تاو کړه مړوندونه
د آسمان ګردن ئي خم کړ انسان څه کړ په ادا کښي لري هسي کمندونه
د صورت له دامَ خلاص سبکروحان دي نه وي بند د زرګو سيل په بندونه
د راستي په سپينه لار سنګ و خار نشته په ليمه لکه حباب کوم پندونه
تعلق نکا اثر په صافو زړونو سره لري دي ښيښه و پيوندونه

چه پيدا کانده شيدا راستي د ژبي
څوك تر آخلي لکه سروه سوګندونه

په خلاف د خپل تاثير سرمه سائي شوه چه د سترګو ئي لا زياته ګويائي شوه
هميشه د زړه کلام آروي بي صوتَ چه نصيب ئي لکه کلك شنوائي شوه
آئينه ورته آفتاب نسي د صبح بيا شيوه د ګلستان خود آرائي شوه
له آسمانَ ئي کم نه دي بام د خوني د فتني په کار ئي ختمه رسائي شوه
تهيه د زندان بويه اي صيادَ طائفه د بلبلانو سودائي شوه
زړه د خپل فلاخن سنګ په دير هراس کړم چه پياله مي لکه چرخ مينائي شوه

استعداد ورکړ فلك وکج نهادو په ناخن چه د ګره کار کشائي شوه
تر انسان شیدا راضي په اژدها یم
چه د ګنج په شان مي خوښه تنهائي شوه

آماده په هسي شان یم و سوختن ته چه شي برق د صورت بریښ خما خرمن ته
کار په خپله تر دستي لکه حباب کړه چه محتاج د خیاط نه شي پیرهن ته
حوصله مي خوشه واروي تل لبریزه که پرواز نه کړم هرګز دانه چیدن ته
زبان دان د هر زبان په هسي شان دي چه جواب په ظرافت کا و سوسن ته
نامور به په جهان شي تر شیریني که تیشه ورکړي یو دم و خپل کوهکن ته
په ګلګون سرشك مي رنګ لکه غنچه کړ هاله جوړ شوم د ګریوان و دریدن ته
د صبا په سعي ګل د مالکي څه شي کله جوړ دي ترش جبین و شفکتن ته
خو په بحره ئې ژړا لکه شبنم وي
چه شیدا ور شي بي تا چر ګلشن ته

څه آرام کاند حاصل په دا جهان زړه چه مدام ریږدي له بیمٙ د آسمان زړه
په فراق د رفته آب غافلٙ خلقٙ قوي کړئي لکه ګرداب په خپل دامان زړه
هرګز مه شه دل بستهٔ په دا باغ پورِ چه آخر ترِ غنچه لاړه پریشان زړه
راشه ؤه ګوره د درد ژړا په وینو د مینا په شان مي راوړ خون فشان زړه
په دریاب نه شوه رخنه د ګرداب رفع سیاست ته راوړ سخت لکه سندان زړه
بال و پر به دِ شیدا د طیران ؤه شي
که ته صاف لکه بیضه کړي په آشیان زړه

هر قاصد چه روان شوي په تور تم دي پریوتلي هغه دم لکه شبنم دي
د لیلي په رګ نشتر قیس مجروح شه که ئې نه وي دا صفت کله همدم دي
په معني کښي ئې لیده کښلي صورت شي که مبني په دا دیوان بیت الصنم دي
چهٔ جرعهٔ ئې په ساغر نه شتهٔ د میو په قطره ئې قادر نه بولمـ که یم دي
نوي خط ئې شه نژدي و لب شک ته که په لاس کښي ئې تعلیم شیرین قلم دي

رغیده ئي لکه برق معاً فوراً دي تا چه ینبي په هر زخم خپل مرهم دی
لکه نمرچه سوزان داغ د شپي په داغ شي ځما داغ په داغ دا هسي بي اهم دي
چه سایه کاند مدام په سر د ستړیو
شیدا شام د غریبۍ عجب عالم دي

په دیدن د زیبا مخ سترګي مړیږي د آفتاب په چشمه خوا د چا سړیږي
لا علاج لکه سیلاب صحرا ته درومم چه په سر مي هر دیوار د کور نړیږي
نوبت مه غواړۍ د کارتهي دستانو د حباب دانه د چا په آس وریږي
مکدر ئي په کلام شي تمام بزم پهر دم چه د قلیان په شان ګړیږي
په مرهم د زنګار روغ نه شه زیاتي کا د هلال په دود مي زخم ځو زړیږي
له نظره دِ ئي بیم کا خوب و زشت هم
ځو چه سترګي د آسمان شیدا غړیږي

د راحت آسباب مي نه شته په محیم کښي چه خیمه لکه حباب لرم په یم کښي
که مالك د یوه خس نه ئي غم مه کړه قریه سوز آتش به مري ستا په حرم کښي
په عرق دِ رخسار ترشه ستا په سر رو ما فروغ د ګلریز وُه لید په شبنم کښي
د عزلت په حجاب کله پوشیده شوي د عنقا غند ځرګند ئي په عالم کښي
التفات ئي سترګي هونبره را ته نه کا لکه شوخ آهو چه وُه ګوري په رم کښي
هیڅ علاج مه کړه ځما د رسا زخم د بسمل صحت به څه وي په مرهم کښي
صبح و شام سیه لباس او ګریبان ځیري زماني غند مي زیست دي په ماتم کښي
خوش خطي ئي د رخسار په عجب شان ده نه شته کار د هیڅ قلم په دا رقم کښي
همیشه به شیدا ځان په څه شان ژغوري
چه مدام د زلفو مار وي په تور تم کښي

## اشرف خان ختک

٥٢٢

د بوسي وعده همیش یار په فردا کا — زړه خما کله باور په دا وینا کا
چه هوس کا نن د ګاندو په کارونو — عاقلان په هغه کس پوري خندا کا
یار آګه نه دي د دهر له نیرنګه — لا ربنتیا په زړه کښي نه لري دغا کا
هونبره نازد زیبا مخ په حسن مه کړه — خزان ګوره ښکل هیڅ د ګل صفا کا
ته له کبره چه له ما سره دروغ کړي — زمانه به د عمل جزا در بیا کا
د وصال په ملك اسباب د عیش ډیروي — ولي زر ئي د هجران لښکر تالا کا
د ګل مخ ته هرګز مه ګوره بلبله — جدائي به دِ تازه زخمونه لا کا
په صلاح به بلبل ګل کله رخصت کړ — د خزان باد ئي په زور ښبله جدا کا
د صبا په امید ډیر په ارمان لاړل — نن به څوك باور د عمر په وفا کا
چه په طمع د ژوندون ترِ فراغت کړي — شین سپهر فرصت کله د بقا کا
نن نوبت د یوه کار په جهان وینم — ګانده بله چار ښرګنده په دنیا کا

بیجاپور هجري په خوب لیدلي نه وه
آخر پیښ شي هغه کار چه ئي قضا کا

چه زلفینِ پرېښه مخ باندِ مړغول کا — هر زیبا مرغول ئي وژله لکه غول کا
هرچه مخ ئي برهنه په چشمو وُه لید — په ژړا لکه مجنون خانه په چول کا
په چارګل ئي ملك همه زیرو زبر کا — لا به څه شي چه په غاړه همه پسول کا
هیڅ اثرئي په زړه نه شي له نخوته — که شیدا په ناله تشه ناله قول کا
هغه کار چه یو نظر د جونو ګاندِ — هسي کار نه هراول نه د شه غول کا

شپې مه رِده په کټ پښه چرِ به خوربِشي　　ځو ګلونه د بستر خادمه تول کا
هر شیدا چه ئې په دید د حسن ورشي　　تش بدن ئې رهیده خاطر ئې اول کا
عشق یو څه سنګ محك دي په دنیا کښِ　　هر چه شك د غش لري نما ئې پول کا
د خورو ځنیو بها په جهان نه شته　　د دنیا په مال ئې بیع مکر ګول کا

هجري قدر د طرو تر هر څه ډیر دي
که عزت ئې څوك د عشق په تله تول کا

چه اوربل د مخ دپاسه لکه سپر کا　　د سرو ګلو ئې خاصیت همه د نمر کا
د یاقوت مثل ئې سکور نته آتش ده　　سور بلاق دِ څنګه جور لکه شرر کا
څمکلي ئې څکه سره د یار په وینو　　چه خلش ته ئې هر دان لکه نشتر کا
ابروان جور لیندي بانه ئې غشي　　پیرایه د حسن توره څوك خنجر کا
هغه دم چه سنګار وه که روانیږي　　یو نظر ئې صد ساله صوفي ابتر کا
ژولیده زلفي چه خم کا په رخسارو　　خرابئ ته اجازت زنګي لښکر کا
توري سترګي ئې لا توري په رنجو کړي　　هر بانه به د آشنا په وینو تر کا
نرمي نرمي قصې کا واړه فریب دي　　په بهانه بهانه په زړه د سحر ګر کا
اور ارم ئې و عاشق ته مهیا دي　　د وصال خوارِه بهښت هجر ستر کا
د عشق سیوري مشخص سنګ پارس دي　　په هرچا باندِ چه وه مښې تن ئې زر کا
په مذهب د سربازانو کشتني دي　　چه د عشق په لارِ څي له غاوه ډر کا
غټ دِ نه ګوري هرګز د یار و مخ ته　　چه مایل وي په حیات ویره د سر کا
هر چه وه کړه د هجري په زړه دلبرو　　هغه تاخت په سر د مغل کله خیبر کا

له جفا به هجري شا نه کا و یار ته
که لت پت ئې تن په وینو کښِ احمر کا

د ارمان په داغ به زړه خپل مبتلا کا　　چه باور څوك په کارونو د دنیا کا
په الطاف ئې غرور مه کړه فریبي ده　　ګمان مه کړه چه دا مهر په رښتیا کا
چه له تیرو ئې وفا ترسره نه کړه　　هر چه نن څني وفا غواړي خطا کا

د هر کار بنیاد ئې یېبي پر جفا دي — مه وفا غواړه له دوره نه وفا کا
په یاري د هغه یار بدائي مه کړه — چه په یو نفس هزار ځاي خندا کا
زه د یو ساعت باور په عمر نه کړم — هغه اوم دي چه امید دیر د بقا کا
دا زیبا مانړۍ چه ته په جهان ویني — نهایت به ئې ګردون همه صحرا کا

یو زمان به هجري تیر په دکن نه کړ
دوران کله په وینا خپله رضا کا

چه ئې زلفي پر خپل مخ کړي پیچوتاب — څما زار په مخ ئې پرانت د غم باب
غم د یار له همه ما کړه میلمه شه — ما حضر مي ور ته پیش کړ زړه کباب
محبت څه هسي زه مالیده نه کړم — چه به خوښ شم په صل جامه د شراب
زه په تیغ د هجر غوځ بهار به څه کړم — زیري روغ خلق ته کار کا د رباب
لا د عشق لنبي و ما وته جنت شوي — یا ماهیو ته بهښت وینم دریاب
په نرمي د زړو تسخیر کا غلط مه شه — دام طائر ته صیاد پټ کا په تراب
چه په خم د زلفو بند شو تپش مه کړه — مرغه لا په جال آخته کا اضطراب
نن به څه مومم رها د عشق له چنګ — که هرځو مي وریتوي د عشق په تاب
هغه دم مي ئې د زړه زړکه شکون کړه — په ازل چه ښکار کاوه د ده عقاب
د ذقن په چاه کښې بند رها مي نه شي — مګر را کا له دوو زلفو یو طناب
شپه د هجر طولاني ده تر حساب — ځو به ورځ د وصال ګورم زه خراب

ما هجري چه د باور په چشمو وه لید
د وصال عمر دیر کم دي تر حباب

خسته زړه مي تازه نه شي په شراب — خشکه ونه باران نه کاندې په آب
شورش مه کړه د ګردون له کش مکش — لومه کلکه که مرغي په اضطراب
له هرچا طمع په قدر د هنر کړه — په منګل به ور طوطا شي د عقاب
هر صنم و خپل مېن ته حمیده وي — ماهي خوښ په بحر نه وي تر تالاب
تویول د شهاب څه عدد ئې څوك کا — زه اوبه کړم د هجران په شپه عذاب

د حاسد په طعنه غاوَنه کا ربنتيني — په سنګيني زمکه شور لري سيلاب
نه به جال د مکر بند شي د رندانو — نه به جل شي د نهنګ په منځ ګرداب
يك رنګان دِ فکر نه کا له دو رنګو — سم سوري د منګور کيږ شي په طناب
په زحمت به مي ګردون ترحم وه کا — که په مړه دلسوزي کړي وي قصاب

عندليب ختك ئي بند په هسي ملك کړ
چه طوطا ئي ژبه وائي د غراب

د هجران له دوکه څه وايم و چاتَ — پرِئي نه يښ د فرياد طاقت و مات
هرستم چه په ما کا همه روا دي — خو يو څل دِ مسته وه دري منځ راتَ
سرهِ کندن ئي په مړوند عجب نماي کا — هرګز مه شه په آفت د ګردون ماتَ
دلسوزي مي په حال تل کوي طبيبَ — وائي خلاص به په علاج شي له آفاتَ
د بدن رنځوري پيژني بي شكَ — د زړه درد برهنه کله دي و تا تَ
زه ختك هرګز رضا په پرديس نه يم — د يار ميني کړم جدا له قراباتَ

د هجري غم به بدل په خرمي شي
که څوك راوړي ګړي مي له خراباتَ

لکه توره د يار هجر کړه په ما ورځ — په چا ور مه شه هرګز هسي سيا ورځ
نه څما په هجران خوښ مه شه رقيبَ — نهايت به شي دا هسي توره ستا ورځ
که وفا د وصال وار د هيچا نه کا — آخر شپه د هجر هم شي مجلا ورځ
د شباب د بهار ورځ ترګلو ښه وه — ولي نه وه چندان هسي با وفا ورځ
ياره راشه په ديدن مي مشرف کړه — حق پيدا په جهان نه کړه د بقا ورځ
نه چه تل وعده د وصل په فردا کړِ — ګوره کوم منځ تولد کاندِ صبا ورځ
ورځ د عيش لکه باد هسي آجر شوه — څو د ما سره کينه کا د عنا ورځ
خو آخر به لکه باد هسي ماضي شي — دا چه وينم د فرقت بي سر و پا ورځ

غم ښادي د ګردون تل په قرار نه وي
خو به تيره شي هجري دا د جفا ورځ

په دنیا کښ پیدا نه کا هیڅ ګلذار مخ / چه خزان ئې زخمي نه کا د سینګار مخ
کوم وصال د کوم دولت چه میسر شه / چه ئې خال د جدائي نه کا اظهار مخ
چا څیره دپاسه کږ په سر کښېښوه / چه فلك ئې نسکور نه کا د دستار مخ
چه معیوب په خط و خال د فنا نه وي / ما وه نه لید په دنیا هسي هموار مخ
باقي ګل په باغ د دهر منده نه شي / ځکه تل په اوښیو تر وي د هزار مخ
دا ګردش د زمان هسي بازیګر دي / چه هر دم کا برهنه د نوي کار مخ
چه ثابت په یوه لور وي جنبش نه کا / هرګز نه شته په جهان هسي قرار مخ
د نن کار طمع هرګز له صبا مه کړه / صبا ګوره هویدا شي د کوم کار مخ
را شه زړه د ختک وه ګوره مینَ / چه هر لوري ئې لري د غم پرهار مخ

هیڅ باور په رفاقت د عمر نه شته
هجري هر نفس په څیر ګوره د یار مخ

غم ښادي د جهان باد ګڼړه یا ګرد / په دا نه لري پروا آزاده مرد
آمد شد ئې تر صبا هم ګړندي دي / تجربه مي کړه د دور ګرم و سرد
هیڅ هوس د زماني و خوان ته مه کړه / یوه لقمه بي غمَ نه لري د خورد
په څو رنګ نقش پیدا په یوه دم کا / د فلك دورونه تاس ګڼړه د نرد
چا چه ناز د زماني په دور وه کړ / په خندا کښ زخم ورکاندِ پر درد
غم ښادي که ئې د هوښ په نظر ګوري / د بقا عمر ئې زیات نه دي تر ورد

هجري بد عمل تر شا مخ په صفا کړه
چه په ورځ د محشر نه شي ګونه زرد

هرګز مه شه ستا له حبه زړه څما سرد / لکه نه شه جورونو خاطر ستا سرد
ما به کله څوک ریښتني عاشق بولي / که مي زړه شي ستا په غم کښ له وفا سرد
نه څما خاطر هرګز له وفا سوړ شه / نه ستا خوي شه په دنیا کښ له جفا سرد
نل په هونبره جفا شا نه کړه دمن ته / نن به څښکله له تا شي زړه د چا سرد
څو غوغا پر همیشه کړه روغ وګړي / عشق هرګز نه شه د قیس له لیلي سرد

د سود پند ورته همیش کړ واعظانو وامق پند د هیچا نه کا له عذرا سرد
نه دنیا هرګز وفا له تیرو وه کړه نه خاطر شه د حریصو له دنیا سرد
ستا په دید مي سوي زړه هسي تازه شه څو ریحان کاندِ وهلي د ګرما سرد
د وصال امید مې، تاو د هجران سوړ کا او تبجن همیش خوله کا د شفا سرد
محبت به ستا په مرګ هجري پرِ نه ږدي
لباسي دي که ئي زړه شي په احیا سرد

لکه ما ته کا نصیب همه جهان اور هرګز مه شه په هیچا هسي زمان اور
په هغه جهان کافر په آتش سوځي هجر بل کا په دنیا ځما په ځان اور
بیلتانه هسي آتش را باندِ بل کا لکه بل کا د بلبل په زړه خزان اور
په انداز ځما د سوز کله پوهیږي چا چه نه دي آزمیلي د هجران اور
که د یار د هجر غم را باندِ نه وي را ته سهل وه سړیو د زندان اور
جور هونبره طغیان وه کړ د سرانو چه ئي وریت کړ د دکن خلق ودان اور
لا تاثیر پر ظالم نه کا سبب څه دي
د هجري په هر سحر لوني دهان اور

اي چه فخر په کثرت کړِ د متاع د نیکونو حال دِ نهِ کا امتناع
د نمود عمر ئي لږ دي تر ګلونو باور مه کړه د جهان په اختراع
مخ د زمکي که فراخ دي ستا پر څه دي ستا نصیب د دي په نس کښِ دري ذراع
چه دِ کور تر زمکه لاندِ مقرر دي بیهوده کړِ د مانیو ارتفاع
خورمي عشرت قسمت د نا خبرو غم اندوه واړه نصیب د اطلاع
طالبان د دنیا واړه جفاکر دي له هیچا مي وفا نه کړه استماع
لږ حیا د سړي توب له اسمه نه کا یو په بل خوله لګوي لکه سباع
که ظاهر سره بیور د محبت کا زړه د هر سړي مملو دي په نزاع
دا فریب چه نن ابنا د زماني کا روباه نه کا هسي مکر و اختداع
که سختي ویني له دهره ژړا مه کړه باقي نه وي د فاني دنیا اوجاع

ای هجري محبت ښه دي له یك رنګو
د دو رنګو یاري نه کا انتفاع

همیشه دِ یار څما وي په دنیا روغ    چه ئي تل نه وي له درده زړه څما روغ
پوه به درد د عشق بدل په دوا نه کا    هرګز مه شه له دي غم زړه د چا روغ
ته د خوږو زړو له حالَ څه خبر ئي    زه د عشق له غمَ زړه ګنړم د تا روغ
بل فګارئي تورو زلفو په سر کښیښو    زړه مي نه وه له یوه زخم صفا روغ
ښائسته که جفا کا څه ملامت دي    چه خالق ئي کور د زړه کا له جفا روغ
په ازل چه ئي جفا وکښلیو ورکړه    بیا ئي زړه کا د دردمنو له وفا روغ

نن ئي زړه په عنایت د بوسي خوښ کړه
په وعده به هجري نه شي د فردا روغ

چه امید مي ستا د وصل نن صبا کَ    شیرین عمر مي عبث په دا سودا کَ
نن ئي غواړم په زاریو منده نه شي    وقت د عیش مي د فرقت لښکر قضا کَ
د مقصود ثمر د بخت وني را نه کړ    په نا حق مي صورت سترې په ژړا کَ
په ازل چه د یارئي ونه خلقت شوه    خاصیت ئي د هجران ثمر پیدا کَ
ما به خوږ ثمر د هجر بي ګمانه    چه په باغ مي د یارئي نهال بنا ك
هیڅ ګناه د هجر نه وینم یارانو    زړه روا که دا فساد چه ئي آشنا کَ
نهایت ئي د هجرت په توره غوڅ کا    د چا زړه چه ئي په ښه مخ مبتلا کَ
هغه دم ئي د فرقت لوبه توده کړه    چه د عشق بازار ئي ګرم په دنیا کَ

هجري راز چا ته بیان نه کا د مینې
په کوڅه ئي د آشنا خلق رسوا کَ

په قدرت چه ئي پیدا اول قلم کَ    په زبان ئي د هر چا نصیب رقم کَ
نن هغه بخري نفس په نفس رسي    په قسمت د چا ښادي د چا ئي غم کَ
په جدل به نن هرګز د چا لوي نه شي    په رتبه چه ازلي رقم څوك کم کَ
کوږ به نه شي په حسد د حاسدانو    له ازلَ چه ئي کار د هغو سم کَ

مرګ بي وار لمن کله د چا نسي ولي نه پائي يو دم چه رزق ئي تم لګ
د قضا رضا خارج کا له بهښت په ګناه ئي بيا لازم غريب آدم لګ
هجري آه د زماني له زخمه مه کړه
رب فګار وته پيدا عجب مرهم لګ

هر چه اوسي په دا خونه د وبال و هر چا ته کشال شته په قدر حال
يو طرف د امن غوارم ليده نه شي جهان هونبره لبالب دي په کشال
که هزار عيش در وه بخښي سپهر په يوه غم کا هغه وارړه پايمال
نه ئي ښه زمان قابل د خورمئي دي نه ئي بد ساعت لايق د استمال
په اندوه ئي ملال مه شه باقي نه دي په هوس ئي هم هرګز مه شه خوشحال
که وصال د ښکلي مخ زمانه درکا زر دِ زره په نيش د هجر کا غربال
اقبال نه ورځي هرګز د چا په غولي څو همراه ور سره نه کاندِ زوال
دي پخپله ويل کا چه لا بقا يم که معکوس کړِ ته حرفونه د اقبال
د حيات کوتره کوزه کا له دوره د قضا شهند چه وا کا جوړه بال
اژدها له غاره وه باسي بي عذره ماهي وه کاړي له سينده بي مجال
په بقا د عمر ځاي د غرور نه شته لکه باد هسي ګذر کا ماه و سال
اي هجري لکه نادان بنده ئي مه شه
غم ښادي د جهان خوب دي لا خيال

هغه څوک چه په فاني نعمت ځاربه شول عاقبت چمچي د خاورو پرِ مارړه شول
هم هغه غټان چه حال ئي کتاب وائي وار په وار ذبح د موت په چاړه شول
مال و ملك مانئي ئي وه سپارل په نورو ځان په ځان دګور په خونه کښِ اوده شول
د دنيا په تش لباس عجب مغرور وو نهايت ئي ارمان وه کا چه په تله شول
چه له تيرو هيڅ وفا دنيا وه نه کړه نن پرِولي پس مانده هسي تاوده شول
دنيا ناوي بي وفا ده شوهر وژني عاقلان ئي له دوستئي څکه سارړه شول
د هر فصل ګل چه وه زوول په باغ کښِ بيا هم هسي د خزان په وارخواره شول

اي په تش هوس غره سامان کوچ کړه خپل همزولي در ته سترې په کاته شول
هديرو ته نظر کړه رياض به څه کړې مجلسي ياران دِ وه گوره چه څه شول
ناوي جونه ښه ځلمي مشاهده کړه کوښي گوښي په گورونو کښې وراسته شول

اي هجري بهښت په ښه عمل مونده شي
هرگز خوي د هغو مه کړه چه کاره شول

د ارواح د کوچ نيلي په زره کښې زين شول چه په زني مي ويښته د شباب سپين شول
د ځوانئي بهار چه وه ليښ له بدنَ د پيرئي په خزان تور ويښته زرين شول
د هجران اندوه چه نه دي سکاره کَړي دا هډونه مي د تن مگر روئين شول
لا مي بخت په خوب اوده شه مدت نه کا يا د دور حاکمان په زره سنگين شول
چه توبري ئي هيڅ اثر په صورت نه کا د آه غشي مکرمات په چار آئين شول
هسي ويني مي غم توي کړي تر سترگو چه نه ـ ري مي د صورت همه رنگين شول
حال مي وه گوره د کسيو له هجرانَ په گلذار کښې د سرو گلو په آئين شول
د غم تخم په زره پروت نه وي زرغون شي چه په هل ئي د هجران پټي سادين شول

اي هجري کشکي هجران په دوران نه وي
له تاختونو ئي په ځاي اهل زمين شول

هغه ورځ د هجر غم لره سزا شوم چه له يارَ په ژړا ژړا جدا شوم
ما هله ماتم د ځان وه کړ په وينو چه اتک وته مي شا کړه په ژړا شوم
اوس به څه د وطن کاني بوټي ژاړم د رخصت سلام مي کَړي تر بدا شوم
يو ناوک مي په دل لك راوړ له روهَ ځار و جار مي د باغ وه نه کړ خطا شوم
په محنت مي يو رياض جوړ کا په دهر لا مي گل بوي کړي نه ځيني سوا شوم
شين فلك په خندا سور شه له هوسَ چه هودي جبل په مخ زه ور ته شا شوم
يو پاړو په دکن نه شته چه مي دم کا گرفتار په کنج و کاو د اژدها شوم
د هوسئي په ښکر برات د وصل وه شه چه را پوري په ندئي د نربدا شوم
د وصال دول مي گنج پرِ نازيدلم تار و نار همه د هجر په وغا شوم

نن به څۀ له هجرَ زار کوم و چا ته — ما پخپله غم خرید کا چه آشنا شوم
بس غبار د هجر بخت را څخه کم کا — په بلل بلل ئي ستړي په صدا شوم

زه ختک د یار طلب کړم مونده نه شي
له نا کامَ ئي له غم سره ملیا شوم

یاره راشه په یوه وطن ماوا کړو — له خاطرَ مبرا اوږده رجا کړو
لاس په لاس به سره گرزو غنیمت دي — صلاح نه ده چه د نن طمع صبا کړو
له ازلَ شین سپهر جفا کار دي — خطائي ده که نن موږ طمع وفا کړو
څو یاران لکه رمه هسي غنچه وو — د هجران لیوه په زور سره جدا کړو
مجلسي یارانو کوچ وه کا له دهره — موږ به څو حیات آخر په دا فنا کړو
څوک به څښکله امید د عیش کاندِ — په دا دارئي همه غم لره پیدا کړو

یاره ته به هجري پرِ نه ښوي په روغه
په ستم سره بیل جور د بادشاه کړو

هجر څخو فرصت را زره مي پاره شه — سر ئي لاندِ ستا د جور تر اره شه
د یارانو جدائي مثال چاړه ده — د زړه سر مي پرِ قلم لکه تره شه
د وصال دولت به څوک سلامت یوسي — بیلتون سل زره لښکر پسي پره شه
را شه یو څل ختک گوره په دکن کښِ — چه له هجره ډیر نا څیز لکه ذره شه
د یار یاد مي قامت هسي پیچ و تاب کا — په دا کار مثال د زلفو په طره شه
د هجران خمارئي ژر په سر کښِ کښیتي — چه شراب د وصال نوش کاندِ غره شه

هر ساعت ئي په ستم د داړو نسي
د یار یاد لکه لیوه هجري بره شه

جدائي له یاره یو نفس ماتم دي — چه فرقت شي په کالونو خو ستم دي
د وصال په طمع باد غوندِ چلیږي — کنږه لږ هجر له قرنه سره سم دي
بي وطنَ تنها پروت یم په غربت کښِ — نن له ما سره همدم د صنم غم دي
د هواد آشنا په سترگو نه لیده شي — که په خوب را ته حاضر شي بس کرم دي

طولاني امل مي ډير کا خبر نه وم    چه له يارَ سره عمر تر گلَ کم دي
هيڅ حاصل مي بي دريغه څيني نه شته    گذشته چه يادوم سود ئي الم دي
قاصدان له روډَ نه راځي مدت شه    سلام باد را رسوي منت ئي تم دي
که بهښت له ښائيسته مخ خالي وي    عاشقانو به ياد کله کا قسم دي
زړه عجب را څخه کم شه نه ئي مومم    بي کمانه به هوري وي چه صنم دي
بي وسئي له غښتو پاتو د مَين کړم    سيه مارمي په دوو پښوکښِ خم به خم دي

د هجري دارو په تا نه شي طبيبَ
د فرقت آس ئي په زړه يښي قدم دي

دانا څکه د جهان له کارَ سرد وي    چه الم ئي لکه باد خوښي ئي گرد وي
آه و سوز مي باطل مه گڼړه درويشَ    سترگي هله کا ژړا چه زړه په درد وي
تخت و تاج ته به سرکوز د همت نه کا    چه په داد د دهر پوه آزاده مرد وي
هغه مرد چه په دغل سود و سودا کا    په مجلس چه د حق ورشي مخ ئي زرد وي
په حساب د فرزانه ترگاو بتر دي    هرچه تل په فکر ډوب د آب وخورد وي
گرځنده گردون چکي سړي دانه شه    لا په زمکه قرار نه بدن ئي ارد وي

دا محال دي چه شاعر به په پښتو کښِ
بل هجري غندِ په فن د شعر فرد وي

سراسر واړه له خرمي کاذبان دي    چه تول شوي د فاني دنيا په خوان دي
دا جهان مثال دکان دي د نباتو    طالبان ئي بل څه مه شماره مچان دي
مچان هونبره مينه کا په هغه لوري    څو نبات تاوده په نس کښِ د دکان دي
هيڅ باور ئي په اظهار د اخلاص مه کړه    په دروغ تيتال کوي د شي ياران دي
تل په ورځ د ښادئي لاف د وفا کاندِ    چه يوه ذره سختي شي گريزان دي
د زړه سترگي په مطلب ظاهر لباس کا    په سوگند ئي غرور مه کوه تکان دي
که دِ ښه آشنا له دردَ خبردار وي    په زبان وائي هي هي په زړه ښادان دي
د صادق آشنا خواهش په جهان مه کړه    پسران د زمان واړه دو رنگان دي

نه یاري نه آشنائي نه محبت شته په هنر ئي حصول کا بنده د نان دی
دنیوي سود ئي مقصود پسي ئي غواړي نه په لار د دین ثابت نه کافران دي
لکه دوي کا څمله قصد د ښان په وینو یو په بل کله آخته هسي لیوان دي
د قیامت ورځ لا په سترګو لیده نه شي نن مي وه لید هغه کار همه د ښان دي
ما هرګز راستي له چا لیدلي نه ده برادر که یار و خویش که عزیزان دي
زه هجري چه په اسرار د کار خبر شوم
په دنیا ارتیني ډیري لږ مردان دي

۵۳۴

یوسف و زلیخه

تصنیف دَ عبدالقادر خان خټک ترجمه دَ کتاب دَ جامي

## یوسف و زلیخا

شرح کول د یوسف علیه السّلام د خپلو وروڼو د وهلو او د زحمت د کوهي ا، د هغي ورځي چه په زلیخا باندِ سختي وه

د قصص روایت کړوني — دا رنګ دي حکایت کړوني
چه ښوا تر وصالتَ — زلیخا کړه غم لت پتَ
یوه ورځ اندوه پرِ ډیر شه — غم د دي تر زړه چاپیر شه
شوه بي صبره بي قراره — ډیره شوه په زړه بیماره
و صحرا ته شوه روانه — که غم لري کا له ځانه
کور له غمَ باند ګور شه — صحرا لا ور باند اور شه
ګاه بیرون ګاه په درون شوه — سر تر پایه غرق په خون شوه
نا قراره ګرزیدله — په سرو وینو ژړیدله
په ژړلو ئې مخ سور شه — زړه کباب تن ئې تنور شه
ځني وُ کړ دائي سوال — را ته وُ وایه خپل حال
نن دي ولي خاطر ملال دي — نه پوهیږم څه احوال دي
پرون خوښه وِ خورم — نن ئې ولي پر الم
بیا کوم غم در باندِ زور شه — چه سپین مخ دِ لکه سکور شه
نا قراره ځبله ښوري — نام و ننګ و ته نه ګوري
چه ښکاره کړي فریادونه — غږ دي ځي په هوادونه
دي وِ زه هم په فکرت یم — و دي حال ته په حیرت یم
چه دا هسي خوږ په زړه یم — دا له چا یم دا پر څه یم

چه دا هسي په ماتم یم      دا په چا پسي په غم یم
درد لرم ګوره د چا دي      نن ځما په زړه پیدا دي
چه آرام ئې له ما یووړ      نه پوهیږم چه چا یووړ
چه یوسف ئې هم نشین شه      زلیخا سره قرین شه
یو شپه ناست له زلیخا وُه      په بیان د ماجرا وُه
تقریباً ئې له ناګاه      حقیقت وُ وِ له ځاه
زلیخا هرګوره زار شوه      پیچا پیچه لکه مار شوه
هغه درد ئې زړه ور یاد کړ      چه ئې درستَ ورځ فریاد کړ
ورځي شپي چه ئې په شمار کړي      ئه ئې کمي نه بسیار کړي
هغه غم ئې چه جانکاه وُه      هغه ورځ یوسف په چاه وُه
انکار مکړه پدا چاري      زړه و زړه ته لري لاري
اَلْقُلُوبُ مَعَ الْقُلُوب      د محبوب د نا محبوب
دي تحقیق تشهدا      هرګز شک نشته په دا
خصوصاً چه عاشقان وي      په خپل عشق کښي صادقان وي
په ظاهر که دوه نمود وي      په باطن کښي یو وجود وي
که په پښه د معشوق خار شي      د عاشق خاطر افکار شي
که په مخ ئې غبار پریوزي      په عاشق باند بار پریوزي
چه ئې باد زلفي خوري کا      د ده زړه پاري پاري کا
یوه ورځ لیلي مکر      قصد د فصد کړ په نشتر
له لیلي چه روان خون شه      سپین مړوند ئې پرګل ګون شه
د مجنون له لاسَ داري      په بیابان لاړي ځو واري
محبت ئې چه کمال وي      د عاشق معشوق یو حال وي
په ظاهر باطن یو کس شي      غم ئې غم هوس هوس شي
اورلوبه چه ځبله ور شي      جدائي ځني بدر شي

لکه نور چه په پرتو شي    دوه وجود وینځ ئي یو شي
هسي رنګ آفتاب د میني    دوه یو کاند که ئي ویني

زاري کول د زلیخا و دائي ته چه په هر حیله چه شي د یوسف په وصال
مي مشرف کړه

زلیخا پر تاسفً    بي نیازي ئي له یوسفً
ولیده په غم شوه پوره    نا امیده شوه رنځوره
یوه شپه ئي په خلوت کښي    چه شوه ډیره په زحمت کښي
و دائي ته ئي زاري کړه    چه مي سهله دشواري کړه
زه خسته ته مي مرهم ئي    زه قالب یم ته مي دم ئي
که باور کړي به ګروهیږي    ته مي روح ئي که پوهیږي
که هر څو بدر منیر یم    پرورده د تا په شیر یم
ته مي مور ئي دائي نه ئي    لا تر مور را تیره ته ئي
بیا پر ما مهرباني کړه    ترکه ته تن آساني کړه
ته ښکاره دانش وري کړه    عملي کړه نظري کړه
که څه سحر کړي که دم کړي    بویه اوس چه د ما غم کړي
نور کارونه کل تر شا کړه    محا مینځ یوسف له ما کړه
ګنړه اوس له تنه ځان ځي    نفس بي جانانه ګران ځي
په ګفتار کښي مي زیب نشته    نور مي توان د شکیب نشته
که څما له خونه دار کړي    ته به سعي په دا کار کړي
شوم په هجر کښي رنځوره    زه به څو اوسم صبوره
یار چه هسي بي ګانه وي    څه فائده که هم خانه وي
که په کټ وي چه یار ځټ کا    یار په سرو لنبو کښي پټ کا
چه په زړه له ما نفور دي    یار نژدي مه ګنړه دور دي
دي ځواب په دا شان ورکړ    پري ئي وا د ځواب ور کړ

حسن ستا هرکوره ډېر شته | کله څوک د تا په څېر شته
که په چین کښې نقاشان دي | نقش کړوني په شان شان دي
ستا په څېر به صورت نه کا | که هرڅو نقشونه ښه کا
که دوستي د خطا دي | چه ئې څوک ستائي خطا دي
دوي که ستا سترګي وګوري | په حیرت به څپله ښوري
بند به ستا د عشق په دام شي | ستا و سترګو ته به رام شي
که په غره د سهل وتي | ستا له عشقه به اوبه شي
ستا په لور به په سر دروي | که د چري وصل مومي
په صحرا که دي ګذر شي | وچ کیاه به تازه تر شي
که په باغ قدم درون کړي | سرو بید چنار مجنون کړي
چه دا دسي حسن ستا دي | غم اندود په څه د تا دي
په مخ زلفي خم په خم کړه | د زاهد روزکار برهم کړه
عنبرین کاکل پیچ پیچ کړه | ور ته زهد تقوي هیچ کړه
له دي تازه له مکیزه | پرهیزکار کړه بي پرهیزه
که هرڅو ئي پرهیز ډېر وي | په لیده به ئي ستا هیر وي
ور ښکاره که خپل جمال کړي | د ده زهد به پایمال کړي
که هرڅو وي تقوي ډېره | هغه دم به ئي شي هیره
تر به لاړ صبر قرار شي | شیر به ستا د آهو شکار شي
ستا په مخ به مبتلا شي | سر به دي په واویلا شي
ستا د وصل به طالب شي | ستا محبوب به ستا محب شي
څوچه وي په ده ستا مینه | تر به لا که په تا مینه
دي و ستا ویل مقتول دي | همکي خما قبول دي
کار په دا خما مشکل دي | زار په دا خما د دل دي
زد که هرڅو آراسته یم | په خوبیو ښائسته یم

په سپین مخ یم منوره — په مخ یوسم نور له نوره
جوړه شم په خوخو شانه — پــه زري نمرئي رخشانه
په کوښه د سترګو ما ته — نه ګوري ګوري بل چا ته
ځان که زه د فلك ماه کړم — نګاه نه کا څکه آه کړم
که ځان پست کړم لکه زمکه — هم کوي له ما نه کرکه
قدم نه کیږدي را باندِ — هونبره کبر لوئي کاندِ
یا په خپل حسن مغروردي — یا بي عشقً یا صبور دي
یا لري کبر و مني — ځان مني بـل نه مني
یا په شرع کښي د ده دي — چه حرام ما ته کاته دي
څکه هسي سترګي ژغوري — هرګز ما و ته نه ګوري
په نرمي دا ئي جواب کړ — ښه ځواب ئي با صواب کړ
چه یو فکر را نماي شي — موافق که ستا د راي شي
لغه پس به پرِ کار کړوُ — جوړ به ستا پر کار و بار کړوُ
زلیخا وُ وِ چه وایه — هـغـه فکر را وُ نمایه
تل په دا څما یقین وي — چه به ستا فکر مبین وي
له هر څه ئي خبر داره — آزموده تجربـه کاره
دي وِ دا رنګ زه وایم — د زړه راي و تا ته نمایم
له زړه لري دا وسواس کړه — خزانه څما په لاس کړه
زهِ به روغ یو عمارت کړم — پرِ په خرچ د تا دولت کړم
ځاي په ځاي د ستا صورت کښي — په ښه زیب و په زینت کښي
د یوسف څهره خوش رنګً — هم په کښي د ثا تر څنګً
چرته لاس تر لاس نیولي — د چمن په لوري تللي
چرته لب په لب پراته وي — څبله ینبي خله په خله وي
چرته کلك یوسف اوده وي — ینبي سر ستا په ورانه وي

چړِ ته ئي په کنار کښي  پرته سترګي په خمار کښي
دي به راولؤ دي کور ته  چه نظر ؤ که هر لور ته
په نظر به ئي دا کښيوزي  د ده زړه به په تا پريوزي
ستا د وصل به جويان شي  پرِ به ستا مشکل آسان شي
زړه چه مومي آفتونه  د نظر دي شامتونه
نظر غشي زهر آلود دي  ځوچه بند دي هونبري سود دي
زليخا وِ که له مالَ  بهره مومم له وصالَ
مال ځه سر به ترِ قربان کړم  ځان به جار ترِ خپل جانان کړم
خزانه واړه لګيا کړه  خو يوسف له ما آشنا کړه

عمارت کول د هغه کور چه په کښِ صورتونه ځاي په ځاي د يوسف او د زليخا تصوير کول

چه اختيار ئي و دِ ور کړ  پرِ ئي وا د مخزن ور کړ
که د چين وو که د روم وو  اوستادان چه د ملك سلوم وو
چه په چين کښي نقاشان وو  صورت کړوني هر هر شان وو
چه تصوير به ئي صورت کړ  دوي به عقل په حيرت کړ
چه په روم کښي صيقلي وو  د جلا په کار جلي وو
د صيقل په کار و بار کښي  عيان وو پخپل ديار کښي
زر ئي ډير وو ورستولي  دوي ئي مصر ته بللي
په راتلو ئي اکرام ور کړ  هر يوه ته انعام ور کړ
رضا مند ئي هر استاد کړ  په ډير ځه ئي خاطر شاد کړ
عمارت ئي لوي آغاز کړ  په اوه درَ ئي ساز کړ
فرش ئي فرش ؤه د مرمرو  په کښي کار کړي د زرو
ديوالونَ ئي مرمر وو  په کښي يښي در کوهر وو
اوم کور ئي لا صفا کړ  تر مرآت لا جلا کړ

چه به څوک ور ته ناظر شه — خپل احوال به وړ ظاهر شه
ښي و کینړ کوز پاس هر ځاي — مصفا وُه رخ نماي
نقاشونه په کښي وني — لوئي کمي نرئي پلني
نقش کړي رنګارنګ وي — نه چه لري څنګ پښنګ وي
که تاؤس وو که طوطیان وو — نور مرغونه بل بل شان وو
پاس په ونو کښي تصویر وو — چه په حسن بي نظیر وو
په حیرت به ئي کړ عقل — چه دا اصل دي که نقل
هسي رنګ په کښي د ګلو — بوټي ساز وو د سنبلو
په هر شاخ بلبلي سازي — اما واړه بي آوازي
له هغه پس ئي مثال وُه — هم په تخت هم په دیوال وُه
د یوسف صورت وُه کښلي — هم د دي زیبا وُه کښلي
لکه ښه معشوق عاشق وي — خبله دواړه موافق وي
ناست به چرته دوش په دوش وو — چرته چرته هم آغوش وو
خوا په خوا سره پراته — چه ځاي مه شه د ویښته
سره یښي لب په لب وو — په هزار رنګ طرب وو
په دا شان ئي عمارت کړ — ښه ئي ساز په لږ مدت کړ

بلل د زلیخا چه یوسف ئي هغه کور لره وُ باله او طلب ئي ور څني د خپل مقصود وُ کړ

په دا رنګ چه مي بیان کړ — ښه ئي ساز هغه مکان کړ
ښه فرشونه ئي دیبا وو — فرش ئي کړه په کښي زیبا وو
ځاي په ځاي مسندونه — بانده یښي بالښتونه
په جهان کښي چه څه ښه وو — بي یوسفَ نور هر څه وو
بي جانانَ که بهشت وي — د عاشق تر فهم زشت وي
ځاي که هر څو دیر عالي وُه — له یوسفَ چه خالي وُه

زلیخا ته کور د غم وُه | د دي مرگ په کښي هر دم وُه
شوه په فکر روز و شب | یوسف څه رنگ کړم طلب
چه به دي په عمارت کښي | له ما کښیني په خلوت کښي
دي به څه رنگ دلته گام ږدي | چه به گام څما په کام ږدي
له اولَ ئي جوړ ځان کړ | آراسته ئي په ځو شان کړ
تور کاکل ئي مشك آفشان کړ | په ښه شان ئي را پریشان کړ
پ آبرو ئي وسمه پوري | کړه لا شوِ تر اول توري
چه ئي سترگي په رنجو کړي | منفعلي ئي آهو کړي
هم ئي زلفي معنبري | کجك کړي په عطرو تري
خال ئي کیښو عنبرین | په صفا کښلي جبین
لاس ئي دواړه په حنا کړه | هم ئي پیوري پښپل پا کړه
له هغه پس ئي زیور وُه | چه د زرو د گوهر وُه
هر یو در قیمت بها وُه | لا تر ستوریو پر بها وُه
هم په غوږ کړه هم په غاړه | پرِ ئي جوړ کړ صورت واړه
بیا ئي ښي جامي مهیني | چه اودلي وي زریني
واغوستي سره درست زر شوه | منوره لکه نمر شوه
نور څه وایم له دِ حالَ | چه ئي غوره وُه له مالَ
هغه ورځ ئي را برسیر کړ | آراسته ئي ځان پرِ ډیر کړ
دا وینا ده هم مشهوره | سري نور زینت دوه نوره
دا خود وَه په حسن میره | په زینت شوه بي نظیره
نور ئي ښه دانا دلال وُه | په ویل سحر مقال وُه
د یوسف په لور روان کړ | امید وار ئي په ښه شان کړ
چه ته ور شه هنر ورد | تر یوسف مي خواب وره
چه دا ځاي مي نوي ساز دي | جوړ په نقش و په طراز دي

ځاي که هرڅو دلکشا دي　په کښي تنګه يم بي تا دي
په فلك ځما تارك کړه　په قدم ئي مبارك کړه
که قدم په دا ځاي کيږدي　برکت به باند پريږدي
يو دم ځان له ما همراز کړه　دا مکان مي په اعزاز کړه
يو ځل راشه غم زدايه　کښلي ځئ را ته وُ نمايه
چه پټ حال در ته عيان کړم　مو په مو ئي دربيان کړم
کام نا کام يوسف روان شه　پرِ روشن هغه مکان شه
هغه ځاي پرِ منور شه　برج د شمس و د قمر شه
لاس ئي وُ نيو زليخا　دا وينا ئي کړه ادا
ستا له لاسَ شوم خرابَ　په رنګك بده تر ترابَ
پاکي خداي ته ده لائقَ　چه ئي کړم په تا عاشقَ
هر ويښته ئي ستا کمند کړ　پرِ ځما خاطر ئي بند کړ
د تا مخ ئي للكَ ماه کړ　ځما بخت ئي پرِ سياه کړ
لب دِ تا لعل و شراب شه　ترِ ځما نصيب سراب شه
ستا صورت ئي درست ګلزار کړ　په قسمت ئي ځما خار کړ
په دا رنګك ئي پرِ افسون کړ　تر اول ذَر ئي درون کړ
هغه ذَر ئي استوار کړ　په دويم وره ئي ساز وار کړ
و يوسف ته ئي خبري　بيا آغازي کړي نادري
تا په خوب کښي مخ عيان کړ　بل دِ اور ځما په ځان کړ
لا هلكَ وم خورد سالَ　شوم په تا پسي بد حالَ
زړه پر درد سترګي بي خوبَ　شوم د تا له مين توبَ
ستا په مينه ديوانه شوم　له عالمَ بيګانه شوم
خپل وطن م لاړ له دستَ　په بل ملك شوم ستا په مرستَ
ستا له غمَ بي چاره شوم　هم له خپلو آوارہ شوم

پهٔ دا هونبره مي زړهٔ ښه کړه چه خبري له ما ته کړه
یوسف وُ وِ خدمتگار یم و خدمت وته طیار یم
پهٔ سپین مخ که تابنده یم بیا آخر د تا بنده یم
چه له تا سره همراز شم پهٔ عالم به بد آواز شم
عنایت وُ کړهٔ را باندي چه زه زر وُ وزم دباندي
تنها ناست له تا ښه نه یم نفس لرم که هر څو ښه یم
دا ناست بد دي که پوهیږي ما رخصت کړهٔ که گروهیږي
اور پنبه نژدی ښه نه دي څو چه لري هنبره ښه دي
پهٔ معني کښي شهوت اور دي پرِ د دیرو سوي کور دي
زلیخا ئې پهٔ خبرو چه خوږي وِ تر شکرو
التفات هرگز دي نه کړ خو مراد ئې د خپل زړهٔ کړ
تر دوم دَر ئې درون کړ فریفته ئې په افسون کړ
ور ئې بند په ده محکم کړ پهٔ دا شان ئې مکر دم کړ
اووم کور چه منقش وُه هر صورت په کښي دلکش وُه
ترِ مرآت مصفا وُه دلکشا راحت افزا وُه
پهٔ هغه کور ئې داخل کړ مشوش ئې د ده دل کړ

ننیستل د زلیخا چه یوسف ئې پهٔ اووم کور ننیوست او طلب ئې ور څني
د خپل مراد وُکړ او د ده تښتیدل او پاتو کیدل پهٔ خواري کښي

پهٔ دا شان سخن پرداز اظهار کا د دِ پټ راز
چه داخل پهٔ اووم کور شه د یوسف پهٔ زړهٔ کڅ شور شه
چه پهٔ دام ئې کښیوتلم پـهٔ کوهي کښي پریوتلم
مکر فضل د حق وُ شي پهٔ نجات مي خاطر ښه شي
زلیخا شوه نا قراره محبت کړهٔ بي اختیاره
آه ئې وُ کړ پهٔ ژړا شوه له هغه پس ور گویا شوه

چه په تا پسي شوم خواره — شپه او ورځ شوم دل افگاره
یو ساعت له ما همدم شه — لږ غم خوار ځما د غم شه
را سره تماستي په تخت کړه — په تماستي مي بیدار بخت کړه
له برقي نه مخ بدر کړه — ځما اوښیو ته نظر کړه
چه په مخ مي را بهیږي — یو زمان نه ؤ دریږي
نور مي مه پسنده په غم کښي — یم د هجر په تور تم کښي
په ښادي مي غم بدل کړه — چراغ د وصل را ته بل کړه
چه یو ځله تر قربان شم — لغه پس پر بریان شم
یوسف کوز په فرش نظر کړ — چه نظر ئي په بستر کړ
دوه صورتَ مصور وو — تماست په مینه په بستر وو
زر ئي سترگي کړي تر پورته — مخ ئي واړاوه بل لور ته
په بل لور ئي خپل صورت ؤه — په تمام زیب و زینت ؤه
چه ئي کښلي پر دیوار ؤه — زلیخا سره کنار ؤه
له هغه ئي هسک نظر کړ — و بل ځاي ته ئي لر بر کړ
هورته هم په هسي شان ؤه — نقش شوي دوه جانان ؤه
که ئي سقف ته کتل ؤه — هم ئي هورته دا لیدل ؤه
امید واره زلیخا شوه — تمنا ئي د زړه دا شوه
چه یوسف په تماشو شه — شاید میل ئي را پیدا شه
په فریاد او په ژړا شوه — ور گویا په دا وینا شوه
په خپل خداي دِ قسم ستا وي — چه هر سر پر هویدا وي
حال مي زار په زړه خسته یم — ستا تر زلفو شکسته یم
په حرمت د خپل معبود — کړه حاصل ځما مقصود
چه یو دم له ما همدم شه — زړه مي خوږ ته مي مرهم شه
توان د هجر نه لرم — ځو به دا لنبي زغمم

ستا له هجرَیم بي تابَ
بي خوراکَ شوم بي خوابَ

ته اوبه ئي د ژوندون
زه تشنه سوي لړمون

د رحمت دریاب په جوش کړه
د ژوندون اوبه را نوش کړه

ستا په خپلو سترګو تورو
څه بڅښي رنړا و کورو

ستا په خپلو ابروانو
چه هلال دي د خوبانو

ستا په خپلو وروځو کښلیو
د قدرت په قلم کښلیو

ستا سوګند په خپل جبین دي
چه تر میاشتي لا مبین دي

ستا سوګند په خپل صورت دي
چه ساز شوي په قدرت دي

چه څما په راي روان شه
په مراد مي یو زمان شه

د خاطر غنچه مي وا کړه
په نماستي مي سره خوا کړه

ستا له هجرَ یم نا توانَ
را کړه قوت څما له ځانَ

یوسف وِ که صبر وُ کړي
په وصال مي به زړه ښه کړي

په هجران پسي وصال شي
آخر خوښ زړونه ملال شي

صبا کیږي له تور تمَ
خوشحالي زیږي له غمَ

نن ورځ زور را باندِ مکړه
نور چه ستا رضا هغه کړه

که قبول مي نصیحت کړي
نن مي ور ځِن رخصت کړي

زر به ستا حاصل مراد شي
غمجن زړه به دِ ډیر شاد شي

د زړه کام به له ما مومي
که دا ځل مي په کام درومي

جوړ کاروَن تعجیل وران کا
تاني ئي آبادان کا

تاني چه آزموده ده
په هر کار کښي ستوده ده

که نن ورځ له تا آزار شم
نور به تل له تا ویزار شم

څما زړه به له تا تور شي
د غم سنګ به دي په کور شي

زلیخا وِ زه تشنه یم
د مدت سوي سینه یم

صبر څه رنګ له اوبو کړم
په زړه سوزم صبر څو کړم

د صبا کار به صبا کړو    راشه نن به سره خوا کړو
نه پوهیږم سبب څه دي    چه دِ سوړ له ما نه زړه دي
چه لري مي په آزار کښي    څه مانع دي په کار کښي
ده وِ یو په دین څما    سخت ګناه دي د زنا
زناکار چه قیامت شي    شرمنده او فضیحت شي
هر سړي چه زناکار شي    تر آزار پروردګار شي
مفتا به ده دا وینا    اَلزِّنَا خرابُ الْبِنَا
تل بي برګَ زناه کاروي    څواني مرګ هم زنا کاروي
تل وي خوار په دین دنیا    لَا غِنَا مَعَ الزِّنَا
دویم دا چه له عزیزه    بهره مند یم له هر څیزه
پرورده ئي د نمك یم    له نعمت د ده ډك یم
دا چه څوك فلك زده دي    واړه دوي نمك زده دي
مرتکب چه د دِ کار شم    په عالم به شرمسار شم
په دنیا به په نفرین شم    په قیامت به په سجین شم
بل عزیز که را خبر شي    څما سر ته به خطر شي
هم له قهره هم له ننګَ    ما به پرِ نه ږدي تردرنګَ
په دنیا کښي مي دا حال دي    په عقبا کښي مي وبال دي
چه په دین په دنیا بد وي    هغه کار چه کاند رد وي
ـي وِ ما ته د عزیز    کار هر ګوره دي نا څیز
په شراب کښي به زهر    ورکړم خلاص به کړم تردهر
د اجل پیاله به نوش کا    ما او تا به فراموش کا
په خپل کار به ګرفتار شي    هم آغوش به د کردار شي
د عقبي اندوه هم مه کړه    چه دِ زړه غواړي هغه کړه
اِئي ته چه خداي رحیم دي    کرم دیر لري کریم دي

که بنده ئې ګناه ګار شي — چه توبه کا شرمسار شي
پرده پوښ ئې په رحمت شي — ور ته عفو معصيت شي
ګناه وُ کړه توبه ګار شه — د رحمت ئې اميدوار شه
هم مې ډېر مال و دولت دي — په انواع انواع نعمت دي
ور کوه خير و خيرات کړه — په فقراوُ صدقات کړه
ترِ بدي کړه نيکي زياتَ — حسنات ترِ سيآتَ
چه دِ زيات ترِ حسنات شي — نور به ستا څنِ نجات شي
ده وِ کله به زه دا کړم — چه نا حق کشتن د چا کړم
په ناحق چه څوک خون کا — په دوزخ به ئې درون .کا
زه به کله هسې کار کړم — چه عزيز خاطر آزار کړم
دي څما ولي نعمت دي — حق ئې ډېر بې نهايت دي
که مې خداي کريم رحيم دي — عذاب هم د ده اليم دي
هم غفار دي هم قهار دي — منتقم آمرز ګار دي
په اميد چه د رحمت کا — کا ګناه څان به په زحمت
دا ئې واړه حماقت وي — شرمنده به په قيامت وي
د ترياقو له ګمانه — زهر مه نوشه نادانه
که دولت د تا ډېر زور دي — رب مې کله رشوت خور دي
زليخا وي بهنې ډيري — تل راوړې ترِ حساب تيري
له دِ پس بهنې پريږده — سر څما په څنګل کيږده
خوا په خوا څمله را څخه — چه خوا کړم در بانده يخه
خواه نخواه څما زړه غواړه — شه له ما غاړه په غاړه
ژبه بند کړه له ګفتاره — بس که ډېر دِ کړم خواره
دا کوم عدل کوم انصاف دي — بيهوده دي د دين لاف دي
زړه د غم په لنبو سوځم — نا قراره وبله خوځم

ته مي رحم په حال نه کړي　　فراغت اوبه خواره کړي
چه ئي پسند په خپل ځان کړي　　بيا ئي پسند په بل ځان کړي
له هغه پس به ديندار شي　　تر هر چا به نيکو کار شي
يوسف بل بهنه راوړه　　چه له ما زليخا واوره
په ما هيڅ نه شته ستا مينه　　مينه کله هسي وينه
چه خپل عشق اظهاره وي　　بيا مي زړه آزاره وي
دي وِ مه کړه شمار نوري　　که به ځان له خونَ ژغوري
زر مقصود ځما روا کړه　　بي هوده ويل رها کړه
کنړه اوس به کړم تر درنگَ　　بيچاونړه په وينو رنگَ
پټ تر ملا ئي يو خنجر وُه　　تر الماس لا تيز تر وُه
هغه دم ئي را برسير کړ　　په حيرت ئي يوسف ډير کړ
چه به اوس له دِ خنجره　　مړ کړم ځان زر تر زره
چه عزيز په دا آگاه شي　　د تا مرگ به خواه نخواه شي
دريم نشته په دا ميان کښي　　چه به پريوزي په گمان کښي
تا به دي ځما قاتل کا　　ستا په مرگ به زړه مائل کا
سر به ستا له تنَ بيل کا　　تا به ما سره دي مل کا
په دنيا کښي که محرومه　　ستا له وصلَ شوم زه شومه
پس له مرگَ به واصله　　له تا شم تر دا کامله
هميشه تر خاورو لاندي　　عشق بازي ربښتيني کاندي
نورِ زر خنجر په حلق　　کښيښ دي شه حلق دلق
ده وِ هي د خداي دپاره　　لاس کوتاه کړه له دي کاره
ځان به مړ ما به رسوا کړي　　شرمنده به عزيز لا کړي
لاس ئي تاو د زليخا کړ　　هغه تيغ ئي ترِ جدا کړ
زليخا خوښه په زړه شوه　　چه ئي مينه په ما وُ شوه

چه دا هسي دل سوزي کا — خپل وصال مي به روزي کا
شوه په خپل گمان خوشحاله — آرزو منده له وصاله
غالب شه په زړه ئي شوق — لاس ئي کړ د گردن طوق
په پالنگ باندِ ئي پریوست — په منگلو کښي ئي کښیوست
که په زور وُه که په کید — اوس آهو شه ځما صید
که هوس کړي که بخښیږي — ته به نه له ما خلاصیږي
وم د کالو آرزومنَ — تل په تا پسي غمجنَ
اوس جامي له تنَ دور کړه — برهنه ځمله سرور کړه
چه په کت احباب ځملي — د قمیص حجاب آخلي
یوسف کړ له نفسَ جنگ — په آهنگ په نه آهنگ
نفس ورُوست زړه ته وسواس — ده له حقَ کړ هراس
حق ښکاره ور ته برهان کړ — خپل عصمت ئي نگاه بان کړ
په بهنه ئي تز خلاص ځان کړ — ترِغورزنگ ئي په بهنه شان کړ
دي هم دَو ور پسي وُ کړ — دَو ئي ډیر په سوي زړه کړ
دا دورستَ دي دوړاندِ — سره زغاستل مځ د باندِ
یوسف وُ وِ ځما خدایه — را ته بند ورونه وُ کشایه
یَا مُفَتِّحَ ٱلْاَبْوَابَ — خلاص کړه ما له هره بابَ
مناجات د ده کلید شه — فتح باب ور ته پدید شه
بند که هر څو ډیر محکم وُه — ور ته وا په هغه دم وُه
له هر وره نه دي بدر شه — ور ته پاتَ خو یو ور شه
په دا مینځ کښي زلیخا — کیښو لاس د ده په شا
قمیص وُ رغي دي خلاص شه — په عفت د عام و خاص شه
په ژړلو زلیخا شوه — په فریادَ په واویلا شوه
آه ځما نا سازه بختَ — دِ پریبستم له تختَ

خلاص شه باز ځما له دامَ — پریوت قند ځما له کامَ
جام مي ډک په زاري زور کړ — بیا بد بخت له ما نسکور کړ
که مي تل دا هسي بخت وي — ورځ په ورځ به مي کار سخت وي
په خپل بخت شوم خبر داره — تر دا حال به شم لا خواره

رتل د یوسف له کوره او عزیز په مخه ورتله او پتول د هغه حال چه د ده او زلیخا تر مینځ واقع شوي وه او څرګندول د زلیخا د هغه حال و غزیز ته

چه یوسف له ورة بدر شه — لـه عـزیـزه بـرابـر شـه
په خوا ؤ رغي ناګاه — را ته کور ته له بادشاه
په یوسف ئي آواز ؤ کړ — تر پرسښ ئي د راز ؤ کړ
دا څه حال دي څه احوال دي — ستا له چا سره جنجال دي
مشوش چه هسي ته ئي — دا له چا ئي دا په څه ئي
یوسف پاتو دیر حیران شه — دي خوله پټه یو زمان شه
چه جواب ئي په څه شان کړم — چه ئي ورك د زړه ګمان کړم
که خپل حال په ریښتیا وایم — حقیقت ور ته ؤ نمایم
دا چغلي کیږي له ما نه — چغل سم دي له شیطانه
مرد ته بویه چه ستار شي — که هر څو په خواري خوار شي
ښه جواب چه په ادب ؤه — و ریښتیا و ته اقرب ؤه
و عزیز ته ئي آغاز کړ — پوشیده ئي هغه راز کړ
عزیز لاس د ده پلاس کړ — تر ئي دفع کل هراس کړ
دلاسه ئي ډیره ؤ کړه — چه هراس لري له زړه کړه
ته مي زوي زه د پدر یم — لا په تا مهربان تر یم
نور ئي ور ؤست هغه کور ته — زلیخا کړ سر ور پورته
چه ئي ؤ لیدل دوي دواړه — دا شوه زر ور ته ولاړه
درست یقین ئي د زړه ؤ شه — هیڅ ګمان ئي پاتو نه شه

چه یوسف دي راز ویلي — عزیز دي قهر نیولي
ما به مړه کاند بي درنګه — یا له تیغ یا له سنګه
یا به ما عزیز رها کا — په عالم به مي رسوا کا
یا به ؤ وهي ما ډیره — ما به کا له دله وهیره
زر ئې مکر ور بنیاد کړ — په فریاد ئې طلب داد کړ
له عزیزه داد طلب شوه — په ژړا او په شغب شوه
چه دا کوم عدل انصاف دي — ستا عبث د مردئې لاف دي
زه تنها په تخت پرته وم — فراغت په خواب اوده وم
چه ناګاه دي غلام — نا سپاس نمک حرام
کښېښو لاس خما په ځان — لب خما په زنخدان
بیا ئې ورو خما په بند — ګتي کیښوي بد پسند
زه ناګاه شوم بیداره — په حیرت شوم له دي کاره
ده نور زر له ما فرار کړ — ما هم ذو پسي اختیار کړ
چه نژدي ؤ رسیدلم — ناګاه وه ورغیدلم
دي شه خلاص زه پریوتلم — په دا ځاي چه دِ لیدلم
که د ده علاج ؤ نه کړي — تا به څه کړم ما به څه کړي
اور به پوري ستا په کور کړم — ځان به خپل ژوندي پګور کړم
اوس بائده دي چه دي بند کړي — په بد پسندي بد پسند کړي
چه له بدو سره ښه شي — د عالم روزګار به څه شي
چه بد خوي او بد کردار وي — د بدئې سزا وار وي
چه دِ بد بدي تر پښو شي — په معني بدي له ښو شي
یا ئې سر له تنه دور کړه — په مردي ځان مشهور کړه
چه عبرت د ګل عالم شي — بند و بست به دِ محکم شي
چه بد کار و بد اندیش وي — زیان د خلق وهم دِ خویش وي

عزیز ؤ کړ ده ته قهر　　هم ترخه ویل تر زهر
چه ما ته لکه فرزند کړي　　په دولت مي ارجمند کړي
په خپل کور کښي مي امین کړي　　په آسمان مي له زمین کړي
تمامي اختیار مي در کړ　　تاج مي خپل د تا په سر کړ
غلامان مي صد هزار کړه　　ستا خدمت ته مي تیار کړه
لکه ما دي له تا کړي　　کله چا دي له چا کړي
کښېنو تا نا حق شناس　　بیا څما په ناموس لاس
رسوا تا نمک حرام کړم　　په وګړي دي بد نام کړم
که خبر په دا عالم شي　　نام و ننګ به مي برهم شي
پیدا شوي چه انسان دي　　په احسان د دِه احسان دي
په نمک مي پرورده شوي　　بیا مي مالکه په دیده شوي
چه یوسف دا هونبري قهر　　له عزیزَ ؤ لید په جهر
وِ ئي مه خوځه له ځایه　　تجاوز مه کړه له رایه
اول ؤ کړه فکر غور　　بیا هاله کړه هونبره جور
که تحقیق د کار ؤ نه کړي　　کرم به شي که قهر ؤ کړي
چه په عقل پوه سپک وي　　په خبرو پسي ورک وي
په سرکار کښي که تمیز کړي　　ته به هاله ځان عزیز کړي
زلیخا چه څه ویل کا　　د خپل جرم پټول کا
ویل کاندي په دروغ　　دروغ تل دي بي فروغ
ښځي تولي خرښي دي　　کله دوي په کورکښ ښي دي
ګناه ؤ کاندي په خپله　　بیا ئي ؤ تړي له بله
چه داخل د تا په کور یم　　په معني ژوندي په ګور یم
دي دا کور په ما سور اور کړ　　څما زړه ئي پرِ نسکور کړ
دا مي نه پرېږدي و کار ته　　وخپل کار و خپل روزګار ته

خپل ځان جوړ کا په څو شانه	اختلاط غواړي له ما نه
که په څنګ کښي دوړاندِ	را ته کښيني جلوه کاندِ
په بهنه ئي نن دي کور ته	را وستم پريوتم اور ته
فريفته ئي پر افسون کړم	په اوه در ئي درون کړم
نور ئي زر تر لاس نيولم	پاس په تخت ئي خيژولم
چه پر تخت له ما سرور کړه	زړه له زهده تقوي دور کړه
پاس په تخت له ما څمله	د زړه کام له ما آخله
په بهنه مي ترِ خلاص ځان کړ	حق پټ فضل را عيان کړ
زر د ورهِ په لور دوان شوم	يا فتاح يا فتاح خوان شوم
دي هم دَو را پسي وُ کړ	دَو ئي دير په سوي زړه کړ
په دَو دَو را پسي تلله	عاقبت وُ رسدله
څيري دي قميص څما کړ	خداي مي تن څني رها کړ
چه قميص مي څيري پس دي	کس ته دا اشارة بس دي
هيڅ شک نشته بي ګناه يم	زه نيولي په اکراه يم
په خپل فضل څښتن خاص کړم	چه له دِ بلا ئي خلاص کړم
هر محنت په ما آسان دي	بي عصيانَ عصيان ګران دي
ما وِ زه به ستاري کړم	د دِ راز به رازداري کړم
اما دي چه راز افشان کړ	لوي ئي بار په ما بهتان کړ
له ضرورة مي بيان کړ	پټ احوال مي در عيان کړ
اوس دِ تا په لاس انصاف دي	څما زړه درسره صاف دي
که د عدل په لار درومي	تلافي به ئي بيا مومي
که څه ظلم يا ستم کړي	ځان به ته ترهرچا ګرم کړي
زليخا وي دروغ وائي	بند زدن کشتن ته ښائي
په هغه څما سوګند دي	چه هر پټ په ده څرګند دي

چه له دِ ګناه یم پاکه — نه بد کاره یم بي باکه
په هغه بادشاه سوګند کړم — پټ ئي نه کوم څرګند کړم
چه شاهان د جهان واره — ږدي د ده فرمان ته غاړه
چه زه څۀ څو مي تبار دي — نه بد خوي نه زناه کار دي
قبلوي ډيري خواري — اما نه زناه کاري
هم سوګند د تا په مخ کړم — په لیده ئي چه تل سخ کړم
ډیر ذلیل پر عزت کیږي — چه پرِ ستا مرحمت کیږي
چه هرګز په زړه ځما — ګذر نه شي د زنا
چه زولي یم له موره — په امان یم له دِ توره
چه زنا ؤ شي له چا نه — ور ته پاته شم حیرانه
چه زنا ؤ کاندِ ښځه — سر ئي پري کړي پرِ تزخځه
چه دا هونبره سوګندونه — بند په بند په پیوندونه
زلیخا ؤ کړه څو شانَ — شوه عزیز ته پاك دامانَ
نور ئي زر حاضر کوتوال کړ — پر ئي حکم دم در خال کړ
وِ ئي بوزه یوسف بند کړه — د روند ځنځیر ور ته پسند کړه
تر هغه چه کار څرګند شي — بهتر دا دي چه دي بند شي

## ٧٢٥

### عبدالقادر خان خټک

ساقي پاځه پياله را کړه پانړي ريد کا	د بهار د راتلو باغ و ته نويد کا
ښتا په ميو کښ نشا د يك رنګۍ ده	چه تر فهم مي يکرنګ سيه سفيد کا
د غماز خاطر به ويلي لکه يخ شي	که يار مخ را ته ښکاره لکه خورشيد کا
سياه چشمو ځحه بوي د وفا نه شته	له دي بابً به څوك څه ور ته اميد کا
چه په عشق سره ژوندي وي هغه نه مري	خداي توانيږي که څما عمر جاويد کا
زړه ئې درست له ما نه يووړ لا ئې ګوره	چه لا څو سحر دمونه مکر و شيد کا

دا څل دير عبدالقادر څني سود مند شه
چه به بيا په ښائيسته دا اعتميد کا

په تهمت کښ کا خپل يار پسندلي ما	د عالم تهمت په سر منلي ما
دير به نه وي هجران ګران که ئې له غمً	په وصال که ئې هميش ژړلي ما
ماً به تل لکه بورا په ګل سينه ښهه	کا په کښ د وفا بوي موندلي ما
چه بي سوال ور کړه کا منت نه ړدي	سخاوت دي د هغو پسندلي ما
حريص څکه هسي در په در جاروزي	چه دي دي له خپل در رټلي ما

سرمدي ژوندون حاصل عبدالقادر کا
د غمزي په تيغ چه دي وژلي ما

ګوره ديره ناداني بورا بلبل کا	چه خزان ور پسي شته مينه په ګل کا
دا څراغ به بل تر کومه وي په باغ کښي	يوه ورځ به ئې صرصر د قضا ګل کا
په صبا ئې په زشتي بدل ښائيست شي	شب څراغ چه په شپه هونبره تجمل کا

خفي شرک لکه جلي ور څرګندېږي — عارفان کله نظر په جز و کل کا
له شبنم سره د ګل غوټۍ غوړېږي — د بخيل غوټه لا سخته نو د مل کا
نندارچيانو به ئي شرح د مخ وه کړه — تحير ور ته آواز د لا تقل کا
ستا قلم عبدالقادر مشک افشان شه
چه دِ دير صفت د زلفو د کاکل کا

که خاني که ملکي که سلطاني دَ — که ئي ګوري بيهوده سرګرداني دَ
مرګ و ژوند بي ښکلي واړه برابر دي — ښائسته وته په کار زندګاني دَ
په نصيب څما د زړه د يار د زلفو — له ازله بخره شوي پريشاني دَ
له مستۍ نه ښيښه پريوته په زمکه — ساقي قهر غصه مه کړه څواني دَ
د هوښيار په غلطي قهر و عتاب شي — معذرت د نادانو ناداني دَ
يا به سيځي د چا خونه يا به خون کړي — چه آغوستي دِ جامه ارغواني دَ
دِ عشق اور به ئي د ګور له خاورو درومي — د هر چا چه د خپل يار مينه جاني دَ
خرابات لره به ځم له صومعي نه — چه په کښ د دوارو کونو آماني دَ
تر نګين د قناعت لاندِ جهان دي — که زاکښي ئي کړي په کته سليماني دَ
سري سري اوښي دِ په مخ عبدالقادر
و خپل يار ته د ياقوتو مهماني دَ

چه مي وه ليده له يار سره اغيار کړ — په فرياد شوم په نارو شوم په چيغار کړ
آئينه د زړه صفا په خاکساري شي — هم په دا له تورو خاورو شه خاکسار کړ
عندليب د زړه له تاوه ناري وه کړي — چه ئي وه ليده له ګلَ سره خار کړ
هر يو ګل مي په زړه خار غندِ څرخيږي — چه بي تا شم کله زه په لاله زار کړ
ستا په زلفو کښِ مي زړه هرګور پريشان شه — مسلمان دِ نه کا خداي په هندو بار کړ
ناداني نادان هميش لري په عيش کښِ — هوښياري د غم په سيند کاندِ هوښيار کړ
چه آخر څني واته په دير ارمان دي
نه به شي عبدالقادر په دا بهار کړ

بړ بړ راشه اي ځما د سترګو تورَ    خداي مې مه کړه د زړه مينه له تا تورَ
ځما ستا له ميني ډير عالم خبر شه    څه به ويره کړم له شره له پيغورَ
عاشقان له تهمتونو نه خلاصيږي    هميشه باندې غوغا وي لور د لورَ
سپي که هر څو غپا ډيره کا مزري ته    مزري هيڅ نه کا پروا د دوي له شورَ
که نمجن ويل دِ نه کيږي و ما ته    کله کله را ته کړه خبره سپورَ
چه رقيب وته شکنځل کوي زه سوزم    جګي جګي بي له ما نه بل مه زورَ
زور قوت د زورورو د زړه کم کړي    يوه څه بده بلا ئې د عشق زورَ
مستغني دِ د جهان له بادشاهۍ کړم    د هماي تر سوري بهه ده ستا سورَ

څو دِ توري سترګي توري خاوري نه دي
تل پر مخ عبدالقادرَ د يار ګورَ

که ترخه وي هم د قهر شراب نغرَ    ظلم و جور په چا مه کړه ځيګر ورَ
بازچه ويني د ځيګر خوري مرګ ئې ژروي    له دې وينو ځان ساته ځما ځيګرَ
هيڅ حاجت د بند زندان ورله نه شته    بند زندان دي د دانا د خولې خبرَ
د دوران د حادثاتو غشي نه خوري    هر حليم چه آغوندي دِ حلم زغرَ
چه د زړه له کمره پريوزي ريز مريز شي    خداي دِ پري نه باسي څوک له دې کمرَ
که سړي په اصل يو دي فرق ئې ډير دي    يو په يو دي يو په سله يو په زرَ
مرغلري سل آخستي په دينار شي    هم په سل دينار آخست شي مرغلرَ

که بادشاه که امرا ځان به ئې سيالَ کړي
چه اميد نه کړي له چا عبدالقادرَ

که هر څو لعل آبدار لري دلبر    نه شه هيڅ کله پرِيږ ځما ځيګر
د هغو شهلا نرګسو له فراقَ    هميشه مي تر نرګسو څي ګوهر
هر يو ګل ئې د ښائيست د باغ منظور دي    ولي لا ئې په سمن لګي نظر
راشه وه ګوره ځما زيبا صنم ته    که به ګوري په يو ځاي هلال قمر
سروي سر د خجالت په زمکه کيښود    چه سر هسک کړ په بوستان د يار عرعر

د ژوندون چینه یادیږي په تیاره کښې — ما له خدای را کړه چینه په ښکنګ د نمر
چه سنبل به باد پریشان په نسترن کا — په غروب شي د عاشق د بخت اختر
چه غنچه ئې شګفته په تبسم شي — له ګوهره ئې جهان شي منور
که له ډیره رشك و چوي حد ئې څه دي — چه له ملا سره ئې مو وهي کمر
که ئې نوش عبدالقادر د شکر مې کړ
پر به شي د مرګ تلخي شهد و شکر

زړ که په رنګ بد یم ښکلي ولي عار له ما کړ — چارډ قسمت دي زه ئې زشت ته ئې زیبا کړ
یو څله بیا راشه په ګلونو نظر و کړه — اي د صبا باد چه بیا نغښتي غنچي وا کړ
ګل د په هجران کښې صد پاره خپله سینه کړه — سروي له فراق لاله سترګي په ژړا کړ
ولي له شیدا بلبل مخ جارباسي اي ګله — ته په دا خوبیو هم د ده نارو رسوا کړ
لا خشبوئي ورکا عود چه واچوي و اور ته — زه به وفا زیاته کړم که ته زیاته جفا کړ
ته د حسن نمرئي دا نور ښکلي واړه ستوري — کل به کالعدم شي که ښکاره خپله لقا کړ
تل لباسي وائي دروغژن عبدالقادر ته
کشکي بل تر ده نه مخلص یار چرته پیدا کړ

زړه مدام را ته ویل کاندې چه ژاړ — په ژړا ژړا بیل شوي مین غواړ
په طلب ئې د دنیا ودانې پریږده — لیونیو غنده سر شه په ویجاړ
مصلي د بې ننګي ور پسې لنګ کړه — د ناموس ببچاونړه تاوکړه و ئې نغاړ
یار خما د سترګو تور دي پر ګرزیدم — په هجران کښې مې د سترګو رڼړا لاړ
ښائسته که د کشمیر که د بل ملك دي — تر یوه بانړه مې زار شه د یار واړ
د مکي زنځیر د نورنسي په لاس کښې — ما نیولي دي د یار زلفي هر دواړ
که رضا د ده خما په سر لوئي کړه — په خندا خندا راځه په لکه غاړ
تل د یار په سترګو مست عبدالقادر دي
که نور مست وي له شرابو یا له تاړ

له همه عالم واړه صلح کل ش — و هرڅه ته خوشبوئي ورکوه ګل ش

تعلق په تیریدوني هوس مه کړه | په بهار کښې په نارو لکه بلبل شې
د سبب توانګري عین نیستي ده | توانګر په خزانو د توکل شې
اضطراب به دِ خلاص نه کا له تقدیرَ | مستقل ور ته په صبر و تحمل شې
ځان د عشق په اورلوګي لکه سپند کړه | هم په دا بهنه ئې ځار تر شنه کاکل شې
په تاخیر کښې پیدا کیږي آفتونه | معطل مه کړه ساقي په داد د مل شې
سترګي مه وچوه یو زمان له نمَ | تل په زړه تازه تازه لکه سنبل شې

خو خپل نیت عبدالقادر یار ته سم کړه
بې پروا له بد ګوئي د چغل شې

مرغلره وه لیده شوه په پیزوان کښې | که غوټئي وه د شبنم په ارغوان کښې
د خطا د ملك کبلي دي دواړه سترګي | چه تل ځرکا په سنبل و په ریحان کښې
ستا د ورځیو تشبیه نه مومم په دَور | لړ و ډیرمي دي مندلي په آسمان کښې
څه نسبت د یار د غاښو په ګوهرو | دا په نس کښې د صدف غاښ په دهان کښې
چه له شونډو ئې نسبت کړ سخن دانو | شرمنده شه لعل ننوت په کان کښې
د لذت بیان ئې څوك کولي نه شي | د جنت د خوږو خوند ستا په لبان کښې
ستا رخسار و ته حیران د خداي وکړه ته | چه ئې ته ساتي له اوره په امان کښې
تماشي مي د جهان د ګلو وه کړي | نه شته تا غندي یو ګل په ګلستان کښې
په دا شکر چه اوږدي زلفي ئې در کړي | پرِ وه کاږه ډوب په چاه د زنخندان کښې
حاضران دِ له غیرتَ په خوله لال دي | غایبان دِ تمثیل راوړي په بیان کښې

سترګي ښې عبدالقادر له واړو بند کړه
پس ته واړه جهان وُ وینه په ځان کښې

په آخر به څني دروميي سینه داغ | بیهوده باغیان نازیږي په دا باغ
چه داخل وي د دنیا په خرابات کښې | په وار وار به واړه څښي د مرګ اياغ
تش ساتي نصیب د نورو به ئې یوسي | په دنیا دنیا دار ولي کا دماغ
د بلبلو غندِ ګهت په ګلو نه کا | په مرداړو باندِ ناست وي لکه زاغ

په طلب ئي بادشاه گرزي کداي بيا موند کۀ آرام که آسايش دي کۀ فراغ
په لحد کښ به د شمعي رڼرا نۀ وي مګر يوسي ور سره د آه څراغ
سري سري اوښي د مجنون دي بېدلي غوړيدلي لاله ګل نه دي په راغ
د نيستۍ په لار څۀ عبدالقادره
کند بيا موسي د يار د در سراغ

چه قانع په يوه څاڅکي شه صدف قيمتي ګوهر ئي څي په هر طرف
که عزت غواړي قانع په خپل قسمت شه ورکړه کړه که بزرګي غواړي شرف
بندول د دنيا بندِ جهنم دي آزادۀ څکه کېښوده په کف
د دنيا خلق مي ود ليده په سترګو يوئي جمع په ډېر حرص کا بل تلف
چه ژوندون هميشه نشته په دا څه شو په حشمت که سليمان شي که آصف
د سړي ښائيست په علم و په حکمت دي د چارپايو څربيدل دي په علف
که څوان مرد ئي بل آزار مه کړه هيڅکله څان د ښو بدو و تير ته کړه هدف
تل له خدايَ ترس کوه عبدالقادره
حق خائف ته دي ويلي لَا تَخَفْ

ما هرګز په درست جهان کښِ توري سترګِ لکه ستا نه دي ليدلي نوري سترګِ
بيهوده په غزالۀ پسي زغلي څما يار لره راڅه که ګوري سترګِ
چه فائده ئي د ښه مخ ليدلي نه وِي د هغو سړيو څه دي کوري سترګِ
نه دِ شرم شي له پيره نه له ميره ستا په دود به د چا نه وِي سپوري سترګِ
ثوابت ئي تر نظره سياره شي چه ئي سر وِي ګرزيدلي توري سترګِ
چه جهان مي پرِ ليده په سترګو لاړ شه نور مي خداي کړي له عالمَ پوري سترګِ
په دي سترګو به ئي څير عبدالقادره
نه کړي نوري په خپل مخ کړه پوري سترګِ

سحر دا آواز مي غوږ يوست له بلبلَ ستا خندا په ژړا کيېستمَ ګلَ
تر مستي ئي لا لذت د خمار ډېر دي ستا د سترګو مستي بهه ده تر ملَ

ښائسته د زماني دنیا پرست دي — په کوڅه کښې ئې پل مه ږده بې پلَ
په چغلي مې ستا په یار مینه زیاتیږي — چه دِ زړه هومبره چغلي کوه چغلَ
په پریشانو اندیښنو خاطر پریشان شي — جمعیت مومي خاطر له توکلَ
چه ستا مخ ورته ښکاره وې گل به گوري — هغه سترگي دِ خداي نه کاندِ بې گلَ
د مجلس روښنائي ته ئې چه ته ناست ئې — کوم نقصان دي که صبا کا ډیوه گلَ
ساقي مې چه راکوي په قهقه خانده — زده کړه دا د صراحئ له قلقلَ
د لیدوني په نظر کښې تفاوت دي — او که نه وي جز جدا نه دي له کلَ

دا دنیا په مثال پول د آخرت دي
تیر شه زر عبدالقادره له دي پلَ

په دنیا کښې کمال نه شته بې زوالَ — د زوال اندوه کوه صاحب کمالَ
د هجران له غم تریخ لکه هجران وه — ما هرگز لذت بیا نه موند له وصالَ
نمر له تا نه منور شه دا له نمره — څوک به میاشت کا ستا له مخ سره سیالَ
ستا په تللو مي ارواح د رومي له تنَ — یو زمان را څني مه څه د یار خیالَ
چه په هجر ئې مړ نه شوم په وصال کښې — یار ته غت نه شم کتل له انفعالَ
هغه چا چه یښي داغ څما په زړه دي — هم هغه ور باندِ کېښوه دسنبالَ
که گذر څما د یار په کوڅه وه کړي — دا پیغام ور باندِ وه وایه شمالَ
زه که یو ساعت بې تا نه یم بې غمَ — تا دِ خداي همیشه خوښ لري خوشحالَ
ډیر مین په ډیر ارمان څبله بیل شول — خداي دِ را مه وله بیا د غواص کالَ

تر هر حرف ئې بوي د مشکو د عنبر څي
چه ثنا عبدالقادر کا ستا له خالَ

شگفته په باغ و راغ شه د بهار گل — هم په بام هم په کوڅه هم په دیوار گل
کانړي بوټي خار و خس په گلو پټ کړل — د همه واړو عیبونو شه ستار گل
څو د سترگو نظر لگي واړه گل دي — وړاندِ گل او ورستو گل یمین یسار گل
هیڅ یو ځاي خالي له گلَ پاتو نه شه — په بازار گل په صحرا گل په کهسار گل

عندلیب ناري وهي چه سیل کانږيِ بهار دروميِ رژیده کا وار په وار ګل
د بهار په سیل جونه زلمي بڼدینه په اوربل ګل په ګریوان ګل په دستار ګل
د دلبر صورت تمام له ګلَ روغ دي ښيې ئي ګل لاسونه ګل څېره رخسار ګل
مېَ ګلګون ساغر ګلګون ښیښه ګلګونه ساقي ګل حریفان ګل وارهِ نګار ګل
چه ګلونه بویوي احتیاطي بویه چه په شونډو ئي وه نه کاندِ پرهار ګل
خاص و عام ئي بهره مند په ننداره کا منتونه په هر چا باندِ کړه بار ګل
که هزار رنګَ ګلونه شګفته شول وُ لید نه شه یو په شان څما د یار ګل
چه دا هسي شان په ډکه خوله خندا کا مګر نه دي له خزانَ خبردار ګل

چه نیبان د خپل آشنا په کښِ لیده شيِ
څکه یاد عبدالقادر کا په تکرار ګل

عجب خوښ په خوب اوده وم د عدم نه مي غم وه د ښادئِي نه د غم
یا وحوش ويَ یا طیور یا نور آشیا ويَ کشکي زه نه وَي پیدا بني آدم
یا مي مرګ پهلك والي ويَ چه خلاص ويَ وه مي نه لیدي دا هونبره ډیر الم
نه اول شوم نه دوهیم شوم نه دریم شوم څلورم بویه د رب فضل و کرم
چه مخلوق ئي کړ آدم له ماء و طینه روح ئي کړ له خپلَ فضلَ په کښِ دم
له اولَ ئي مسجود د فرښتو کړ په تکریم د کرّمنا شه مکرّم
و جنت ته ئي روان په ډیر اعزاز کړ پرِ پریوان ئي کړ انواع انواع نعم
بیا شیطان وسوسه وروسته و زړه ته په ویلِ ئي د حوا وه خوړ غنم
له جنتَ ئي بیرون په درد و دوك کړ د عاصي آدم ندا شوه په عالم
چه نسبت ئي کړم وتا وته ویریږم خو هم ما وه کړ په څان باندِ ستم
څه شیطان څه نس څه زه څه خمورِ فعل ولي نه شي زور ور ته ویل سم

هیڅ حجت له زوروړو سره نه شيِ
کرم ئي ته عبدالقادرَ یار نا کرم

چه تل هسي په هوس په بي غمي یم اقرار شوي د خپل عقل په کمي یم

آدمیت که په سیرت وه له ما لاړ شه آدمیت که په صورت دي، آدمي یم
که په فضل مي کار وه سپاري غم نشته که په عدل مي سپاري جهنمي یم
د هجران په لنبو سوي یم فریاد کړم ما معذور لرئي عالم المي یم
اهرمن چه لاس ورووړي کوتي ئي سوځي بادشاه شوي زه د فقر په غمي یم
د معنو په ملك فارسي عربي نه شته کوم نقصان که عرب نه یم عجمي یم
کله زه عبدالقادر د شعر لاف کړم
مرثیي د تللو وایم ماتمي یم

موړ ته نر نا حق عالم وائي پندونَ په خپل عقل هر سړي کا آنندونَ
د نور چا په موړ څه کار چه امتناع کا که د یار په مینه سر و مال ښندونَ
محبت لکه دریاب په زړه را وه خوت د دریاب په مخ کښ ځوك تړي بندونَ
د پیوند په پړي کولو فقیري شي نه په دا چه ځبله کیړدي پیوندونَ
بي اختیاره ورکاوه شي زړه و ښکلیو نه دا کار په مصلحت شي په ځیزونَ
بهایم په خوراك شحوند کا د سړیو د خبرو په معنو بویه شحوندونَ
څو وایه شي ستا بیان عبدالقادره
په رنګ رنګ تر پیدا کیږي نور خوندونَ

ناز پروره چه په غاړه کا هارونَ په سینه د ګلو وه شي پرهارونَ
نه به وائي چه په ګلو شبنم پریوت چه له قهره ئي خولي شي رخسارونَ
که یو څل چرِ غلط شم توبه‌وي مي په ورځ صل غلطي کا نه ئي شمارونَ
ما به تل د یار تلي کیښول پر سترګو که مي نه وي دا بانړه لکه خارونَ
په لیدل د ښایسته غزل انشا کړم عندلیب په ګلو کاندِ چیغارونَ
د لبانو جړئي هم ور څخه شته دي که ئي دواړه توري زلفي دي مارونَ
په هیڅ ځاي باندِ د کوتي ایښوي نه شي دغه دوه سترګي دِ لا دي کتارونَ
راغي وار دِ تا د تلو عبدالقادرَ
په وار وار یاراتو تیر کا خپل وارونَ

که دِ نه ده د خپل مخ څهره چرکینَ  آینه څما د زړه نه ده زنګینَ
چه و تورو ته نژدي شي هغه تورشي  په ستنه را څیني ګرزه تکه سپینَ
چه ئې زړه د محبت په لنبو وه سه  د دوزخ له اوره څه پروا لرینَ
توره شپه به په عاشق باندِ سپوږمۍ کا  که پلو له مخَ واخلي مه جبینَ
وارپه وارمي له زړه واړه څني لاړه  بي له ښکلیو چه هرګز څني نه څینَ
د بلبلو له آوازَ ئې اثر دي  دا غنچه چه خپل ګریوان پاره کوینَ
غیرِ حق میني همه واړه حجاب دي
مه کړه نور عبدالقادره غیره مینَ

ـره مه شه د دولت په بام ختو  هر زمان ویره کوه د پریوتو
دیرئې هسك کړه بیا ئې وه ویشته له زمکي  هسکول د چرخ په نیت دي دِ ویشتو
له اوله پرِ پیدا د محبت کړه  که آسمان ته نیت لري د آلوتو
چه ئې مینه د ښه مخ په زړګي نه وي  د هغو مخونه نه دي د کتو
ما وِ ښان د درله سپیو سره مل کړم  یوه ورځ ئې را ته نه ویل چه تو
چه رِندي نه شوي د یار په جدائي کښِ  خوښ یم اوس د دواړو سترګو په وتو
نوانګري په قناعت شي نه په زرو  سفیدي بویه د زړه نه د ویښتو
اتا خوږه کړه تر فارسي عبدالقادره
که پښوا وه ترخه ژبه د پښتو

په آخرڅني شلاوه شي په ارمان زړه  څوك به څلره تري په دا جهان زړه
دي باغ له ګلو بوي د وفا نه څي  نر نا حقَ پرِ بایلي دا بلبلان زړه
ه خیال د یار د زلفو پریشان دي  جمعه مه شه تل مي اوسه پریشان زړه
ـت بي رحمَ بي پروا لکه چه ستا دي  په جهان کښِ به بل نه وي په دا شان زړه
په هرځاي چه ئې دلبروي هم هوري وي  په ګوګل کښِ ساتي کله بي دلان زړه
خدايَ څه دِ په نادان ښکلي مَین کړم  چه بي جرمَ بدءوي په هر زمان زړه
قرب وبعد وصال هجران به ورته یوشي  چه ئې بیا مونده مکان په لامکان زړه

د دوزخ آتش مي صل خله قبول دي خدایَ مه کړه د هجران په اوربریان زړه
بنګ شراب سرود کوه عبدالقادره
خو یو مه کړه آزرده د مسلمان زړه
ساقي هسي پیاله را کړه رندانه چه په څکل ئي لا یعقل شم دیوانه
سر زده له خلقَ تښتم و صحرا ته د مجنون غندِ خپل ځاي کړم ویرانه
د مقصود میوه به هاله څني وُ خوري چه په خاوروکښِ ځان نیست کاندِ دانه
چه په کښِ د ښائیستهوُ د مخ خیال دي دا څما خاطر د چین نګار خانه
له غیرتَ مي ګوګل پاره پاره شه چه ئي ګوتي په ویښتو وهي شانه
د بهارپه وقت محتاج د مطرب نه یم را ته بس دي د بلبلو ترانه
هره شپه هنګامه ګرمه کړم په کوي کښِ ګندِ راشي دلربا په دا بانه
چه هوا ئي و بایلو وته د سر شي غواص غواړي په صدف کښِ دردانه
سر به صل څله ترِ جار عبدالقادر کا
که د سر په ښندل مومي جانانه
محبت په ښکلیو کا تمام وګړي چا دا اوردي ښکاره کړي چا دي نغړي
ثمره ئي خواه مجاز خواه حقیقت وي په انسان ئي دي کرلي د عشق زړي
څما داغ عارضي نه دي چه به ورك شي د لاله غندِ مي داغ له ځا راوړي
ګل ګریبان په نغمه څیري د بلبل کړ دا نسیم نه دي ګریوان د غنچي سپړي
را به وه وزي عاقبت د غم له ځاهه چه نیولي ئي په لاس د میني پړي
چه څوك نه کاندِ آزار له چا نه آخلي ترکسرا ترحاطم ځان هغه تیر کړي
که سفله څښتن د جاه شي په دا څه شو په معني ږږوکي پورته کا خسړي
زه ختك د یار په غم تازه تازه شم
غوریه خیل رحمان که شه ورڅیني سترړي

٥٦٩

## احمد شاه ابدالي

هسي گرزي په زړه مينه د ليلي  چه ثنا وائي مجنون تـل د ليلي
وائي نه خست بل سبق په دا دنيا کښې  بسبق بي لـه خال و خط د ليلي
ده ته خوب د بيغمۍ تل دغه دي  چه په خيال په شپه و ورځ وي د ليلي
ځانکند که ئي د غم په توره کيږي  ارمان نه که چه حضور وي د ليلي
عاشقان چه تل ليلي کا واويلا کا  ځان فنا بـقـا په نام کا د ليلي
غم له ډيرَ غمَ غواړي نه ئي مومي  آشناي تل په غم کښې خوش وي د ليلي
د عشق درد ئي واړه وه سوځي يکبارَ  چه وصال ئي سرانجام شي د ليلي
را شه زده کړه احمد شاهَ له مجنونَ
چه مجنون په عشق موصوف دي د ليلي

لاس و ما وته په ورو راوړه طبيبَ  مهر وه کړه حال مي وه گوره حبيبَ
وسکه زړه ځما هرگوره ډير خوږيږي  له قسمتَ آشناي نه ويني قريبَ
دا په حسن ډيره ډيره ښائسته ده  زړه مي ځکه ځله کاندِ بي ترتيبَ
محبوبا که په خوله ډيرکوي دادونه  ولي هر څوک بخره مومي له نصيبَ
که هر څو ورته کوم ډيري زارئي  را ته وائي مه کړه غم ستا يم غريبَ
چه صباح ورلره راشم ځما جانه  وائي څوک دي دلته څه کا بي اديبَ
که زه زړه ورځني پريکړم نه پريکيږي  چه دا ډيره ده په اصل کښې نجيبَ
توري زلفي پر سپين مخ باندِ ځريږي  په ښائست ده شوخ و شنگه خوش ترکيبَ
چه دلبر وته خداي حسن د گل ورکړ  ترو به ولي چغار نه کا عندليبَ

احمد شاه ارواح طوطي کا چغارونه
د آشنا له ملکَ راغي بيا نصيبَ

خداي دِ ورک کړه د ناسوت مېږَ — خوله به پاته نه: وي ستا له مېږَ
په هر زخم چه ستا مقام شيِ — تل ته تله په غم گرفتار وي ستا له رڼَ
درست جهان دِ سرهِ گنگ کړ — ستا لا خوله نه شي له بده آوازه وچَ
درست جهان په تا مردار دي — له ارمانَ لا دوه لاس مړي له غېږَ
غافلَ د مېږ خويونه مه کړه — دا بينا سترګي خلاصي کړه له لېږَ
ته بنده ئي خداي وه غواړه — بي له خدايَ ژوندون کم گنړه تر پېږَ
يقين باور در بسرهِ واخله — د گمان تياره خونه به سپينه کړي له گېږَ
کمښي او عاجزي دِ تا کمال ده — د نفس تند خويونه مه واخله له مرچَ
خپل اصل به ته بيا مومي — چه د کبر گردن وه باسي له خرچَ
احمد شاهَ د همت توره در واخله
نفس شيطان هندو وه باسه له کېږَ

هي توبه د بيلتانه بده کرکندَ — چه همېش کا پر مينو زړونو مندَ
ښه ياران ښبله تار په تار جدا کا — د هجران شپي دِ تل خداي لري لندَ
چه دا هسي بي ارمانَ غشي ولي — د آشناي خونه خالي دري گور هندَ
بي ژړا ئي بل راحت د زړګي نه وي — نوند گريوان آهونه کاږي لکه کندَ
د يار غم ئي د ادب گريوان پاره کړ — نيوز د اوښيو کا د سترګو واله ژغندَ
زړه به څرنګ غوښي ويني ژړا نه کا — د فراق اوښي پر سترګو تري ډندَ
فراق هونبره و عاشق ته وار ور نه کړي — د زړه ويني ئي تر سترګو څي کندکندَ
و هيڅ خوا ته ئي اميد نه وي چه گوري — خپل صورت شي پرده باندِ د غم پندَ
که غم زور در باندِ وه کړي احمد شاهَ
له اخلاصَ ته و خداي ته وه کړه مندَ

د بلبلو پر ځاي مه واي زاغان گډ — په بوستان د گلو تل واي ياران گډ

ګل چه بي د يار له مخه ليده کيږي      جوړ د سترګو نظر وي په خارستان ګډ
ګلستان د يار له مخه سره زيب کا      بي له ياره مه کړي زړه په ګلستان ګډ
هغه اوره چه د کرم اوبه ئي نه وي      هغه اوره مه کړي په مخ د دي آسمان ګډ
تار د زلفو چه ئي پريوزي      بي له سره نه وينم بل تاوان ګډ
چه د مخ خال ئي په ورانيږي      پر مخ دِ نه شي د اوښيو تل باران ګډ
د يار مخ لکه ګل خزان په مه کړي      دا ګل دِ تل تازه وي په بوستان ګډ
باد د خزان چه ګل پريشان کا      کاشکي دا باد کړي په نارستان ګډ

احمد شاه د بيلتانه غمونو سوي
يوار ئي بيا کړي په تولئي د ياران ګډ

وريځ راغله د بهار      پر جهان به کا ګلذار
زړه مي هوسيږي      بيا به ګل کا د زړه خار
چه ښاخ د خار کا سره ګلونه      دا ښه قدرت د کرد ګار
د قدرت اوبه ئي ور کړي      له وچ سحره ثمروه کا اشجار
هيڅ نشان د ثمر نه وي      په څو شان بيرون کا مزه دار
خوند و رنګ و بوي به ئي نه وي      له وچي ونې څو رنګه شي اظهار
له قدرت ئي نازيږم      بي اوبو د غره شجر کا ميوه دار

احمد شاه شپه و ورځ ثنا کړه
عقل د چا رسي په دا کار

څما زړه ګوره چا يوور      په دوو زلفو ليلي يوور
څکه دي شه بي آرامه      چه د زلفو بلا يوور
دا د زلفو بلا نه شته      بي بلا محبوبا يوور
مخ ئي نمر را ته تاويږي      زړه ذره نمر ګويا يوور
که مي زړه ته نصيحت کړ      درد بي پنده له ما يوور
د جهان پر مخ دي مخ کړ      مخ ئي مخ د دنيا يوور

چه په خپل قوت غره وم    زړه قوت په تالا یوور
دا کتاب څما د سترګو    سیلابو د ژړا یوور
څه بازار چه مي د زړه وه    نن ستا حسن په غلا یوور
حسن باج و چا ور نه کړ    دهٔ جهان په یغما یوور
ما ویل چه مینه نه کړم    زړه بي واكَ شها یوور
مینهٔ نه وي چه آرام وي    څما د زړه آرام تا یوور
قراري د زړه مي نه شته    بي قرارَ زلفو ستا یوور
دلاور د یار په مخ وم    زړه حیا بي حیا یوور
دا تمام عالم ښادي کا
احمد غم د آشنا یوور

دلبره ستا په رنګ به نه وي په جهان کښِ    پلو واخله یار به مړ شي په ارمان کښِ
همیشه سوي سینه در پسي ګرزم    ستا ځاي نه دي په زمکه په آسمان کښِ
قلندر یا به ملنګ په جهان ګرزم    یا به اوښي تویوم په خپل ګریوان کښِ
د سحر بادَ خوش نسیمَ خبر راوړه    د زړهِ ګل مي خندان کا په بوستان کښِ
چه ناري کوم یا ژاړم مراد مي دا دي    چه زړه بلبل وي ستا د مخ په ګلستان کښِ
ستا د حسن له تاراجَ زړه ژړا کا    لکه بلبل د زړه ژړا کا په خزان کښِ
په جهان به زړه خلاص نه وي له تاراجَ    زړونه سوځي عجب اوردي په پیزوان کښِ
د خلق هیڅ ملامت پرخان نه ړدي    په نارو عاشق ولاړ په دا میدان کښِ
په جور و په جفا ئي لاس وا نه خلم
زه احمد شاه که جوړ وم په سامان کښِ

شیرین عمر چه تیریږي دریغَ دریغ    لکه اوبه هسي بهیږي دریغَ دریغ
ولي زړه په خبر نه دي له رفتنَ    چه دا هسي زر تیریږي دریغَ دریغ
ولي هسي شوي له غمَ څما دلَ    عمر باد غندِ چلیږي دریغَ دریغ
که هر څو په دیر ناز جوړ کړِ مانړۍ    په ارمان ځني پاتیږي دریغ دریغ

دریغَ دریغَ آخر دریغَ څما دله چه مین څبله بیلیږي دریغَ دریغَ
دا یاران لکه گلونه د بهار دي د خزان په تاو رژیږي دریغ دریغ
دا هجران مثال دوزخ بیلتون دبري د عاشق په سر لگیږي دریغ دریغ
د دنیا دلي پریهو دي بي وفا ده سود ئې نه وي چه وره کیږي دریغ دریغ
که پیدا نه واي دیدن بیلتون به مړ وه له دیدنَ خون بهیږي دریغ دریغ
که مقصود دِ آشنائي ده بیلتون خپل کړه ستا له لاسَ در رسیږي دریغ دریغ
آشنائي په مثال گل حاصل ئې خار دي خارشي سخت هاله څرخیږي دریغ دریغ

احمد شاه به څه غم کا وقت د هوس دي
د وصال نوبت رغیږي دریغ دریغ

کاشکي مه واي په دنیا غم د فراق چه ډوب نه واي زړه په دا یم د فراق
یار په مهر و په وفا نتلي مه شه که نتلي دي عاشق غم د فراق
د عاشق زړگي به ولي زخمي نه وي تیري توري خوري په هر دم د فراق
اندیښني لکه مارونه تر چاوپیر شي چه سیلاب ئې شي پر زړه سم د فراق
قافلي له دي دنیا قطار قطار ځي جهان خونه ورانه کړه یم د فراق
په دا تاو سره به غرونه هم اوبه شي که په راشي آتش گون دم د فراق

سرو قده سرنگون شه شاه احمدَ
مشه ستا قامت په بار خم د فراق

نن ته بیا ولي ژړا کړي څما دلَ همیشه آه و غوغا کړي څما دلَ
لکه خپل کبلي چه ورک کاندِ هوسئي هسي شان الا بلا کړي څما دلَ
گوره بیا په نصیحت دِ صبر نه شي گریوان چاك په واویلا کړي څما دلَ
لکه اور ته نا قراره ځي ستئي شیرین عمر وته شا کړي څما دلَ
په دا ډیر ډیر شورا شور دِ نه پوهیږم هسي نرم زړگي چا کړي څما دلَ
بیا هله به ته د غم له دردَ خلاص شي چه د زړه ترکه هوا کړي څما دلَ
د شها د انگنړ سیل به ته وه کړي که تسلیم خپله رضا کړي څما دلَ

دلبراني، شوخ و شنګي دی طراري  څو به ته آه و کوکار کړي ځما دل
د پسرلي ګلونه ډير دي په جهان کښ  که بلبل غندِ چغار کړي ځما دل
توره شپه به رڼا روڼ شي په تا باندِ  لکه پتنګ چه ځان نثار کړي ځما دل
غنچه ګل به له هوسَ پر تازه کړي  که يقين ابرِ بهار کړي ځما دل
د خزان شپه به هيڅکله پاتو نه شي  که اخلاص ته پردا لار کړي ځما دل
هميشه به ته د يار په ديدن موړ ئي  چه تاريک خاطر سحار کړي ځما دل

احمد شاه بله دعا نه زده عالمَ
په ديدن مي وزګار کړي ځما دلَ

که پر زړه کړم ستا زلفي خالونَ  پر مخ به جوړ شي د اوښيو حصارونَ
جدائي د يار توره بلا ده  خداي دِ نه کا مبتلا د هيچا زړونَ
که يو دم زړه بي غمَ کوم بي غمَ نه شي  انديښني ئي لکه مار کا ګذارونَ
زړه مي زوړ شه ځوان به نه شي  د آشنا له غمَ يوړ لوي بارونَ
هر کوره زړه نادان ور خبر نه وه  بي ځافَ بيلتون کښيبوست په تالونَ
خداي که يو نظر کا په سوي زړونه  کنړه بي خدايَ مي په چا نه رسي لاسونَ
پريشان خاطر مي زړه پريشان کړ  کله به ښکاره کړي سترګي ګلونَ
د بهار ګل چه مخ ښکاره کا  فراق وهلي بلبل څو کا هوسونَ
بادَ که د يار خبر دِ راوړ  له زړه به واخلي د هجران سوي داغونَ
که مي يار وه ليده چه دا دي  زړه به بهار شي په زيړ ګلونَ
که ژوند دي ژوند له يارَ سره ښه دي  خداي دِ نه کا تر ميان د بيلتون غرونَ

احمد شاهَ بيا په غم پسي ښادي ده
د خزان مزکه به بيا شي بوستانونَ

يو څه عجب ساعت وُ  ځما ستا سره خلوت وُ
د مخ زيب لکه ګلونه  زړه بلبل په کښِ رخصت وُ
د ديدن په مينه مست وُ  له رقيبَ فراغت وُ

د هجران له ډېرَ سوختنه | نن ديدن پر ده جنت وُ
چه هماي ئي پر سر راغي | دا ساعت د سعادت وُ
زړه به ولي هوس نه کا | چه پرِ تل د غم هيبت وُ
پر هغه چه يار نظر کړي | درست جهان په فراحت وُ
ديدن دادِ آلهي دي | هسي نه چه يو جهت وُ
په يوه نظر و يار ته | فراموش له ما جنت وُ
يو بي مثلَ يار څما وه | زيات تر ګلو ئي زينت وُ
ډيري سروي دِ چمن دي | څما يار ترِ خوش قامت وُ
د ديدن مي کړه سيلونه | شيرين يار لکهٔ شربت وُ
چه و حسن ته ئي ګورم | شمس قمر څه ئي قدرت وُ
احمد شاه به ئي تعريف څوکا
درست عالم ئي په صفت وُ

زه زاري کوم آلهَ | شرمنده يم پر ګناهَ
نا اميد ستا له رحمتَ | تللي نه دي له درګاهَ
دِ تا فضل و کرم ډير دي | له عملَ يم زړو سيادَ
په عمل مي باور نه شته | کليمه به کړم پنادَ
چه و خپل عمل، ته ګورم | وايم کشکي واي ګيادَ
نفس و شيطان را سره مله دي | نه شي يو کار عند اللهَ
که تلاش کړم نه خلاصيږم | د شيطان له بدَ چاهَ
که د زړه ساتنه وه شي | سترګي څه رنګ شيِ نګاهَ
ته ياري غواړي احمدَ
له سه خدايَ نه له جاهَ

که وه وايم له ياره وايم څه | خپل نصيب دي له روزګارَ وايم څه
که معشوقي دي په زړه نرمي | د فلك له کج رفتارَ وايم څه

له تورو زلفو ګيله نه کړم — سترګي ئي خون ريزي له کشتار وايم څه
د مخ د ديدن هوس مي ډير وُ — زړه وژني له رخسار وايم څه
چه ياري ئه کا خود اغيار دي — يار دِ يار وي له اغيار وايم څه
نسيم د سحر چه ګل خندان کا — خود نسيم دي له سحار وايم څه
خار چه د ګل وي هم ګل وي — چه د ګل دي له خار وايم څه
د معشوقي ويل که بار دي هم په کار دي — عاشقان چه منت بار دي له بار وايم څه
ګل که د زړه باغ د بلبل زړه چراغ — د بلبل د زړه چراغ دي له چغار وايم څه
تار کوکار کا زړونه تار په تار کا — تللي مين ياد کا له تار وايم څه
احمد شاه که دار دي هم ګلندار دي
دار د يار ګلندار دي له دار وايم څه

بيلتانه مي زړه سوري کړ پوري ووري — چه طاقت مي نه په نمر شي نه په سيوري
د دنيا قيامت دغه دي که پوهيږي — چه آشنا له تا بيليږي ور ته ګوري
سخت زړه کاڼي په هيڅ رنګ نه نرميږي — چه بيلتون ئي کړي دا سپيني لار توري
بيلتانه په زړګي هيڅ اثر نه کيږي — په ژړا که د زړه چوي سترګي ګوري
بي له صبر ئي علاج په نور څه نه شي — که بيلتون کا د غم سکروټي پوري
هم په صبر علاج چري شي نادان — چه ياديږي د آشنا زلفيني توري
احمد شاه د بيلتانه خبري پريږده
کړه خبري د وصال نادري نوري

زړه ځما ولي پريشان دي — ګنړه يار پسي کشان دي
زه په خپل زړه نه پوهيږم — چه تر حد ډير نادان دي
آشناي چرته کا پوښتنه — چه مي يار ولي ګريان دي
ځما زړه پسي خوريږي — په ژړا ځما خندان دي
يار دِ تل اوسي خندان — خاموشي د يار خزان دي
که مي يار په سر خوښيږي — تر قربان مي شيرين ځان دي

څما د یار رضا په کار ده — چه رضا د یار ایمان دي
که هر څو کړم زه فکرونه — یار باقي عمر چلان دي
ارمان نه کړم زه د عمر — څما د یار بشره ارمان دي
که د زړه په مدعا شي — څما قبول یار ترجنان دي
یار به ولي قبول نه وي — همایسته کل د بوستان دي
په اختیار به مي خپلیږي — که شها نمر د آسمان دي
په دیدن کښې ئي شك نه شته — نا دیدن څمور گمان دي
د خودئي حجاب له مخه — له هر چا کنړه گویان دي
که هوري وي که دلي وي — دي د هر خاطر جویان دي
ته خپل زړه ساته احمده
یار په هر زړګي پوهان دي

د بهار وریځ ووریږي — "مین" بلبل په هوسیږي
د زمکل سر په تازه کا — زړه ئي کل په زرغونیږي
د کل و مخ ته کوري — زخمي زړه به جوړیږي
هغه مړ بلبل ژوندي شه — چه د کل بوي پر لکیږي
د آشنا دید ئي مرهم دي — بي مرهم کوم پرهار رغیږي
دیدن کل د نو بهار دي — د بلبل زړه پر نازیږي
کل پیاله د میو — بلبل څکه په مستیږي
باد د یار له لوري
که راشي احمد شاه پر تازه کیږي

وقت د نو بهار دي — بلبل په څو چیغار دي
د بلبل پر زړه غمونه — کل مست په خپل خمار دي
د پسرلي په زیړ کلونو — را وتلي شرین یار دي
و زلفینو وته کوري — عاشق تر میان کنار دي

٥٧٨

## احمد شاه ابدالي

۱۲

پۀ څو څير ګوري کاته کا ګوره و چا ته ئې ګذار دي
که له کبرَ ګذار کا عاشق ئې انتظار دي
خداي دِ يار نه کا ملالَ په ملالي ئې مين خوار دي
جدائي د يار بلا ده په سر وهليو منت بار دي
دا به چا ويلي نه وي چه په جدائي زړګي قرار دي
که ديدن که جدائي ده په دي دوو د زړه کوکار دي

سر په عشق پري کړي بويه
بي عشقَ سرَ احمدَ څه په کار دي

تم تمام شه

BY THE SAME AUTHOR,

TO BE PUBLISHED DURING THE PRESENT YEAR.

# SELECTIONS

FROM

# THE POETRY OF THE AFGHĀNS,

FROM THE SIXTEENTH TO THE NINETEENTH CENTURY:

TRANSLATED FROM THE ORIGINAL PUSHTO;

WITH MEMOIRS OF THE DIFFERENT AUTHORS.

"Full many a gem of purest ray serene
The dark unfathom'd caves of ocean bear;
Full many a flower is born to blush unseen,
And waste its sweetness on the desert air."

☞ THE ORIGINALS OF THESE POEMS ARE CONTAINED IN THE PRESENT WORK.

# CONTENTS.

## PROSE WORKS.



## POETICAL WORKS.

kbar—down to the last poet of any considerable repute, Mullā Æabd-ul-Ḥamīd—iough last, not least—who lived in the latter half of the past century, during ie reign of Tīmūr S͟hāh, son of Aḥmad S͟hāh, Abdālī, the founder of the Durānī ionarchy.

All these extracts have been carefully collated, in some instances, as in the ise of the Poems of Æabd-ur-Raḥmān, with as many as fifteen or twenty dif-erent copies; and taken from ancient MSS. in my possession, some of which, ven if they have before been heard of, have been seldom seen, such as the xtensive "History of the Afg͟hāns," by Afẓal K͟hān, nephew of K͟hūs͟hḥāl K͟hān, ie renowned chief of the K͟haṭṭaks; the translation of Pilpay's Fables from the 'ersian version by Abu-l-Faẓl, Minister of the Emperor Akbar, by the same uthor; and also the Poems of Kāẓim K͟hān, S͟haidā, his son—the original and nly copy of which I possess—a work that even his own descendants of the present ay had never seen until shown to them by me.

An English translation of some of the best poems, the greater number of 'hich are contained in the present work, together with memoirs of the different uthors, is prepared, and will be published some time during the coming year.

It being customary amongst Oriental authors to choose a significant name for heir works, I have chosen for mine that of "Guls͟han-i-Roh," signifying "The 'lower Garden of Roh," as the mountainous country of Afg͟hānistān is termed, and rom whence the Afg͟hāns have derived the name of Rohilahs; and I trust that s flowers will prove both fragrant and acceptable to all lovers of Oriental literature.

H. G. R.

Bombay, December, 1859.

# PREFACE.

Puśhto Manuscripts of any antiquity are now become scarce, even amongst the Afghāns, whose language it is. This has, doubtless, been caused by the numerous civil convulsions which Afghānistān has undergone during the last sixty years, in which period the cultivation of the Afghān language has, comparatively, declined. Hence the few works now to be met with are generally full of errors, from the fact of the Kātibs, or Copyists, being, with rare exceptions, persons wholly unacquainted with the Puśhto language, and not Afghāns, who are, generally, indifferent writers.

With the exception of a few well-known Puśhto works in the East India House, in London, some six or seven in number, not including duplicates and triplicates, books in this language are rarely met with out of Afghānistān, where they are sufficiently scarce and difficult to obtain.

Under these circumstances, I considered that a work, containing the correct text of portions of the most standard authors, together with extracts from several rare works unprocurable in the present day, and of which, probably, not more than one or two copies exist, would alike prove acceptable to the Orientalist and to the Student; more particularly when printed in a type which, for clearness and beauty, cannot be equalled in typography or in caligraphy, and at a cost below what an ignorant Copyist would demand for his labour.

The chief object, however, contemplated, when the work was commenced was to facilitate and encourage the acquirement of the Puśhto language, the reasons for which have been fully stated in the Preface to the Dictionary.

This work, with the aid of the Grammar and Dictionary now published, will also enable the European Orientalist to acquire at home the knowledge of a language, the literature of which contains "Full many a flower" that hitherto has been doomed "to blush unseen, and waste its sweetness on the desert air."

The work contains considerable portions of six prose and ten poetical authors which I have endeavoured to select, with due attention to the wants of the Student and as favourable specimens of the style and subject of the writings of each, from the oldest work in the language now procurable—the Makhzan-ul Asrār of Akhūnd Darwezah, written in the reign of the Mughal Emperor

TO THE RIGHT HONORABLE

JOHN, BARON ELPHINSTONE, G.C.B., K.C.H.,

ETC. ETC. ETC.

GOVERNOR OF THE PRESIDENCY OF BOMBAY,

THIS WORK

IS

WITH THE GREATEST RESPECT,

DEDICATED

BY HIS LORDSHIP'S MOST OBEDIENT HUMBLE SERVANT,



H. G. RAVERTY, CAPTAIN

3RD REGIMENT, BOMBAY N. I.

THE

# GULSHAN-I-ROH

BEING

## SELECTIONS, PROSE AND POETICAL,

IN

## HE PUSHTO, OR AFGHĀN LANGUAGE

EDITED BY


CAPTAIN H. G. RAVERTY,

OF HER MAJESTY'S THIRD REGIMENT, BOMBAY N. I.

AUTHOR OF A GRAMMAR AND DICTIONARY OF THE PUSHTO LANGUAGE; A THESAURUS OF ENGLISH AND HINDŪSTĀNĪ TECHNICAL TERMS, ETC. ETC.


٥٨٥

اوس د فکر توره واچوه حمیده
چه دِ نشته په پښتو کښِ بل حریف





LONDON:
LONGMAN, GREEN, LONGMAN, AND ROBERTS, PATERNOSTER ROW;
WILLIAMS AND NORGATE,
HENRIETTA STREET, COVENT GARDEN, AND 20, SOUTH FREDERICK STREET, EDINBURGH
HERTFORD: STEPHEN AUSTIN.
MDCCCLX.

## رو وروستیو پیړیو کې دپښتودچاپ شوو
## دسیمینار په ویاړ خپاره‌شوی کتابونـــه

غانستان لنډ تاریخ
شن روء
ید افغانی
یستوماتی
حمن بابا دیوان
پښتونخوا دشعر هار اوبهار
ستیج څخه ترتلویزیون پوری
غانستان‌کې‌دژورنالیزم تاریخچه
حمدشاه‌باباداشعارو پښتوشرحه
رهنګ زبان وادبیات پښتو
ریری فوق العاده ګڼه ٦٠مخه
قلندر اپریدی دیوان
اختمان صرف پښتو .
پښتنو تاریخ .
دن ښتیت
الب داشعارو مجموعه
فغانستان نومیالی
ښتو کتاب ښود
ښتو څیړنی
ښتو پانګه
ښتو څپرونی
رلسی پرهه
رفة الافغانی
پوړمی
وی اندیښنی
نغمو کاروان
رخت چیغه .

